زړه مې تا ته د الفت په سجده پروت دے
نه جلسه کړي نه قعده او نه قيام

# دِيوانِ
# سيّد محمد اسماعيل
# بابا



اسمٰعیل هم ستا په مخ باندې شیدا یم
ستا جلوو پما اور کړې اکبر پوره

اوّل جلد

زړهٔ مې تاته دَ الفت په سجده پروت دے
نهٔ جلسه کړي نهٔ قعده اؤ نهٔ قيام

# دِيوانِ سيّد محمّد اسمٰعيل بابا

اسمٰعيل هم ستا په مخ باندې شيدا يم
ستا جلوو پما اور کړي اکبر پوره

**اوّلُ جِلد**

دکتاب نوم ———— دیوانِ سیّد محمّد اسماعیل
دشاعر نوم ———— سیّد محمّد اسماعیل
کتابت ———— ضیاء الرّحمٰن نوریؔ سیفیؔ تاروجبه
دچاپ ځائے ———— رضوان پرنټنګ پریس
حیات آباد پېښور
دچاپ کال ———— یکم رمضان المبارک سنهٔ ۲۰۱۵
تعداد ———— ۵۰۰
سائز ———— ۲۰×۳۰/۸
هدیه ———— ۵۰۰ روپے
جلد ———— اوّل

## دملاویدو پته

(۱) نهر والا بادشاه صاحبؒ نزد اخوند پنجو باباؒ
ډاکخانه اکبرپوره تحصیل پبّي ضلع نوښار
(۲) ضیاء پینټ سټور جي ټي روډ . تاروجبه

# پیر محمد اسمٰعیل صاحبؒ چشتی نظامیؒ
# یوُ درویش او درویش شاعر

حضرت پیر سید محمد اسماعیل باباؒ زما پیر او مرشد دے.
د ډیر ښکلي صورت او سیرت خاوند دے. په ځبرو کښې ئې ډیره لوئې
روحاني او علمي قوت دے. هر نظر ئې یو زبردست تاثیر او اکثیر
لري. د تصوف او بیا په تیره تیره د وحدت الوجود د مکاشفاتو او
د مشکلاتو ډیر آسان تعبیرونه وړاندې کوي. دغه رنګ اکه زما
غوږونه ډیر تږي په دې "آب حیات" خپل زړونه خړوبوي.
نوکومه چې د صاحب د شاعرۍ تعلق دے نو هغه د تصوف او
حقیقي عشق د غمونو، دردونو، مزلونو او منزلونو یو داستان دے
د الفاظو، ترکیباتو او د اصطلاحاتو ذیله ئې ډیره عام فهمه، ساده
او خوږه ده خو سخنویت ئې ډیر ژور سمندر دے. او هر غواص
ترې د خپل همت مطابق ملغلرې را اوباسي.
د پیر صیب په شاعرۍ کښې چې د موسیقیت کوم توکي شامل دي
که هغه صوتي موسیقیت دے او که معنوي د وجد او استغراق بې پناه
تاثیر لري. خصوصاً کله چې دا شاعري د سماع دوران کښې څوک اوري
نو د خپل وجود د اسرارو او د حقیقي وجود د اسرارو یو داسې نطابق
وموي چې د وحدت الوجود د کیفیت معرفت ترلاسه کړي.
حسن بصریؒ فرمائي.
"سماع چې چا په نفس سره واوریده هغه زندیق شو او چا چې په

روح سره واوريدو هغه حق ته اورسيدو".

امام قشيري فرمائي چې" سماع (دَ الله له اړخه) ندا ده او په وجد کښې (دَ بنده له اړخه ارادتاً دَ دې آواز) قبليده دي".[1]

ابوعلی رودباري فرمائي چې" دَ محبوب دَ مشاهدې په مخ دَ اسرادو ظاهريدل سماع ده".[2]

علی محمّد مخلص دَ سماع په باره کښې ليکي:

| | |
|---|---|
| سرود تسبيح آواز که | له سامعه سره راز که |
| دغه راز کا نهٔ نهٔ اوري | دَ سامع په زړهٔ حلاز که |
| سرے يولی کل وحق ته | هر آواز بانک نماز که |
| شنوايان به پرې پوهيږي | چې دَ زړهٔ غوږونه واز که |
| دغه ساز بعيد نهٔ اوري | وقريب ته ساز اغاز که |
| هر اواز تسبيح دَ "هو" که | غافل ولې احتراز که |

دَ صاحب شاعری لکه څنګه چې ما وړاندې وئيلي دي چې دَ عشق دَ حاصلاتو يو خزانه ده. دوئ دَ حُسن او عشق په يو داسې مقام باندې ولاړ دي چې هلته دَ مجازی حُسن او عشق او دَ حقيقی حُسن او عشق بيلتون ختم شی. بناشست چې چرته وي که په ظاهر کښې وی او که باطن کښې يو رنګ وينيس.

يو مشهور قلسفی هيګل (Hegal) ليکي چې:

" دَ حُسن دَ خالق دوه حيثيته دي يو هغه حيثيت چې مطلق دے يعنی دَ غيب په حالت کښې دے او هغه په حواسونهٔ بنکاره کيږي.

---

[1] امام قشيري رسالہ قشيريہ (اُردو) ۵۲۶ مخ

[2] محمّد عبدالنصير بن عبدالبصير علوی. تصوف انسائيکلو پيډيا ۵۱۱ مخ

دويم حيثيت يې دَ نمود او جلوې دے چې په حواسو ځان منکشف کوي،
دا خبره که مونږ دَ تصوّف په ژبه کښې بيان کړو. نو دَ دې مطلب به
دا شي چې مجازي حُسن دَ حقيقي حُسن (مطلق حُسن) نمود او جلوه ده.
په مجاز کښې چې چرته حُسن دے هغه دَ حقيقي حُسن مظاهر دي.[1]
دَ دې حالت داخلي او خارجي حقيقت چې پير صيب په کوم ندرت او
جدت سره وړاندې کړے دے. دَ دې مثال دَ پښتو شعري ادب کښې
نشته او دا ځان له وضاحت هم غواړي.

دوئ ليکي چې:

ے دَ تفسير پاڼې مې نشته په لوح ليک دے
په يو مخ باندې تفسير په بل تصوير دے
هر ساعت ئې ماته دوارو مخه ينکارې
زۀ کاته کړمه تصوير ته چې تحرير دے
له تحريره ئې زۀ لولمه عالم ته
ښکښې ښايمه تصوير چې بې نظير دے

اسمٰعيل دَ بې نظير، نظير وړ کومه    دا نظير راله راکړے زما پير دے

ے ستا دَ حُسن نظارې دي په هر مخ کښې
راته جوړې ننداري دي په هر مخ کښې
چې په تا باندې په کومه وړځ مئين شوم
له هغې راته تارې دي په هر مخ کښې
په هر مخ کښې دي لتوم ځکه دلبره
دَ وصال دې اشارې دي په هر مخ کښې

---

[1] نصير احمد ناصر: تاريخ جماليات (جلد دوم) ۱۱۵ مخ.

دَ حضرت پیر محمّد اسمٰعیل صاحبؒ توله روحاني زندګي دَ عشق نه عبارت دے، او داسې عشق چې هیڅ غاړې او حدونه نهٔ لري.
صیب مبارکؒ دَ دې دَ پاره کله دَ بیابان او کله دَ جور سمندر استعارې پکار راولی. لکه چې وائی.

چې حاصل کړي څوک زیبا انعام دَ عشق
همیشه ئې وي په خُله کلام دَ عشق
مدام کرځي په دیدن پسې لیـوالـه
ورته کیږي دَ دیدن الهام دَ عشق
په دریاب دَ عشق غرقاب وي لتهون کاندي
نامعلوم دے همیشه انجام دَ عشق
اسمٰعیل دَ عشق قانون ولم کتاب کښې
حیران کړے یمه دې نظام دَ عشق

دې شعر ونو کښې باباجیؒ یوه ډیره ښکلې او حقیقت کشا خبره کړې ده او هغه داچې "نامعلوم دے همیشه انجام دَ عشق"، اوبله داچې عشق یو ډیر وسیع نظام لري حکمتونه لري معرفتونه لری. ځکه چې دَ دې دریاب غواص خپله ورته حیران دے.

"حیران کړے یمه دې نظام دَ عشق"

زیاتره صوفیائے کرام "حیرت" دَ روحانی ارتقاء او دَ مشاهدٔ دَ ذوق بلند ترین مقام کښې دَ حیثیت په حقله "اصطلات صوفیه" کښې لیکي چې:-

"سالک کا مرتبہ احدیت میں محو ہونا اور تجلی اسم "ھو" کا مشاہدہ کرنا اسکے لیئے مقام حیرت ہے"[1]

---

[1] خواجه شاه محمد عبد الصمد. اصطلات صوفیه ۴۸ مخ

په "فرهنګ اصطلاحات وتعبیرات عرفاني" کښې لیکي:
"در اصطلاح اهل الله امري است که بر قلوب عارفين در موقع تأمل وحضور وتفکر انها وارد مي شود وانهارا تأمل وتفکر، حاجب مي گردد، [۱]
ژباړه: "حیرت د اهل الله په نزد یو داسې امر دے، چې د تفکر او حضور په وخت کښې د عارفینو په زړونو باندې وارد یږي او بیا تأمل او تفکر د هغوی د پاره یو حجاب وګرځي"
کله چې مونږ د باباجي رح د شاعري مطالعه کوو نو دا حقیقت جوت ښکاري چې هغوی د حیرت "مقام" ته رسیدلے عارف دے او هم د دې لا مکاني فضا باشنده دے.

د حیرت په بیابان کښې د جمال په تماشه یم
د دلبر ادا ته ګورم د کمال په تماشه یم
د زیبا مخ په کتو ئې زما تن همه ستې شو
همیشه مې داسې حال وي د دې حال په تماشه یم
اسماعیل یم له پخوا راسې راګیر د عشق په جال کښې
نور به څه وکړم دې جال کښې د دې جال په تماشه یم

---

د حیرت په زولنو کښې بندیوان یم
په جانان پسې مدام په هائے سوران یم

---

د حیرت په بیابان کښې اوتر ګرځم
ساه نیولے په ارمان د دلبر ګرځم

---

[۱] دکتر سید جعفر سجادي رح "فرهنګ اصطلاحات وتعبیرات عرفاني" ۳۳۱ مخ

پہ طلب دَ عاشقۍ کښې حیران کړځم
له پخوا پہ طلب دَ جانان کړځم

---

تحیّر بہ ولې نۀ کړمہ دې حال کښې
چې و سیږم دَ حیرت پہ بیابان کښې

دَ بابا جیؒ دَ شاعرۍ نہ دا اندازہ هم ډیرہ پہ آسانہ لګي چې دَ "فراق وصال" پہ حالت کښې وسی. دا حالت دَ عاشق دَ شدید اضطراب او پریشانۍ وی. دا ځکہ چې عاشق دَ لِی مَعَ اللهِ وَقتٌ. له څہ دَ وصال پہ دریاب کښې غوتې وي. خو دَ "کُلَّ یَوْمٍ هُوَ فِی شَانٍ" حالت ئې پہ یوحال کښې نۀ پریږدي. دَ هجر او فراق عالم سرہ ئې مخ کړی. دلته دَ عاشق دَ ژړا او خندا فرق ختم شي. دا رنګ عاشق هم محب وی هم محبوب لکہ څنګہ چې رحمان باباؒ وائې.

هغه څۀ پوښتې له هجره له وصاله
چې پخپله هم محب شي هم محبوب

لکہ څنګہ چې دَ بابا جیؒ دَ شاعرۍ نہ اندازہ لګي چې دا عشق دَ هغۀ مشرب دے. هغه هر څۀ پہ عشق کښې موندلي دي. عشق دَ هغۀ باطن هم دے او ظاهر هم. دَ هغۀ ټول حال تولہ شاعري دَ "فراق وصال" عالم دے. دوئي هم کله دَ ظهور نہ بطون تہ او دَ بطون تہ ظهور تہ لاړ راشي.

څنګه اوايم چې دايم چې نۀ يم
چې نۀ يم نو بنۀ يم فنا کښې فنا يم
دے زۀ او زۀ دے يم بيل نۀ يم يو ځائې يم
دے دے او زۀ زۀ يم وفا کښې وفا يم

اعلیٰ ډیر اعلیٰ دے زۀ ئې ځان کښې اعلیٰ کړم

اعلیٰ کښې اعلیٰ یم اعلیٰ نه ادنیٰ یم

هم دۀ کښې فنا یم هم دۀ کښې جدا یم

له څۀ نا اشنا یم له څۀ نه اشنا یم

دَ باباجیؒ دَ شعرونو نه دا صفا اندازه لګی چې دوئي دَ وحدت الوجود دَ مکاشفې او مرتبې نه اشنا شوي دي. او بیا دَ سُکر دَ حالت نه صحو مقام ته یعنی دَ بقا بالله په مقام کښې حاضر دے. دوئي دَ وجود او شهود دَ دواړو سیرونو سائر دي.

زۀ خپلې خبرې پدې دُعا سره ختموم چې الله تعالیٰ دې دَ باباجیؒ درجې نورې هم وچتې کړي. الله تعالیٰ دې دَ دوئي په وسیله مونږ دَ معرفت سره اشنا کړی. او مونږ دې دَ خپل توحید په اسرارو او رموزو ونازي. امین

پروفیسر ډاکټر پرویز مهجورؔ
پښتو تخوا سټډي سنټر
باچاخان پوهنتون
چارسده

# څانګړے شاعر، څانګړې مرتبه

پیر صیب حضرت سید محمدؐ اسماعیل دَ اخوند پنجو بابا رحمه الله په مریدانو کښې راځي . او هم په دغه مقام دَ دربارِ عالیه چشتیه نظامیه نهو والا بادشاه صیب سجاده نشین دے . محترم احسان الحق چشتي نظامي صیب لیکي چې " دَ شعر دَ آغاز نه اګاهو ورته خپل مرشد والد بزرګوار حضرت سیّد مولانا عبد السبحان چشتي نظامي رحمه الله فرمائیلي وو . چې اسماعیله ! تا نه په الله تعالیٰ دَ پښتو ژبې یو ستر شاعر جوړ ه وي .

څو کاله وړاندې دَ پیر محمد اسماعیل صیب زوئ عطاء الرّحمٰن چې زمونږ په یونیورسټۍ کښې سبق ویلو . یوه ورځ ئې دَ پیر بابا دَ شاعرۍ ...... کتابونه ماله راوړل او ورسره ئې دَ پیر صیب محترم له خوا دَ ملاقات بلنه هم راوړه نو ما سمدستي دَ ملاقات وعده ورته کړه خو چې کله مې شاعري ولوستله نو دَ لیدو کتو شوق مې وزرې وکړې . دغه زمونږ دَ مینې آغاز وو ، او بیا یو وخت داسې راغے چې زۀ دَ پیر صیب په شاعرۍ او روحاني شان وشوکت داسې مئین شوم چې دغه مینه ورځ تر ورځه زیاتیږي ، کمیږي نه ، او دغه حال دَ پیر صیب له خوا هم ښکاري .

کله چې بنیادم دَ پیر محمدؐ اسماعیل صیب شاعري لولي یا اوري نو دَ هغه خامخا ګمان راځي چې شاعر ډیر اعلیٰ تعلیم یافته ، په منطق او فلسفه پوهه او دَ ژوند په اسرار او رموز خبر دے په حقیقت کښې دغه ټول کمال او قدرت دوي ته دَ تصوّف په لاره فطرت عطا کړے دے .

دغه کمال ما په ورومبي ځل دَ حمزه بابا رحمه الله په ذات مبارک کښې لیدلے

دوه

پیر صیب محترم یو ډیر رُعب داره دروند پښتون ، ملیمه دوستنه او خوش گفتاره بنیادم دے . لیږې لیږې خبرې کوي خو دَ مینې محبت ډکې او دَ اخلاص په توکو پوره خبرې وي . هر وخت دَ گنړ شمبیر مریدانو په مینځ کښې لکه دَ گلاب دَ گل ځلیږي . ماځ په سوونو مریدان لیدلي دي ، چې راځي په ډیر اخلاص دَ دوي لاسونه ښکلوي او غلي یو اړخ ته کیني . دَ دوئ شجره مبارک دَ حضرت سید علی غواص ترمذي (دَ بونیر پیر بابا) په لاره حضرت امام حسین رضؓ ته رسي . پیر محمدؐ اسماعیل صیب که یو خوا دَ ساداتو مبارکه کورنۍ لړۍ نوبل خوا دَ چشتیه نظامیه سلسلې روحاني پاکې لړیې او دَ دغې دوه خوبو نه پس دَ شاعرۍ لوړه مرتبه ئې هم په قسمت رسیدلې ده . شاعرۍ ډیر خلق کوي ، خو دعرفان او تصوّف په اعلیٰ خوبیانو برجقه شاعري نهٔ یواځې تل ترتله ژوندئ پاتې کیږي ، بلکې خپل لوستونکي او اوریدونکې په پاکو خوبونو او دَ الله او دَ رسول صلی الله علیه وآله وسلم په مینه مست او دَ انسان په غم غمژن ساتي .

په دغه دَ غم او دَ درد بې قرارۍ او بې یقینۍ په ډکه دنیا کښې که دَ اطمینان او اُمید څیره چرته ښکاري نو هغه هم دغه صوفیان او ولیان دي . که تاسو یقین نهٔ کوئ نو چرته دغه رنگ محفل ته لاړشئ او غمونو او دردونو وهلي خلق په قرار او اطمینان وونئ نو یقین په موشي چې دُنیا وهلي خلق دَ خپلو روحانی مشرانو په در کښې ځان دَ الله تعالیٰ ج او رسول ص په مینه کښې څومره مست او مسرور ساتي .

صوفیان دَ مسلکونو او عقیدو نه بالا دَ خدائے پاک نزدیکت له ځان رسوي او نور خلق هم په دغه نُور کښې دَ ځان سره رانغاړي

صوفیان دَ نفس په ځائې دَ روح په لمسه زغلي. دَ ځان دَ سپاره ومري خو دَ نورو خلقو دَ پاره دَ ژوندلارې چارې لټوي او معلوموي. مذهب په دلیل ادا نهٔ وي او تصوف/عشق دَ مذهب، مکتب، محراب او منبر دَ حدونو او قیدونو نه ازاد خپل منزل ته زغلي. په دوُ دوُ منزل کوي. په ظاهره خو دَ جسم او روح ترمینځه دَ څو دقیقو منزل دے خو کله کله په دغه منزل کښې کالونه او پیړئ هم ولګي.

تصوّف هغه علم دے دَ کوم په وسیله چې دَ نفس پاکي، دَ اخلاقو صفائي او دَ ظاهر او باطن دَ سمونو او پاکولو لارې چارې معلومیږي دَ الله تعالیٰ پیژندګلي، دَ الله تعالیٰ دَ نزدیکت او رضا لارې پیژندل او په هغو تر اخره تلل دَ سلوک مقصد دے او دغه کار دَ مجاهدې نه بغیر نه کیږي. مجاهده جهاد ته وئیلے شي. دَ جهاد معنیٰ محنت، کوشش او زیار دے. دَ جهاد اعلیٰ قسم دَ خپل نفس خلاف جهاد کول دي چې "جهادِ اکبر" بللے شي.

دَ تصوّف پرانسته (پېل) دَ حضرت آدم؏ نه کیږي. کله چې هغوي دَ خپلې کوتاهۍ دَ وجې اوښکې توئې کړې او دَ الله تعالیٰ په دربار کښې خواست وکړو

ربنا ظلمنا انفسنا وان لم تغفر لنا وترحمنا لنکونن من الخسرین ٥

ترجمه: اے زمونږه ربه! مونږ خپل ځان باندې ظلم کړے دے، او که چرې تا مونږ ته ونهٔ بخښلو او په مونږ مو رحم ونهٔ کړو نو واقعي چې مونږ به ډېر زیات وزیانمن وو.

دغه دَ تزکیه نفس دَ پاره کړو مبے درخواست وو. بښکاري چې الله پاک انسان کله دې دُنیا ته راولیږلو نسو په دې پوهه کړو چې کله ستا نه په شریعت کښې کوتاهي وشي نو ته په طریقت دَ دغې

کوتاهي ازاله کولے شي. نو دَ اکثر صوفیائے کرامو دا خیال دے چې شریعت او طریقت دَ یوبل سره جُخت تړلي دي.

حضرت داتا گنج بخش فرمائیلي دي. "ظاهر دَ باطن بغیر نه منافقت دے او باطن دَ ظاهر نه بغیر زندقه" علم باطن حقیقت او علم ظاهر شریعت دے. دَ علم حقیقت درې برخې دي. دَ الله تعالیٰ دَ ذات علم، دَ صفاتو علم او دَ حکمت او افعال علم. خو دَ شریعت درې ارکان دي. کتاب، سُنت او اجماع.

دَ دې باوجود ملامتي صوفیان هم شته او په خپله خبره هم نهینک ولاړ دي. په هرحال دغه دَ انسان او دَ الله تعالیٰ په خپلو کښې تعلق دے. مونږ دَ دغې نزاکتونو او رازونو نه بې خبره یو.

فقیرې او درویشي په هر رنګ کښې ډیره قیمتي او لوړه مرتبه ده. دَ پیر محمّد اسماعیل صیب شاعرې دَ درد، سوز او ګداز نه ډکه، دَ جذبې په مالګه نمکینه، دَ تخیّل په فراخه وزرو په اوچت الوت او دَ فنې نزاکتونو په رنګ رنګینه ده. دَ دوئ اکثره شاعرې او اصطلاحات بیخي نوې او دَ خپل رنګ دي. په شعر ئې دَ هیڅ اثر نه بنکارې. نه ئے رسمي اعلیٰ تعلیم لرې او نه ئے تنقیدې کسب خو چې هرڅه دائے، نو دَ منطق، فلسفې او ادراک مزې لري. دغه شاعرې دَ شاعرانو دَ پاره تکور، دَ عاشقانو دَ پاره آئینه او دَ صوفیانو دَ پاره دَ لارې نوښه ده. شاعران ئې بنکلوي، عاشقان ئې په زړه پورې نیسي او صوفیان ئې په پیشکی پورې تړلې ګرځوي.

دَ حقیقي حُسن او مینې مفسر پیر محمّد اسماعیل صیب دَ پښتو یو ځانګړے په وي. کار ئې هم ځانګړے دے او مقام ئې هم ځانګړے

د ے.      مننه

په درناوي

نېټه : ۳۰ مئی ۲۰۱۵ء

اباسین یوسفزے
چیرمین پښتو څانګه
اسلامیه کالج
پختونخوا پېښور



# دَ سرخبرې

اَلحَمدُ لِلّٰہِ رَبِّ العٰلَمِینَ ۝ ټوله ثنا صفت هغه الله جَلَّ جَلَالُهٗ لره ده چاچې دَ قلم په ذريعه دَ انسان ذهن روحانه کړو. او درود او سلام په هغه نبی عَلَیْهِ السَّلَام باندې دَچا په ذريعه چې الله تعالیٰ دَ انسانانو دَ نفس تزکيه اوفرمائيله. امابعد!

شکو دَ مولاکریم جَلَّ جَلَالُهٗ ادا کوو. چې دَ مسلمان په کور کښې ئې پيدا کړو. او بيائې دَ حضور پُرنُور صَلَّی اللّٰہُ عَلَیْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ په اُمت کښې شمار کړو. او بيائې دَ امام اعظم رح مقلدين وګرزولو. او بيائې دَ اوليائے کرامو دَ دربار غلامان او خدمتګار جوړکړو.

اَلحَمدُ لِلّٰہِ ثُمَّ اَلحَمدُ لِلّٰہِ چې دَ اهلسنّت والجماعت غوندې ټولګي سره زمونږ تعلق دے. پس دَ ثنا صفت نه خپلې موزوته راځم. دَ پير صيب مبارک رح دَ شاعرئ ديوان "ديوانِ محمّد اسمٰعيل رح" کوم چې ستاسو په لاس کښې دے. دَ ډېر محنت نه پس تکميل ته اورسيدو. الله تعالیٰ جٓ دَ دوي داسعی په خپل دربار کښې قبوله اوفرمائي.

اوليائے کرام اکثر په دوؤ حالاتو سره ځي وي. چې يؤته قال وئيلے شي. او بل ته حال وئيلے شي. دا شاعري چې څومره شوے ده دا په حال کښې شوې ده. ځکه چې په قال کښې انسان دَ دماغونه کار اخلي او په حال کښې دَ انسان رُوح او زړه باندې يؤ کيفيت جاري وي. په دې دَ تصوف خاوندان ښهٔ پوهيږي. ځکه چې په خپل قدرت به يؤ شعر هم څوک جوړ نهٔ کړي. بلکه دا دَ الله تعالیٰ

يو پوزونه او عطا ده. چې چا ته نصيب شي.

ځکه په دې موقع باندې ټولو مريدانو او د پير صيب ﷫ سره مينه لرونکو خلقو ته مبارک باد پيش کوم چې هغوی ته دومره ښکلې ديوان ترلاسه شو.

الله تعالیٰ دې ورله سره زمونږ د صاحب مبارک ﷫ ډير عمر ورکړي. او الله تعالیٰ دې زمونږ په سر د دې اوليائے کرامو دا سايه همېشه اولري.

۞ آمين ثم آمين ۞

کاتب: ضياء الرحمٰن نوري

ايم اے - ايم ايډ

گورنمنټ پرائمرۍ سکول بړا ناروجبه

ضلع نوښار

نېټه: ۱۵ جون 2015ء



بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

يا دَ وي را ياندِ ځان هم ته پخپله
لويه وې پرِ زما شان هم ته پخپله
دا احسان هم ته پخپله په ما کاندې
بيا يې زما ګڼې احسان هم ته پخپله
عجيبه زيبا قانون دې دے حيران يم
جوړه وې ځان له خوبان هم ته پخپله
هم پخپله په خپل ځان باندِ شيدا يې
نور په ځان کړې عاشقان هم ته پخپله
اسمعيل لتانه تا غواړم اے عشقه
کړې دا سوال په ما هر آن هم ته پخپله

زهٔ خو صفتخوان دَ خپل محبوبِ الهٰي يمه
زهٔ يې دَ عشق دام کښې له پخوا راسې بندي يمه
ما خو ورته لاړې ډيرې اُخارلې ستړے شومه
داسې په دلبر نيسې عالمه فرياديِ يمه
ما دَ يار په عشق کښې هُنر زده کړو هنرمند شومه
ځکه دَ عشق باب باندِ دا زهٔ داسې حاوي يمه

پروت په بیابان کښې یم زړې زړې په یار پسې
ویشتے ئې په غشو دَ مژګانو پرهرې یمه

چرې به روغ نهٔ شم دَ دُنیا په طبیبانو زهٔ
غواړم ئې مرهم دَ وصل ډیرې ئې ارماني یمه

ما اسمٰعیل ځکه ګرېوان روغ په دُنیا خوښ نهٔ کړو
داسې ګرېوان څیرے زهٔ اوس نهٔ یم ازلي یمه





لټا زار لټا قربان زما مرشدهٔ
تهٔ مې یاد ئې په هر آن زما مرشدهٔ

رهنما دَ کاملانو ئې کامله
لاره ښائې دَ سُبحان زما مرشدهٔ

ته هم یار ئې هم دیدار ئې ما دَ یاره
کړه واصل مې دَ جانان زما مرشدهٔ

رب در کړې دانائي دَ حقیقت ده
معرفت لري روښان زما مرشدهٔ

کرامات لټا څرګند دي بې مثاله
په دې توان ئې پهلوان زما مرشدهٔ

فخر کړم په غلامئ دا ستا په در کښې
دا په ما دَ رب احسان زما مرشدهٔ

ستا په در کښې جولئ ډکه لټا غواړم
ستا دربار دے عالیشان زما مرشدهٔ

پائنده ستا په کرم زړه اسمٰعیل یم
بې لنا څۀ په جهان زما مرشده





یمه ناست دَ خپلو اوښکو اسطخر[1] ته
پکښې ګورم دَ اشنا ښکلی بشرته
کۀ مدام معلوموُمه اُصطرلاب[2] کښې
معلومیږي همه حُسن دَ یارچرته
امتحان کښې مې له ویرې څنکدن شۀ
مُمتحن مې په انداز ولاړ دے سرته
په تکمیل دَ امتحان به مرګے راشي
ما به بیائي خنده رویه دَ یار درته
سیلانے به یم مدام دَ یار په درکښې
اسمٰعیل به چرې رانشم په بیرته





چې دلبر راکړو دَ مینې خطاب ماله
تېر په زړه يې کړو دَ هجر دریاب ماله

---

1. اُسطخر معنیٰ ده "تالاب"
2. اصطرلاب: یوه آله چې پرِ دَ نمر او ستورو بلندی او مقام معلوموی.

سیلابونه ترږي دا وخکو را بهیږي
راځي کله د دې اوخکو حساب ماله

نهٔ پوهیږم په دې راز زهٔ لا ترا اوسه
کهٔ ئې کړلي د تن غوښې کباب ماله

د یار مینې بندیوان په بیابان کړم
دے بندونو د یار په مخ دا نقاب ماله

په ازل چې کله وېش کیدهٔ د برخو
کړوئې په برخه دا د عشق انتخاب ماله

ښنګ به ماته د همه عشق سبق یادشي
چې راکړےئې ناتمامه کتاب ماله

یار مې ماته دا د عشق سبق راښائي
کړوئې همېش ښېرې کړیوان په دا باب ماله

کهٔ وهمه زهٔ ناري مدام و یار ته
یار مې کله د نارو که جواب ماله

جل وهلے اوچې شونډې ځکه کړم
دے ځائے کړےئې په زړهٔ کښې آفتاب ماله

کهٔ هر څو دا ما کوله مینه پټه
آخر پوه ته کړو دې مینې حجاب ماله

اسمٰعیل د ساقي در کښې توبے پرووت یم
کهٔ ساقي راکړهٔ د مینې شراب ماله

---

پہ مکتب دَ عاشقۍ کښې حیران ګرځم
لہ پښوانہ پہ طلب دَ جانان ګرځم
چې ساقي رالہ شراب دَ مہر راکړہ
مستانہ لہ هغې راسې ناتوان ګرځم
سرې لمبې دَ بېلتانہ دې پہ ما پورې
همېشہ دَ سپین بشر پہ ارمان ګرځم
دَ وِصال نارې وهمہ پہ هر لورې
وار خطا یمہ پُر نمہ چشمان ګرځم
اسمٰعیل بہ چرې جار نہ اُوځم لہ عشقہ
کہ هر څو مرہ غمزدہ پہ جهان ګرځم



پہ صحبتِ دَ درویشانو ځان خمار کړہ
محبت ترِنہ حاصل دَ کر دکار کړہ
عمر تیر کړہ تول پہ عشقِ الٰهي کښې
هر قدم کښې دې یادونہ دَ خپل یار کړہ
کہ دیدن غواړې دَ یار بہ دوا مہ کؤنہ
درویشان چې کوم خوا ځي پسې رفتار کړہ
کہ چمن کښې اوسېدہ همېشہ غواړې
تہ قبول دَ درویشانو هر ګفتار کړہ

معطّر به په وِصال دَخپل جانان شي
ځان په باغ دَ در وېشانو کښې مالیار کړه
که وائې نوش مې کړے شراب دَ یار دَ لبو
اسمٰعیل غونډِ کریوان تول تار په تار کړه





کړمه یار پسې دَ خلقو نه ویر پېټ
ځۍ له سترګو مې دَ اُوښکو بحیر پېټ
هر ساعت ئې کړم یادونه نه صبر یم
لیک په زړهٔ مې دَ یادونو تحریر پېټ
سپین رُخسار یه ئې له ما څنګه هیر یږی
ګرځوُم چې ئې په زړهٔ کښې تصویر پېټ
دَ زیبا سترګو په غشوئې یمه ویشتے
دا زخمونه دی زما په تقدیر پېټ
په هر وَل باندِ ئې دَ زلفو زهٔ بندی یم
دا بندونه مې دے دَ غیر له ضمیر پېټ
ما شراب دَ مهٔو نوش کړهٔ پرِموږ نهٔ شوُم
کوُم نور وپسې هم لا شوکیر پېټ
اسمٰعیل کړمه دَ یار مینه په پېټ
یار مې څکه کوی ما ته تقریر پېټ



نهٔ قرار شهٔ نهٔ قرار شهٔ نهٔ دیار شهٔ زما زړهٔ
کړی له ورایه دیدنو نه چې خمار شهٔ زما زړهٔ

چې خمار شهٔ مدام ژاړی دلبر وینی خنده رُویه
هر ساعت دَ غنچه فم په انتظار شهٔ زما زړهٔ

چې دلبر په کله لو کړه دا نقاب له خپله مخه
دَ بیلتون په زولنو کښې ګرفتار شهٔ زما زړهٔ

بې له اوره ئې ترا وسه څهٔ او نهٔ لیدهٔ دُنیا کښې
عزرائیل ته انتظار کښې ډوب په نار شهٔ زما زړهٔ

زما زړهٔ چې اسمٰعیل ئې دعوه کیږیم زمانهٔ وو
چې دَ چا وو هغه یوړو چې سنګار شهٔ زما زړهٔ



دَ خپل یار دَ پاره مینه دَ عالم کړم
قبول څکه دَ هر چا په ځان ستم کړم

په لټون دَ ګل زخمی په خارستان شوم
تمنا دَ یار دَ وصل دَ مرهم کړم

هر ساعت په خپل دلبر پسې ژړیږم
دَ بُلبل په شان غږونه زیر و بم کړم

په مقراض دَ صبر خپل زړهٔ کے غُسو مه
ستم ګر و سره مینه په هر دم کړم

زهٔ به چرې لهٔ وعدې نه نهٔ جاړ اوځم
په دې مینه کهٔ هر څو زړهٔ قلم کړم

کهٔ هر څو جفا له ما سره څوک کاندي
دا وفا کنړم چې مینه دَ صنم کړم

اسمٰعیل به له چا څنګه کیله مند شم
چې بندي په تورو زلفو محترم کړم





په چپاړې[1] دَ غم ناست یمه دلګیر زهٔ
حیران ګورمه هر لوری ته کوم وِیر زهٔ

په شنا له بحره راغلمه دې تون[2] ته
انتظار کښې یم دَ فلک[3] دلته زهیر زهٔ

مددګار مې بې له خدایه بل څوک نشته
تنهائي لوم لیکلې په تقدیر زهٔ

په څو واره طوفانونو یم زپلې
دَ یار غم کښې دَ ځان نهٔ وینم نظیر زهٔ

اسمٰعیل دَ یار په یادو پائنده یم
دا دولت لوم په دا یمه امیر زهٔ





راښکاره چې دِ رخسار کړو بیا رانغلې
لږ ساعت له دِ بهار کړو بیا رانغلې

[1] چپاړې: تپانچې. جزیره [2] تون: وطن. ځائ [3] فلک: بېړۍ. کښتۍ

چې دِ وار دَ تیر و توره په ما اوکړو
تن دِ ټول زاله پرهار کړو بیا رانغلې
خدائې دَ یاره سپین بښو دِ راشړکند کړه
زما عمر دِ په دار کړو بیا رانغلې
چې تر څو به انتظار کړم ستا دَ سترګو
تل په ما دِ انتظار کړو بیا رانغلې
اسمعیل دِ همیشه لاړې ته ګوري
چې دَ لار دِ پهره دار کړو بیا رانغلې



زه چې دا زړې زړې اهونو کړم
دا ستا په بېلتون کښې دې یادونو کړم
زه چې ګوټومه دا ګریوان ځیرې
دا زه دیوانه دې ستا غمونو کړم
سر په زنګانه یم شو ګیرې کړمه
داسې زه دَ اوښکو سیلابونو کړم
زخمي دِ کړم په غشو دَ مژګانو زه
ګیر دِ زه دَ زلفو په دامونو کړم
حسن دِ سیوا دے ټول عالم بانده
حکه دِ زه سر په توروغونو کړم
هر هډ مې ناري وهي پید تا پسې
ریک دَ بیابان زه فریادونو کړم

ښکه چې پتنګ په شمع ځان سیزي
داسې په څو وار ستي او روتو کړم
ستا چې د کوثر ما اسمٰعیل ته کړي
قبول به ئې په ادا اوٌ په نازونو کړم





زۀ به ستا د در غلام یمه تر عمره
طمع دار به دِ د جام یمه تر عمره
د بیلتون دف دِ مدام راته غربېږي
ستا وصال ته لاس په نام یمه تر عمره
کرد غبار د بیلتانهٔ کړه له ما لرې
زۀ خادم ستا د خدام یمه تر عمرِه
ستا په ښکلي کښې او سیدهٔ له ربه غواړم
زۀ سائل د دې انعام یمه تر عمره
اسمٰعیل مدام رېبار ته لاړې څارم
انتظار کښې د پیغام یمه تر عمره





چې ستا مینه مې په زړهٔ کښې راپیدا شوه
خوا تورئ[1] مې د دُنیا له هر اشیا شوه

---

[1] خوا تورې: نفرت

ستا دَ میني په آتش کښي ډیر سوخته[ك] شوم
راته جوړه له وفا لوي بلا شوه
دي بلا دَ بېلتانهٔ چي کړمه نوش زړهٔ
ستا په لوري دا روانه په صحرا شوه
هر ساعت وايم چي اوس به دلبر راشي
همه عمر مي ملګري دا سودا شوه
انتظار دَ اسمٰعیل اسمٰعیل څهٔ کړو
لمتومه ئې ستا په مينه ئې دا سزا شوه

---



دَ تن ويني مي کړي اوچي بېلتانهٔ
ډير غمونه مي په زړهٔ دي ميلمانهٔ
ستي پروت دَ عشق په اور کښي دَ يار غم کړم
زهٔ خبر دَ خوشحالئ يمه لا نهٔ
ډيري اوښکي مي جړګي يار پسي لاړي
لا تراوسه مرور دے پخلا نهٔ
ترمي ترمي شومه زهٔ په بيابان کښي
زهٔ عادت يم په وفا په جفا نهٔ
اسمٰعیل ديدن دَ يار غوارم کهٔ راشي
چري کړي ما دهٔ بله سودا نهٔ

---

ك سوخته ـ ستي

پہ مکتب چې شوم درون دَ محبّت
راته ئې اوښودهٔ قانون دَ محبّت
امتحان چې مې شروع شهٔ په مکتب کښې
لیک په زړهٔ مې وومضمون دَ محبّت
ممتحن دا امتحان له مانه اخلی
ځې له سترګو مې سیحون[1] دَ محبّت
دَ یادونو دې سبق یم حیران کړے
داسې کړمه دې بیلتون دَ محبّت
امتحان دَ محبّت همیش جاری وی
ځکه زهٔ شومه مجنون دَ محبّت
اسمٰعیل کومه کرَ دَ خپلو اوښکو
چې دا تخم شي زرغون دَ محبّت

---

دَ خپل زړهٔ کتاب کښې لولَم ستا یادونه
ورو په ورو مې پرِ زیاتیږی پوهرونه
ستا له یادو مې خیال بل خوانهٔ جارُوځي
کهٔ هرڅو مې په دې اور سوزی هډونه

[1] سیحون : دَ یو دریاب نوم دے.

اے دلبره په دا چاره پائنده یم
هم دې مالره مرهم اوهم داغونه

زه دَ غم دَ سمندره دَ فلک ملاح یم
له فلکه مې هم برلاړه اهونه

اسمٰعیل دِ لټوی نا اشنا وطن کښې
ستا دَ وصل که پرِ اولګی بادونه





دَ ژوندون په خارستان کښې ګلستان لټوم زه
توره شپه چې پرِ رڼا شی دا سامان لټوم زه

دَ ربیار له خلې خبریم چې لټون به کوم ترمرګه
پس له مرګه چې موندې شی دا جانان لټوم زه

زه الله جل دَ دې دَ یاره په ویران جهان پیدا کړم
په ویران جهان کښې ګرځم تل ودان لټوم زه

دَ اشنا دیدن له ځمه په سلګو سلګو ژړیږم
ورک له ځان یم دې سفر کښې خپله ځان لټوم زه

که دِ ځان او موند جانان دِ تا سره دے اسمٰعیله
ځکه ځان پسې هر لور ته دا جهان لټوم زه



زړه به هاند[1] کوم ترمرګه ستا د مینې
هم هر چا لره دا برخه عطائي ده

چې مدام مې پرې نه ښینې د زړګي وینې
اے دلبره عجیبه دې دانائي ده

په دالاره چوې تلے نه شمه بېل زړه
دا چې څم پرې داخو ستا رهنمائي ده

هالې[2] څه دې بې له مینې چې به ئې اوکړم
دې سفر کښې بس هم دا یوځائي ده

عاقبت به په داچاره دولتمند شم
ما منلې په ځان څکه داخوارې ده

په هامون[3] کښې چې کرم یون زړه دیار درته
دا په ما اسمٰعیل ستا مهرباني ده



دَ غمونو توره شپه ده سحر نشته
لا تراوسه مې مرهم دَ پرهر نشته

پرهر جلے یمه پروت په بیابان کښې
لا طبیب له زما خواته څه ګذر نشته

[1] هاند: کوشش [2] هالې: دلته [3] هامون: بیابان

پرهر ونه مې لا ورو په ورو زياتيږي
هيڅ تجويز ئې ما سره د هغه نشته

د بيلتون په نمر ورسيږمه خدايه
له مودو راسي مې سوري په سر نشته

اسمٰعيل به وايه څنګه شم بې غمه
چې په څنګ کښې مې زړه پوري دلبر نشته



چې توقع دِ دَ ديدن لرمه
څکه څلګې دَ زنکدان لرمه

دَ بيلتانهٔ په بيابان کښې مدام
په زړهٔ ارمان ستا دَ چمن لرمه

تا چې يوٌ وار اوکړهٔ کاتهٔ دَ ميني
څکه اهوَنه په دهن لرمه

ګُله زخمي دِ په اغز وشومه ډېر
په وينو سره څکه لمن لرمه

زهٔ اسمٰعيل به بې وفا نهٔ شمه
مدام په ستا په لور رفتن لرمه

چې توبه نهٔ که له بدو ګناهو دی
نو توبې ئې په خلهٔ هسې مریدی دی

دا لباس په طریقت کامیابی نشته
چې په لار دَ حقیقت ځې کامیابی دی

نابینا به معرفت څهٔ رنګ له اوکه
چې پرده ئې په چشمانو ګمراهی دی

چې په دام دَ تورو زلفو بندی نهٔ وی
کهٔ دعوه کاندی دَ عقل کم عقلی دی

هوښیارتیا دَ عشق مکتب نه حاصلیږی
په دُنیا بس دغه چاره کمالی دی

اسمٰعیل دَ عشق هُنر له رب نه غواړم
ما منلې دَ خپل پیر رهنمائی دی



په هر دم او قدم ستا دَ زلفو هر خم یادوم یا نبیؐ
زړهٔ زما شهٔ قلم ستا په هجر صنم شومه پیر پرهری

ستا دیدن ته لیوال یم حبیبه
دا مرهم لتا غواړم طبیبه

دا ناری زړهٔ وهم ځې له سترګو مې نم یم بلبل سحری

انتظار کښې مې عمر تېرېږي
زما تن په دې اور کښې سوزېږي
يو ارمان دا لرم چې بس تا اووينم دا مې سوال دے عمرې
ستا رخسار مې يادېږي جانانه
بې لتا عمر ګران دے بې شانه
په دې خوږمه قسم زما زړه ترنم کښې ستا غوارې يارې
دَ دُنيا دې ژوندون نه حيران يم
څنګ به تېر شي ډېر تنګ په جهان يم
مبتلا په دې غم اسمٰعيل يم محکم سيدي مرشدي



که بهار غوارې رو مېے ترخزان شته
ځان زخمي کړه په اغزونو ګلان شته
کومه لار چې دَيار درته ده ورغلې
طوفانونه په دې لار دَ هجران شته
هر ساعت پکښې دَ غم نوبت غږيږي
دې سفر کښې دَ بيلتون مطربان شته
دا سفر دے دَ ياد ونو په صحرا کښې
هر عاشق لره دَ اوښکو باران شته
دَ رېبار په لاس به يار نخې هم درکړي
خو بدله کښې ورکول دِ دَ ځان شته

اسمٰعیله چې د یار په لوری درومې
وایه مه چې بل څۀ هم په جهان شته



چې حاصل کړی څوک زیبا انعام دَعشق
همیشه ئې وی په خلهٔ کلام دَعشق
مدام ګرځی په دیدن پسې لیواله
ورته کیږی دَ دیدن اِلهام دَعشق
تل ژړا کاندي له خلقو نه په پټه
چې څوک اُوخیژی یو وار په بام دَعشق
په دریاب دَعشق غرقاب وی لټون کاندی
نامعلوم دے همیشه انجام دَ عشق
صبح وشام غواړی شراب دَیار دَلبو
بې افطار ئې وی جاری صیام دَعشق
دَ دهٔ مرګ په دهٔ اختروئ دا قانون دے
ورته اوشی دَهلال پیغام دَعشق
اسمٰعیل دَعشق قانون لولم کتاب کښې
حیران کړے یمه دې نظام دَ عشق

په واثي[1] دِ ډېر هجوم دَ زلفو خوړ دے
په زړګي مې ځکه پوړې مدام اوړ دے
په څو وار مې در ته خواست دَ ديدن اوکۀ
کړه منظور نۀ پتا خاش[2] يم حال مې نور دے
له عالمه پټ دَ عشق مو کوټو شغول[3] کړم
صريخ[4] مړګ به راله راشي ستا په لوړ دے
ستا جهت ته در روان يم خوښه ستا ده
چې څه وايې زړۀ مې تا پسې نسکور دے
اسمٰعيل به دا وفا مدام کوُمه
دَ دُنيا له نور و چارو مې زړۀ تور دے



خواجه غريب نوازه زما دَ زړۀ آرامه
ساقي ئې دَ خوارانو سيراب مې کړه له جامه
ديدن ته دِ ليوال يم مئين دِ په جمال يم
دلبره بې مجال يم قائل ستا دَ کمال يم
هر آن دې يادومه قربان دِ شم له نامه
بيلتون دِ کړم زهير يا ديدن ې مې اجمير
رهبر ئې بې نظير زيبا بدرِ منير

۱ واثي: رخسار ۲ خاش: عاشق ۳ شغول: دفن ۴ صريخ: ښکاره

چینه یٔ دَ فیوضاتو ښکاره ناتمامه
محبوب دَ پاک اکبریٔ زما لخت جګریٔ
عجب ښکلے بشریٔ ښکاره لکه دَ نمریٔ
همیش مې اقتداء ده په تا پسې امامه
سلطان الاؤلیاء یٔ ځلنده رهنمایٔ
تیرو لره رڼایٔ خواجه مردِ خدایٔ
صفت دِ ناتمام دے عاجز یم له کلامه
والله ډیر غنچه فم یٔ چشتیانو له مرهم یٔ
دَ ټولو محترم یٔ یادیٔ په هر دم یٔ
اسمٰعیل لره قراره مهربانه ګل اندامه





دَ جمال په کمالاتو کښې غرقاب یم
له مودو راسې لاهو په دې دریاب یم
دَ رواج پردو کښې پټ سوزم له خلقو
په خپل ځان باندِ ګواه یمه کباب یم
په ناروناروِ مې حلق اوچ شهٔ له نمه
ځکه پروت هسې بې دمه لاجواب یم
روغ به نهٔ شم چرې هم بې له وصاله
څه مَیِن په ډیر زیبا عالی جناب یم
دا رازونه چاته نهٔ دی دَ ویلو
اسمٰعیل ځان ته پخپله په خطاب یم

خبر نهٔ یٔ چې دا ګوټې پرېشان ولې
ګرځوې دا د لستونړې ماران ولې

چې پالنه دِ دَ زړهٔ ځوے نهٔ شی
ورکوې یٔ تهٔ کوهر په زبان ولې

خلاص به نهٔ شي له کړاوه دې یارې کښې
ډیر حیران یم چې دُښمن یٔ دَ ځان ولې

وفادار دُنیا کښې شتهٔ لټون یٔ اوکره
کړې دَ کټې په ځائے تهٔ دا تاوان ولې

اسمٰعیل وایٔ خرارې پرېږده راشه
هیروې په دې چمن کښې طوطیان ولې



په خیل ښنک کښې کهٔ تهٔ خوښ دِ دَیار نهٔ وے
راکډار به دَ هجران به سازار نهٔ وے

که موندل دَ ګل کیدے شوے بې کړونه
بیا به چرې هم په ښنک کښې یٔ خار نهٔ وے

بې ژړا کهٔ دَ یار دړ ته خوک ورتلے شوے
عاشقان به یٔ په زړونو پړهار نهٔ وے

بلبلانو به چغار نهٔ کهٔ دُنیا کښې
اورېدے یٔ کهٔ صفت دَ مالیار نهٔ وے

بوا کان په خزان نهٔ وو داسې زېلي
کوځیدهٔ کهٔ ئې په طلب د بهار نهٔ وې

کهٔ لیدې ورته په شمع کښې یار نهٔ شوې
پتنګ چرې به هم سوې رُخسار نهٔ وې

کهٔ یار نهٔ وې څهٔ به نهٔ وو بې له خدایه
اسمٰعیل له به ئې هم انتظار نهٔ وې





جنجر[۱] د جنجالی[۲] د ګل په څیر شومه میره کښې
شومه په جوغن[۳] کښې ښهٔ میده په میکده کښې

جند[۴] چې مې په خوا کښې شهٔ تما ورته حیران شوم
شهٔ مې د جنان[۵] سره پیوند په توره شپه کښې

د یار مې همه حُسن په دې تُون کښې لیدې تشي
څنګه چې وی شمع بله شوې په پرده کښې

جوق[۶] د پتنګانو چې چورلک وهٔ له دهٔ نه
دے وو خندہ رویه هر پتنګ ته اندازه کښې

واچوهٔ جولان[۷] ما اسمٰعیل ته دهٔ یخیله
اوره ئې کولو پورې په جونرق[۸] زما سینه کښې



۱ جنجر: مړاوے ۲ جنجالی: یو بوټی چې زېړ ګلونه نسی. ۳ جوغن: لنګوټ
۴ جند: لخت جګر (معشوق) ۵ جنان: زړه ۶ جوق: ټولي ۷ جولان:
څولنې ۸ جونرق: د پوښې غنچه (زړه)

دَ دُنیا په هر ساعت کښې ژړا اوکړه
مسافر ئې خپل وطن له کډا اوکړه
چې ئې کړې کډائې لتا نه وړاندې
دې بادشاه پسې دَ عشق اقتداء اوکړه
اے نادانه دَ حسد کاروبار پرېږده
په بازار دَ محبّت کښې سودا اوکړه
دې سودا لره پیدا ئې په دُنیا کښې
هره چاره بس دَ رب دَ رضا اوکړه
اسمٰعیل دَ رب رضا همېشه غواړم
خپل مرشد مې داسې چاره په ما اوکړه

---

غم به خُنک اوپېژنمه چې زهٔ غم شوم
بندیوان په تورو زلفو دَ صنم شوم
په ما ئې غشي دَ مژګانو راورېږي
نشانه دَ یار دَ غشو په هردم شوم
فریادونه کړم شراب دَ لبو غواړم
طمعه دار ئې همېشه دَ دې مرهم شوم
سزاوار داسې دې عشق کړم په دُنیا کښې
ستې پروت لکه په اور دَ جهنم شوم

اسمٰعیل ناري وهمه په دي اور کښې
تماشه دَ یار په مینه دَعالم شوم



نهٔ یو کل مې دَ چمن ستا بې اغزوا ولیدهٔ
نهٔ مې ځان په آئینه کښې بې څلګوا ولیدهٔ
دَ حیرت په بیابان کښې ستا دَ مخ په ارمان ګرځم
کهٔ رښیار مې ستا دَ لور په اشاروا ولیدهٔ
کهٔ دَ دار په سر کیدے شوے دید نو ته دُنیا کښې
په خوار مې ستا دَ زلفو په رسوا ولیدهٔ
نهٔ مې توان دَ بیلتانهٔ شته نهٔ زهٔ توان لوم دَ صبر
تن مې تل ستا په منقل کښې په لمبوا ولیدهٔ
اے نګاره اسمٰعیل خو ستا دَ مینې اور ایره کهٔ
بیا به روغ شی ستا رخسار کهٔ ئې اِیروا ولیدهٔ





دَ خپل مرشد په مینه همه جهان لټوُم
دے مې رهبر دَ مینې ځکه جانان لټوُم
په بحر و بر ګرځمه زهٔ لرو بر ګرځمه
زخمی جګر ګرځمه ډیر په هنر ګرځمه
دَ خپل دلبر دَ وصل هغه بوستان لټوُم

چې ئې زخمي په غشو زه د مژګانو يمه
غلام د ده په مينه زه د خوبانو يمه
کړمه يادونه د يار ښکلي چشمان لتوم
يم ارماني ئې د در لوې د بېر ښکلي بشر
زلفان ئې دي معطر هيڅ دي پر مشک وعنبر
چې نر شر ميبوی دا نمر هغه تابان لتوم
د بېلتانه په توره چې ئې پرهر يمه زه
په انتظار د هغه لخت جګر يمه زه
ورپسې ژارم مدام ګل خندان لتوم
په غلامۍ کښې د يار خوښ يم که يمه په دار
خيردې په اور د مينې که سوزم ليل النهار
زه اسمعيل د مينې د هنر توان لتوم





د دار سر باند ولاړ زه داسې خه يم
د دې دار راته وسلې خپل اشنا دی
د هابيل غوندې وروميے مقتول زه نه يم
د عشق تيغ داسې وژلی هزار ها دی
قاتلان مې عجيبه وژل زما که
زما زړه کښې ماته پټ دی دښمنا دی
په څو واره ئې وژلے يم عالمه
داسې مري په څو څو واره چې شيدا دی

عاقبت به مې مرګ یې بیائي آشنا له
عاشقان مدام اخته په دې سودا دي

رهائي دِ پس له مرګه مبارک شه
اسمٰعیله مخکښې نشته دا رښتیا دي



په شراب چې شوم زۀ خمار دَ عشق
هغه دم شۀ په ما پورې نار دَ عشق
ډیر غموُنه مې له زړۀ نه راتوکیږي
ما څوړے دے په زړۀ کذار دَ عشق
دَ بُلبل په شان ناریٰ وهم فریاد کړم
نارې نۀ اورې زما ماليار دَ عشق
زما مخ باندِ ولې جورې کړے اوښکو
لاهو کړې یمه دې آبشار دَ عشق
زۀ غرقاب دَ عشق دریاب کښې تل اوسیږم
چرې نۀ لرې دریا قرار دَ عشق
دے سفر مې عجیبه دَ عشق په لاره
جوړه شوې مې په زړۀ دۀ لار دَ عشق
مړک په څنګه اُووهم دَ عشق له بوجه
چې کړو ئې تیر زما په تن دیوار دَ عشق
په بل څۀ به څنګ زما تنده شي ماته
له پخوا یم عادتي میخوار دَ عشق

جار یه نهٔ اوځم چرې زهٔ له وعدې خپلې
چې ځې کړے دے یو وار اقرار دَ عشق
تاج او تخت کهٔ دَ دُنیا ر الله څوک راکړي
زهٔ به ئې کړمه په یو آن کښې زار دَ عشق
بې له عشقه یه ژوندے به مې حساب شم
یمه خوښ پرِ کهٔ زهٔ یم په دار دَ عشق
اسمٰعیل به څنګه بله سودا اوکړم
چې په زړهٔ کښې مې دے جوړ بازار دَ عشق



کله چې دِ تختے یم دَ مینې په دې دام
هغې راسې نهٔ یم زهٔ هیڅ کله په آرام
ما وې کهٔ ته به راشې ته رانغلې زهٔ به څهٔ کړم
خدائې خبر چې څهٔ دے زما پس له دې انجام
ملوک چې کچکول واخست به بدرئې پسې روان شهٔ
زما کچکول په غاړه دے ستا مینه کښې مُدام
چې کله به جانانه ستا دیدن زما نصیب شي
زړې زړې به تا پسې زما شهٔ هر اندام
لارې ته دِ ګورمه چې کله به ته راشې
څو به دې جانانه یم راتلو ته په قیام
کله رسیدے شي خوبان تا ته په ښائست کښې
ډیر ښکلے آقائې دے ښائست په ستا تمام

هر یوٴ پیغمبر ؑ وئیل چې لیدے مې جانان وے
ځکه شوې په شپه دَ معراج تهٔ دَ دوئې امام
عیسیٰ ؑ وئیل اُمتی مې دَ حبیب کړه ذوالجلاله
دا سوال دَ دهٔ قبول کړو ذوالجلالِ والاکرام
هم کړې ابتداء ئې دَ عالم وه ستا له نوره
هم دَ رسالت ئې بیا په تا کړو اختتام
زبور دے کهٔ تورات دے کهٔ انجیل دے واړه حق دی
نازل په تا قرآن دے نشته داسې بل کلام
صفت دِ نا تمام دے پوره کیږی نه هیڅ کله
بس وایم اسمٰعیل مدام په تا درود سلام





چې په اورکښې دُرمرجان وی زهٔ به ئې څهٔ کړم
بې منزله کهٔ جانان وی زهٔ به ئې څهٔ کړم
بنهٔ پوهیږم چې منزل ئې دلته نشته
کهٔ ځانته ئې راته حیران وی زهٔ به ئې څهٔ کړم
دَ لحد تورو تیرو کښې ژوند سے پروت یم
کهٔ روښانهٔ درست جهان وی زهٔ به ئې څهٔ کړم
همیشه چې غم خوری کړم دا مې پت وی
چې مې دغسې گزران وی زهٔ به ئې څهٔ کړم
زهٔ خو وایم چې مدام وے دَ گل څنگ کښې
چې ما بین کښې خارستان وی زهٔ به ئې څهٔ کړم

اسمٰعیل دَ یار دَ دړه په لمتون ګرځم
بې له یاره که خوبان وي زهٔ یه ئې ټهٔ کړم





تورې شپې مې دَ غمونو په نصیب دي
نارې ځکه مې په شان دَ عندلیب دي
دَ دلبر په تورو زلفو بندیوان یم
خورې کړې ئې په مخ دا په ترتیب دي
کوم طبیب ته چې نارې وهمه خلقه
داوا رونه په ما ګرې دې طبیب دي
سپین رخسار مې دَ نګار راته بعید دے
بس یادونه ئې هر آن راته قریب دي
اسمٰعیل دَ عجیبه مکتب طالب یم
دا ایکل راله په زړهٔ ګرې خطیب دي





دَ شبنم په شان لاړ نهٔ شې دَ آفتاب په راختلو
رنګ اخستے دے ګلانو هم په داسې سوزیدلو
وفائې خوځان سیزل دی بس هم دا لوئې غنیمت دے
بې له اوره سرو له نشته بل یؤ شے دَ پاڅولو

دَ زړګو په لاس ځان پاک کړه خيرن لاړنه شي دلبرله
دا زړګو هم ستا مرشد دے په واضحه دلائلو

معرفت خويږلوئ اور دے زغم دَ اور ځان کښې پيدا کړه
زړ چې پاک وی څه ئې پاک وی بيا دَ اور په تاؤ خوړلو

پيدا کړے پاک الله ئې معرفت لره دُنيا کښې
بې پروا تږ ولې کړې هسې خوشے په ځنګلو

اسمٰعيل دَ خپل مولا نه دا انعام دَ مينې غواړم
زَه دا سوال کوم په پټه هم ښکاره شو په غزلو



په دريا کښې انتظار کړمه عبور ته
وار خطا له وړا يه ګورمه ستا نور ته

په جلوو دِ ستي کيږم هم ئې غواړم
لکه څنګه چې موسیٰؑ تلو کوهِ طور ته

هله پوهه په ګفتار دَ راز و نياز شوم
چې ګذار شوم کله ستا دَ عشق تنور ته

کَهٔ هرڅو مره دَ عالم ګناه وی ډيره
ستاله رويه به ئې رب نهٔ ګوری قصور ته

په جنّت کښې به همه وار ه داخل شی
اے دلبره چې دې ګورمه منشور ته

دَ کوثر پياله په لاس چې راته ګوری
په سرور کښې يم دَ هغه وخت سرور ته

اسمٰعیل به ستا تصویر زړه کښې ګرځومه
د محشر په ورځ به ئې بنایمه غفور ته





ای د بحر و بر په مخ دلبر خواجه ثانی
اخوند پنجو نامداره محبوب سبحانی

ته د اولیاؤ په ټولی کښې سر بالائې
ته د اجمیری خواجه په عین کښې یؤ ډائې
ته د دغه دربار د پاره ماله رهنمائې
داخل مې کړه دې دربار ته اوکړه دا مهربانی

ستا د محبت په باغیچه کښې زه اوسیږم
ستا بنګلی بشر پسې زه شپه او ورځ ژړیږم
ستا د بیلتانه په اور کښې پروت یمه سوزیږم
ای نګاره ستا د دیدن ډیریم ارمانی

ته ئې د فیوضاتو یؤ لوئې بحر بې پایانه
اوکړه یؤ نظر د کوم ما ته عالی شانه
ستا د ګلستان ګلان زه غواړمه لتانه
ستا په محبت کښې مې دِ پاک رب کړی فانی

په تا چې څوک شیدا شی د دنیا نه بې پرواشی
وی په حقیقت کښې شهنشاه چې ستا ګداشی
رضا ترِ ستا له رویه پاک رسول او پاک مولاشی
وریږی رحمتونه ډیر په ستا لامکانی

ماته دَ خپل دَر په غلامانو کښې قبول کړه
دور رانه دَ وَصل په مرهم دَ زړګي نول کړه
دا سوال مې منظور نه په خاطر دَ پاک رسول کړه
چې نه شم اسمٰعیل په دواړه کوَنه تاوانی





ستا دَ زلفو په هر وَل کښې بندیوان دے زما زړهٔ
ستا دَ سپین مخ پلوشو نه ډیر حیران دے زما زړهٔ
زهٔ به ستا دَ نورو سترګو په تکل کښې مدام کړځم
دَ لیدو ئې له پخوا نه په ارمان دے زما زړهٔ
دَ ژوندون په هر ساعت کښې به دِ هیر نهٔ کړم دلبره
ستا تصویر مې دے په زړهٔ کښې پروَدان دے زما زړهٔ
ستا په یاد کښې نمر شپو بر مې نه چې زهٔ ګورمه ژړیږم
شپه او ورځ راباندِ یوَدی په لرزان دے زما زړهٔ
اسمٰعیل به له خپل زړهٔ نه دَ کوم غم تپوس کومه
چې ستا غم کښې دَ غمونو بیابان دے زما زړهٔ





دَ هجران په دریاب ډوب یم راته یار یکښې لید ے شی
جواب نهٔ راکوی ماله بنې ناړې مې اوریدے شی

یم دیدن پسې ئې لیواله لټوم جانان د مینې
په مکتب د ننه ناست یم د عشق باب راته ښودے شي
دا سبق ریبار راښائی څۍ له سترګو مې رودونه
ښنګ چې زهٔ ریبار نه ژړام داسې څوک بل ژړیدے شي
کړی جانان راته خبرې په سرو لبو په مُسکا کښې
ارمانی ئې د ګفتار یم چې به دا کله کیدے شي
د بیلتون په ژړندهٔ دل یم په خزان کښې تل اوسیږم
ګلان ښهٔ په سترګو وینم وایم داګهٔ پسرلے شي
اسمعیله چې یار غواړې ستې پروت اوسه په اور کښې
بې له اوره به چوړ کله د زرګر په لاس کالے شي





چې شناخت مې کله ستا د رخسار اوکهٔ
په لمبو د سوزیدو مې اقرار اوکهٔ
په لیدو چې دیوٶ واړې په ژړا شوم
د خندا مې پس له هغې انکار اوکهٔ
بې منزله څنګ خندا اوکړمه یاره
په بیابان مې ستا د عکس چې دیدار اوکهٔ
زهٔ دا عکس دِ ګرځومه په هر لورې
قبولیت د دې یارے کهٔ دِ یار اوکهٔ
دیر کړون کښې دِ لټون پسې ګرځیږم
ما تپوس دِ په څو وار په بازار اوکهٔ

په چغار لکه بلبل کړمه ستا مینې
داچغار په ما فرقت کښې مالیاړ اوکړهٔ
اسمٰعیل مدام صحرا کښې له خدایه
غواړم تاڅکهٔ مې دیدن په ګلزار اوکړهٔ





پائنده په میخانه یم ستا دَحُسن
جلوه ګره پروانه یم ستا دَحُسن
پلوشو دِ ډیر داغونه دی راکړی
دَ لعلونو خزانه یم ستا دَحُسن
ناخبر له خوشحالے یمه دُنیا کښې
زهٔ بندی پهٔ جیلخانه یم ستادَحُسن
ستا دَ مینې په مقراض مې زړهٔ کے غُش دے
تل ژړیږم دیوانه یم ستا دَحُسن
بې لتا مې بل څه نشته په ګفتار کښې
اے دلبره افسانه یم ستا دَ حُسن
لمتُومه دِ هر دړ کښې دَ خُوبانو
زهٔ ملنګ په زمانه یم ستا دَحُسن
اسمٰعیل به ستا جمال ښکه هیرومه
چې دَ عشق نشانه یم ستا دَ حُسن



لاړ نۀ شي خيرن له دي وطنه خوب رويانوله

هغه سروګلانوله

ځان دَ نيک عمل په سيحون پاک کړه نوبيا زه

شمع بله شوي ده دُنيا کښي پتنګانوله

دنا له صادقانوله

تن په دي ستی قابل دَ خاک کړه نوبيا زه

ولي لري لري له ګلانوګرځيدۀ کوي

ډير دړته حيران يم اے کم بخته داته ځۀ کوي

ځۀ چي دړته وائي خپل دلبر هغه ته نۀ کوي

ولي تړِ په لوړ دَ کړنګونو باندِ ستلۀ کوي

هغه ګلستان دے رب جوړکړے ماليارانوله

خپلوعاشقانوله

زړۀ دَ عشق په تيغ دلته دړدناک کړه نوبيازه

دلته مسافرئ غم دَکوړ اوکړه ښادانه ته

ځان سره توښه دَ نيک عمل يوسه دُنيانه تۀ

ولي نۀ ويريږي مسلمانه دَ مولٰی نه تۀ

ځان په دي سفر کښي کوړے پج کړه له تاوانه تۀ

اور دَجهنم دے تيار شوے تاوانيانوله

دي دَ دين ټکانوله

نفس دَ حُب په تورۀ تۀ هلاک کړه نوبيازه

تا نه رب دُنیا کښې ډیره مینه دَ جناب غواړي
تا نه ستا دَ اوښکو ستا کړیوان باندِ سیلاب غواړي
تا نه به محشر کښې دَ دې ژوَند پوره حساب غواړي
تا نه به په قبر کښې منکر نکیر جواب غواړي

راځوي په قبر کښې کروزونه منکرانوله
دغې بدکارانوله

مخکښې له اَجله خلهٔ په واک کړه نو بیا ژړه

زړ شه په بازار دَ محبّت کښې سوداګر شه تهٔ
اے مسلمه روره پوُره معموړ په دې هنر شه تهٔ
سور په دې سوړلۍ شه باخبر له بحر و بر شه تهٔ
پریږده دَ دُنیا دا محبت بس قلندر شه تهٔ

جوړې په عدن کښې دی ماڼړے قلندرانوله
دې دَ رب دوستانوله

خوئ دَ یار په مینه مینه ناک کړه نو بیا ژړه

ادا که دَ ساقي دَ جام تهٔ دلته ذده کول غواړې
ځان که ئې دَ دې له رواجونو خبرول غواړې
تهٔ که اوسیدهٔ له خوبرویانو سره تل غواړې
خاوړې کړه هستي خپله که ځان زرغونول غواړې

جوړه دروازه دَ یار دَ دې ده خاکسارانوله
داسې ځوان مردانوله

ځان دَ اسمٰعیل په شان خاشاک کړه نو بیا ژړه

پہ بقا پسې فنا شه د بقا پہ لوړی دړو مې
پہ وفا مرد خدا شه ځان را او باسه د لومې

چې تر خو پہ داسې کړ ځې پہ دنیا کښې بې وصاله
نا آشنا ئې ځان آشنا کړه نا آشنا بہ ئې ترکومې

یار خوا ئې زړ را درومه زما خواله ډیر پہ مینه
چې روان تر پہ بل لوري ئې نو دا یار بہ څنګه مومې

چې پہ اور د مینې ئې زړونه سوي ته وې پہ دنیا کښې
پہ جیبونو د سینو کښې کرځوي تشې رجړومې

اسمعیل پہ زړه داغونه لرم پټ ډیر پہ سینه کښې
نشانې ئې پہ کفتار زما عالم ته شوې معلومې



تا چې د کلا نو سره دا آغزي پیدا کړه
تا پر عاشقان هغې خندا له پہ ژړا کړه

خوبنه دِ ژړا ده لږ ساعت له او خندا مدام
دواړو له دِ دلته خوبرویان پہ ځان شیدا کړه

ستا د عشق دې باب دا عاشقان ډیر حیران کړي دي
څکه پہ عالم کښې له عالمه تا جدا کړه

ژوند د عاشقئ دِ وی هر څوکه وی ځکړون پکښې
تا د عشق پہ چاره ډیر ادنی عالم اعلی کړه

زۀ هم یۀ زخمي په دې اغزو یم قویا دو نه کړم
غوا ړمه ګلان لټا مالیا ره کۀ دِ دا کړه

ډیر شکر ګزار یم په دا برخه اسمٰعیل رب ته
ډیر زړي زړې زما هر ونه ستا رضا کړه



چې داخل کله دَ یار په دروازه شوم
دَ یار حُسن ته حیران په ننداره شوم

یار مې ما ته خوخبرې دَ راز او کړې
په خبرو مې دَ یار زۀ دلیوانه شوم

سپین رُخسار ته ئې زۀ ګورم بې خودئې کښې
په نشه ئې دَ شرابو مستانه شوم

په دُنیا کښې به خنک ګورمه بل لو ر ته
چې عادت زۀ دَ دلبر په میخانه شوم

لږ ساعت له اسمٰعیل نۀ وومر اغلے
همه عمرئې په در کښې ننذرانه شوم



څۀ په ما کۀ یمه په دریا کښې ملغلره
چې لوې یم پرته داسې دا زۀ دَ یار له دره

داسې بنديوانه يم چې ژوند مې تول په بند کښې دے

يم ځکه دَ دُنيا له دې رواجه ښا خبره

چې زه له څه خبريم، نه دې خلق خبر له هغې

خبريم له موجونو، دې په ما له سمندره

درياب کښې تصويرونه دَ آفتاب مهتاب ليدے شي

پوره ته پسې ننلے نهٔ شمه يمه بې هنره

ارمان مې هم دا يؤ دے چې وے تل دَ يار په در کښې

چرې به مې مخ نهٔ وو کرځوے ئې له بشره

ژوندے ئې ښخ کړې يمه قبر مې صدف دے

ځکه به مې برخه ساقي اوکه له کوثره

چپو دَ سمندره سره بلد يم اسمٰعيل

رپمه ډير ځکه دَ عقبیٰ ده په ما ويره





پورې مې لمبې په تول بدن شوې که راځې

يار ه علامې دَ زنکدن شوې که راځې

وايمه څلکو کښې چې جانان به مې اوس راشي

اوښکې مې له سترګو په رفتن شوې که راځې

عمر تيرومه ستا يادونو کښې دلبره

ياتې افسانې مې په وطن شوې که راځې

ستا ګلابي مخ پسې زخمي په خارستان شوم

وينې مې توئې ځکه په لمن شوې که راځې

تاچې اسمٰعیل سره وعده د دیدن کړې وه
ځکه دا ناري يې له دهن شوې کۀ راځي



ما په ژړا د کائناتو سره نۀ کوله
تاکۀ په غشو د بیلتون باندې ویشتلے نۀ وے
دلبره ما به بې لتا دا مینه څۀ کوله
کۀ ستا له رویه مې دا مینه پیژندے نۀ وے
نۀ په ژړا باندې خوشحاله يې دلبره زما
هیڅ تۀ خبر نۀ ووم کۀ تا راته خندلے نۀ وے
ستا په رضا زما رضا ده دا اقرار کومه
په ژوند مې څۀ کۀ دې د عشق په اور سیزلے نۀ وے
ستا په دیدن پسې کچکول په غاړه کوځه زۀ
داسې به نۀ ووم کۀ تا راته کتلے نۀ وے
ما اسمٰعیل کۀ دُنیا پریخې نۀ وے ستا په مینه
دا به مې نبنه وه کړیوان به مې شلیدلے نۀ وے



د نیکۍ په شکموځې[1] سینه کړه پاکه
ځ دې ولې دے اړوے له ادراکه

[1] شکموځې: ریګمال

په استوګنه د ستړي[1] لا خفه نهٔ ئې
خلهٔ دِ روګدي[2] ده لا هغسې بې واکه
دوباره دِ راتلهٔ نشته بې غم خوٌ یه
هسې نه چې سزا دې کاندي دې دناکه
د ملاح سره نژدې کښېنه بېړې کښې
چې خبر دِ کړي ملاح له ژوند وژواکه
په د ګلو[3] په خلاص نهٔ شې اسمٰعیله
نهٔ دِ روٌ د ټیښتې شته له دغــه خاکه





د هجران په سرو لمبو مې تن ستې شولو دلداره
ستا د مینې کاروبار کښې بې اسرې ګرځم نګاره
کتا روو د انتظار کړم په خووار تهوتې توتې زړهٔ
مددغوارم ستا د وصل چې شم خلاص له انتظاره
مدام وینم ستا تصویر د خپلو اوښکو په تالاب کښې
هیر به کله زما نهٔ شې ګل بدنه جلوه داره
د خزان بادونو یوړم لکه پا نـړه بیابان تـه
ستا یادونه کړم ژړیږم زما نشته بله چـاره
حیران ګورم ستا په لورې وایم اوس به طبیب راشي
بې لتا کله رغیږم راځو کښه شه رب د پـاره

[1] ستره: په بېړۍ کښې د خاروُو اودرولو ځائے [2] روګدي: عادت [3] د ګل منت

یم شیدا په تا دلبره اسمٰعیل له هغې راسې
چې یو وار دِ نقاب لوکړو لره ساعت له دَ رخساره



دا په عشق کښې دیوانه نهٔ یم نو څهٔ یم
ذرهٔ دَ شمعې پروانه نهٔ یم نو څهٔ یم

په خُمار کښې زهٔ تاے وهم له خیاله
دا عادت په میخانه نهٔ یم نو څهٔ یم

په نشه نشه کانهٔ کړمه هر لور ته
په شرابو مستانه نهٔ یم نو څهٔ یم

دَ ساقي په دَر کښې پروت یم بې مجاله
دائې په دَر کښې نذرانه نهٔ یم نو څهٔ یم

درست جهان په ما تور تَم دې عاشقي کړو
زهٔ بندي په جیلخانه نهٔ یم نو څهٔ یم

ما نه جوړ په ژوندون مړې دَ لحد دې
په صدف کښې چې دانه نهٔ یم نو څهٔ یم

اسمٰعیل په زړهٔ غلبیل یم یار دَلاسه
چې دَ غشوئې نشانه نهٔ یم نو څهٔ یم

دریاب کتاب غرقاب کړمه دَ حُسن په چپو کښې
آفتاب مهتاب خطاب راته کوی په اشاره وکښې

روان دَ یار په لور یمه سلګئ وهم ژړیږم
یادومه په هر دم اؤ په قدم صنم سلګو کښې

غمونه مې په زړهٔ باندِ بسیار دَ خپل دلبر دی
سکور شوم دَ حضور دَ عشق په اور په تورو شپو کښې

عمر تیروُمه په دُنیا کښې دَ هجران زړهٔ
ګل مې په خوځل وژل زما کوی پردو کښې

غوارم ئې وصال دے طلبګارئ له پخوانه ډیر
دے دلیل جمیل دَ اسمٰعیل په دې مصرعو کښې

---

په شمه زړهٔ نال کوُمه سنا دَ یادو
چې رالوئ شی دا ونې دَ شمشادو

په شرابوئ دَ مینې کړم پالنه
ډیر دې چارئ پوې ایستم دَ لادوبادو

کهٔ بند ونه مې ډیر اوترل خپل زړهٔ ته
کړهٔ لاهو دې زما سترګو بُرعنادو

په لمسون دَ غلیمانو نهٔ ستیروُوهُم
کهٔ هرڅو دے راته کړے نامرادو

اسمٰعیله کهٔ کرم دَ الله نهٔ وے
چیچے نهٔ شي دا نیني دی دَ فولادو



اے خدایه چې تورتم په ما جهان دے
نه پوهیږم چې چمن کهٔ بیابان دے

په لمبو کښې مې دے عمر پرِستی شوم
دَ یار مخ مې په زړهٔ کې باندِ ارمان دے

دَ یار مخ چې مې شغلي کړې زړهٔ ئې لوګے کړم
بس له هغې مې په یار پسې ګذران دے

چې دَ یار دِ څوک یارې که دا به ئې حال وی
لکه څنګه چې زما ژوند په لړزان دے

په دریاب چې دِ لاهو کړمه یؤ واړې
لا تراوسه مې لاهو په دریاب ځان دے

کهٔ هر څو مره مې داتن خاوړې ایرې شي
خیل دلبر به یادوم چې دِ جانان دے

سلسله دَ یار دَ عشق کله ختمیږي
که هر څو مره مې شي عمر دَ هجران دے

اسمٰعیل له خوشحالی کښې برخه اوکړه
دغه سوال ئې له مودو نه په زبان دے

پیدا کړې رب طالب دَ یوٙ مطلب یم
داخل ځکه زهٔ دَعشق په دې مکتب یم
زهٔ دَ عشق هُنر زده کومه مدام ژاړم
له اَزله دې هُنر له منتخب یم
خپل مُرشد مې دا هنر ماته راښائی
دې مکتب ته زهٔ داخل په دې سبب یم
په ظاهر کښې زهٔ حنفي مذهب لرمه
په باطن کښې زهٔ دَخپل پیر په مذهب یم
اسمٰعیل کړمه کدا دَ یار په دَر کښې
لو مودو راسې فائز په دې منصب یم



مسافر یم ځکه ژاړم دَ یار غم راسره مَل دے
بې پروا به څنګه کړځم چې دَ یار وطن مې بیل دے
لاچارې ده غم خوړې ده خوشحالي په دُنیا نشته
دَ یار مینه مې په زړهٔ ده ځکه اور راباندې بل دے
زهٔ چپو دَ سمندر کړم بې مجاله ځکه چُپ یم
داسې غم زما په برخه رب لیکلے په اَزل دے
زهٔ په داسې مخ مئین یم چې ثاني ئې چرته نشته
هر یوٙ تار ئې دَ زلفانو تور له تورو دَ سُنبل دے

اسمٰعیل به په دُنیا کښې چرې هم اونهٔ خندیږم
ما خوړے په زړهٔ غشے برابر بنهٔ مکمل دے





دوارہ کوئنه په قدرت اِنشاء الله[1]
په سپین مخ دَ پاک حضرت اِنشاءالله
اِنس وجن ئې عبادت لره پیدا کړهٔ
هم هُنر دَ محبّت اِنشاءالله
شریعت ئې په دُنیا باندِ حاوی کړو
طریقت اؤ حقیقت اِنشاءالله
څوک چې ځلے په دا لار دَ حقیقت دے
دے صاحب دَ معرفت اِنشاءالله
اسمٰعیل دَ خپل مُرشد په دَر کښې ژاړم
ما دَ پاره دا نعمت اِنشاءالله





رب به راکړی ستا دیدار اِنشاءَالله
کړی لتانه به مې زار ان شاءَالله
زهٔ لائق ستا دَ یارئ نهٔ یم خو یرویه
ستالهٔ رویه به شم یار اِن شاءَالله

[1] اِنشاءَالله : جوړ کهٔ الله

خار ستان کښې ستا دَ دَر په لور روان یم
شم داخل به په ګلزار اِنْ شاءَ الله

ستا دَ مینې کاروبار غواړم له ربه
شي نصیب به مې داکار اِنْ شاءَ الله

اسمٰعیل په ستا طلب چرې پرېږدم
شم عُشاقو کښې به شمار اِنْ شاءَ الله





پرې دِېنو دستور دَ خیبر وائې زهٔ پښتون یمه
هسې کوې لاف چې زهٔ ماتحت دَ دې قانون یمه

ستا اباواجداد چې په کوم لوړې باندِ ختلی دي
هغوئ په دغه لاره خپل منزل ته رسیدلی دي
نهٔ چې په هغې ته ډیر خفه دِ په بېلتون یمه

خالد بن ولید له ئې ورکړے وو سیف الله خطاب
خوښ وو دَ الله او دَ الله دَ دوست عالي جناب
هیر دِ کړو بهادر نیکهٔ په دې غم دِ مجنون یمه

داسې بې پروا ولې له ځاته اوله وروره شوې
ولې مَرَور له خپل وطنه او دَ کوره شوې
نهٔ پوهیږم زهٔ دِ ناخبر له دې مضمون یمه

ډیر کړم غمزده ستا دَ دې غم چارې پښتون شه تهٔ
دَ داسې بې وفا دستور له بنده زر بیرون شه تهٔ
غواړم اسمٰعیل وفا مدام په دې کړون یمه

ستا دې حُسن مستانه کړمه دلبره
تا عادت په میخانه کړمه دلبره

سپین رُخسار دِ لکه شمع تل بلیږی
په کاتهٔ دِ پروانه کړمه دلبره

په خوار دِ کړم ستی او نهٔ صبریږم
تا بندي په جیلخانه کړمه دلبره

مخ دِ پټ زانه په تورو زلفونهٔ کړې
تا رُسوا په زمانه کړمه دلبره

په لمبو به دِ ځان سیزمه ترمرګه
چې دِ میني دیوانه کړمه دلبره

ستا په مینه باندِ پایمه دُنیا کښې
ځکه خوئ زهٔ شاهانه کړمه دلبره

اسمٰعیل شوم قلندر ستا په شرابو
دَ خپل دَر دِ نذرانه کړمه دلبره



لاړې لکه پرخه دَ سحر دَ نمر ختو سره
ولې بې وفا شوې تهٔ زما دَ غم لیدو سره

خیال کوه دې لاړې ته اَغزی دي پرِ نَخښی نهٔ شې
خیر دے زهٔ بَلدیم له پخوا راسې اَغزو سره

غم خوشحالي دواړه وروړ اوخوږ دي هيڅ پروا نشته
يمه خندا رويه داسې ځکه دَ سلکو سره
غمونه مې په برخه رسيدلي له اَزله دي
ژړوند وي دَ بيړۍ مدام درياکښې له چپو سره
رب دِ بې وفا ما اسمٰعيل نه ګوري داسوال کوم
عمر دِ زما وي دَ پتنګ په شان لمبو سره





ستا دَ حُسن نظارې دي په هر مخ کښې
راته جوړې ننداري دي په هر مخ کښې
پلوشې دِ په هر لور دي خورې کړې
پرکيدونکې ئې زرې دي په هر مخ کښې
چې په تابانده په کومه ورځ مئين شوم
له هغې راته نارې دي په هر مخ کښې
په هر مخ کښې دِ لټوم ځکه دلبره
دَ وصال دِ اِشارې دي په هر مخ کښې
اسمٰعيل ستا په جلوو ورو ورو سوزيږم
خط وخال زما ايرې دي په هر مخ کښې



ما ته د هجران په تورو شپو کښې هم لیدے شي
داسې جلوه دارې په پردو کښې هم لیدے شي
ستا د پلوشو په لوړی به د مه قدمونه زۀ
حسینه د بیلتون په سرو لمبو کښې هم لیدے شي
داسې لاهو شوے ستا د مینې په دریا کښې یم
دَم په دَم د غم په دې چپو کښې هم لیدے شي
ځله په اعزو دِ شوم زخمی لږ راتنه اوګوره
ځلګی درته وهمه په ځلګو کښې هم لیدے شي
ستا په محبت د اسمٰعیل زړے قلم شو لـــو
ځکه ئې د غزل په دې مصرعو کښې هم لیدے شي

---

هم غرقاب د عشق دریاب کښې هم مجرم یم
هم سرهسک اوړم له شوقه هم نادم یـــم
هم دیـار درپسې ژارمه مدام زۀ
هم بادشاه د یار په در کښې هم خادم یم
ډیر حیران یمه د عشق دې کاروبار ته
نۀ خارج یم له دې کاره نۀ قائم یم
غمزده دُنیا کښې اوسمه عالمه
زۀ خوراک اؤخښناک کومه اؤصائم یم



دَ زیبا مخ په شغلو دِ داجهان همه روښان شهٔ
چې خزان وو ډیر زَیلے تل بهار په ګلستان شهٔ
نهٔ ګل وو نهٔ بُلبل وو نهٔ مالیار وو په دُنیا کښې
اے دَ حق دَ باغ مالیاره داچمن په تا ودان شهٔ
تا دَ زلفو په هر وَل کښې ډیر بندی کړهٔ سوی زړونه
هر عاشق په څوڅو وار کهٔ ستا په سپین بشر قربان شهٔ
دَ آدم دُعا قبوله ستاله رویه شوه حبیبه
ستا دَ اسم په لیدلو ترِنه دور همه خفګان شهٔ
کهٔ تهٔ نهٔ وے څهٔ به نهٔ وو بې له رب العالمینه
کُل عالم ئې کړو پیدا چې شیدا په تا سبحان شهٔ
ستا دَ در په ګدا ایټې کړمه هزار هزار شکرونه
کوم فخر په دا برخه چې صدقه مې لتا ځان شهٔ
اسمٰعیل په همه عمر ستا دَ حُسن صفت خوان یم
بې لتا مې په دُنیا کښې اے دلبره ژوندون ګران شهٔ

اے ساقي دَ جام ادا زده کول غواړم
په نشه کښې دَ عشق يام ته ختل غواړم

اوچې شونډې مې دَ جام ځېنلو ته پرېږده
نور مې څۀ له کړوې چې ئې څښل غواړم

په خپل ژوند به تر نه خلۀ چرې لر نه کړم
ستا په دړ کښې همیشه اوسېدل غواړم

يمنى عقيق چشمان مې ستا ياد يږي
خيلو ليچو له ستا زلفې سُنبل غواړم

بې لتا مې بل ارمان په زړکي نشته
ستا دَ مخ په شمع تل سوزېدل غواړم

اسمٰعيل ستا بيلتانۀ زړې زړې کړم
له ريباړه ستا په مخ ستا ليدل غواړم



غمونه مې په زړۀ باندِ ځائے کيږي نه اهونه شُو
مل ئې له ګوګله دَ هجران تاؤ دۀ باد ونه شُو

لاړۀ دَ فلک په نور داخل دَ يار په دړ شُو تول
جور تر دَ يار دړ کښې ما دَ ياره بيا سازونه شُو

بياله دې سازونو مې په زړۀ کښې جوړ آهونه شي
داسې په داچاره مې زړې زړې هډونه شُو

ماته تصویر وته دَ آشنا ښکارې دې سار سره
پاتې له ما ځکه دَ دُنیا نور رواجونه شُو

زۀ خو دَ یادونو په صحراکښې عمزده ګرځم
جوړ مې دَ یادونو له خمیره غزلونه شُو

خیر دے اسمٰعیلهٔ داتیکلی په تقدیر دی ستا
پورته دَ بُلبل پښتان دَ خُلې دِ اوازونه شُو





په تپوس تپوس دِ ستړے په بازار شوم
ډیر زخمی دَ بیلتانهٔ په خنډ وخار شوم

دیوانه له هغې ورځې یم دلبره
چې مئین دِ په زیبا ښکلې رُخسار شوم

له سپین مخه دِ نقاب لرکړه خوبرویه
ستا دیدن پسې ستې په سور انګار شوم

دے کچکول زما په غاړه ستا دَ مینې
ستا دَ دَر په دَرشل ځکه څوکیدار شوم

اسمٰعیل به تا یادوم چې څو ژوندے یم
داسې نور لکه دَ سکور په انتظار شوم





په چمن کښې ګوځېدهٔ ګرمه له ورایه
خپل دلبر ته ژړېدهٔ ګرمه له ورایه

چې دلبر راته مُسکا اوکړي نشه شم
بې خودي کښې لړزېدهٔ ګرمه له ورایه

شومه تور لکه بوړا په بیابان کښې
دَ خپل ګل زړهٔ بوټېدهٔ ګرمه له ورایه

ارماني دَ یار دَ دړیم له پخوانه
په سایه ئې اوسېدهٔ ګرمه له وړایه

چې په غشو اسمٰعیل له وړایه لګم
زړهٔ به څنګه خندېدهٔ ګرمه له وړایه



کهٔ څوک ټول عمر په تا پسې ژړېږي
چرې ستا دَ یاړئ حق نهٔ ادا کېږي

چې شیدا شي څوک په تا باندِ دلبره
تل دَ مینې په اوړ سوزي نهٔ صبرېږي

ستا لټون کښې شي کنار له دې دُنیا نه
دَ یادونو په دریا وړ و وړ و ډوبېږي

اے صنمه مدام ستا په انتظار وي
انتظار بې بې له مرګه نهٔ ختمېږي

اسمٰعیل دَ عزرائیل لاری ته ګورم
چې به کله دغه زیرے په ما کیږي





نهٔ خزان دے نهٔ بهار دے سور انګار دے سرهٔ ګلان
نهٔ خفه یم نهٔ خوشحاله داسې ژوند ته یم حیران
په اغزو ئې زخمي کیږم ګلان وینم خنده رویه
په شنو پاڼو ئې خپلې وینې اوچوم یمه خندان
نهٔ قریب یم نهٔ بعید یم نهٔ ژوندے یمه نهٔ مړمه
دَ حیرت په زولنو کښې هسې پروت یمه ناتوان
زهٔ دَ صبر باغیچه کښې اُمیدوار یم له خدایه
په دې صبر مې داحال شهٔ چې ئې ګرمه بندیوان
چې دلبر سرهٔ به کله ملاقې زهٔ اسمٰعیل شم
په دیدن پسې ئې هر لور ته ګرځوم خیرې کریوان





تن مې وریت شولو همه دَ بیلتون نمرته
خوږ اشنا مې راله رانهٔ غے په بیرته
دَ آه چتر به نزکومه په سر نیسم
لمتُومه به دمې له سورے چېرته

دَ ریخي کړیوان تارونه مې بیا د یوړه
په لغړه سینه ځمه دَ یار دړه ته
کهٔ توفیق یې دَ لیدو راله رب راکړی
همیشه به یې زهٔ کوړمه بشر ته
بنهٔ په یام بږدم قدمونه په دا لاره
ډیر حیران یم اسمٰعیل دَ عشق هنر ته





زړهٔ مې ستا دَ تورو سترګو په تکل دے
داسې نیک مې خدائے کړے په ازل دے
لټوم دِ په هر لوري دل آرامه
ستا لیدو پسې مې کړې توکّل دے
له بل څهٔ به خنک خبر شمه دُنیا کښې
چې دِ اور دَ بیلتانهٔ راباندِ بل دے
ستا یادونو خېژولے یمه دار ته
مالیدلے په څو واره دا اجل دے
اے دلداره رب دَ یاره راڅرګند شه
ماخوړلے په زړهٔ غشے مکمّل دے
بل هیڅ غم دَ اسمٰعیل زړهٔ باندِ نشته
بس یؤ غم دے ستا دَ وصل چې یې مل دے



ستا د لوري چي په ما باندِ نظر شۀ
ما هلال دِ په محراب اوليد اختر شۀ
روژه دار وُم ستا ديدن ته له بخوانه
زړۀ مي يخ ستا د سرو لمبو په کوثر شۀ
بيا دِ ولې رانه مخ پټ په نقاب کړو
دوباره زما زړه غوځ په خنجر شۀ
د حجاز په لوري کوم چي په راشي
انتظار مي تا ته بيا شام وسحر شۀ
اسمٰعيل به کړم وفا چي څو ژوندے يم
ستا په مينه کښې مي زده داسې هُنر شۀ



بس دې د چل تلل کړه بس د چل سره دې تللو کښې
ځان دِ کړه د دې، چل دے د عمر په ځنګلو کښې
کار د دې د پاره د جناب په خوښه ويش کړه
ټول عمر هر امر تۀ قبول د دې در ويش کړه
داسې بهترين خدمت کښې ځان تۀ دګه پيش کړه
ماله دِ دراز ارمان ستی کړو په سيزلو کښې
وايه مدام چي تۀ تازه لکه نرګس وے
پرېږده دِ کار و نه داهمه واهمه عبث وے

زړه چې دِ کوي دَ يار په ياد لکه جرس وي
ولې دِ خوښ ته دي ديدنو ته په سرو ګلو کښې
لارې دَ شوګ مار وکړه ته بند او ګوره ځان ته
مينه دَ خوبانو په زړه يوسه ګلستان ته
پېش ئې په ادب کړه ته نبي آخر زمان ته
الله دِ کړه رئيس په زمانه دَ الوتلو کښې
وايم دا اشعار زړه اسمٰعيل بنه په جور خيال
خيال مې تصوير ونه دي دا راکړه دَ پيد رخيال
داسې مې پدِ رله دي ورکړې دَ حيدر خيال
مدام يه مې خيالونه وي په مينه ياد دَ لو کښې





دا دَ عشق په دام بندي يم يار دلاسه
دا بې اوره چې ستي يم يار دلاسه
زړه په دام کښې دَ خپل يار په تکل اوسم
خوړم داغونه خوپتي يم يار دلاسه
همه عمر چې بندي په جيلخانه وي
دا زړه دغسې قيدي يم يار دلاسه
له خندا په ښنګ خبر شمه دنيا کښې
په ژړا چې زړه عمري يم يار دلاسه
زړه په هوش نه يم هميش بې هوشه پروت يم
عشق دَ يار کښې خماري يم يار دلاسه

چې الله باندِ توکل دَ مینې کاندی
زَهٔ هغه توکّلی یم یار دلاسه

په ژړا چې یې خوراک څښاک دَعشق سبق وی
دا زهٔ هغه سبقی یم یار دلاسه

په سبق دَ مینې ډیر وهل مې یار کړه
زهٔ په وینو رنګ ساقی یم یار دلاسه

یار دلاسه په دریاب دَعشق غرقاب یم
زهٔ دَ عشق دَ باب قاری یم یار دلاسه

اسمٰعیل خیری ځکه ګریوان کړځم په عشق کښې
په دې برخه ډیر راضی یم یار دلاسه



دَ حیرت په بیابان کښې دَجمال په تماشه یم
دَ دلبر ادا ته ګوره دَ کمال په تماشه یم

دَ زیبا مخ په شغلونو زما تن همه ستې شهٔ
همیشه مې داسې حال شهٔ دَ دې حال په تماشه یم

کُنګو سے چې څنګه ګل سره بورا کوی دَ مینې
داسې یار سره مدام دَ قیل وقال په تماشه یم

په خیالونو کښې غرقاب یم مرور یم له دُنیا نه
بل څهٔ نهٔ وینم په سترګو دَخپل خیال په تماشه یم

اسمٰعیل یم له پخوا راسې راګیر دَعشق په جال کښې
نور به څهٔ اوګورم دې جال کښې بس دَجال په تماشه یم

پہ سکروتو خپل دلبر یمہ نیولے
پہ څو وارہ ئې پرِ زړہ یمہ داغلے ہُو ہُو

دَ رواج پہ نقاب پټ یمہ لہ خلقو
اندروں رالہ دے اور څکہ سیزلے

پہ لټون دَ صنم کړځم مدام ژاړم
دَ حیرت پہ سور لڼئ سور یم چرتہ تلے

دَ یار حُسن راتہ ښکاری پہ هر لوري
چرې داسې حُسن ما نۂ دے لیدلے

میخانہ کښې دَ یار ناست یم بې مجالہ
نش جامونہ ځلي تہ نیسم جَنل وَهلے

کۀ شراب رالہ دلبر دَ مینې راکړۀ
لہ پخوا نۂ ئې زۀ دړتہ یم راغلے

اسمٰعیل دَ عشق دَ باب ماهر استاد یم
ماتہ دا سبق ماهر استاد ښودلے



پکار کۀ دِ زما پہ زړۀ دَ یار پښان وفا کړلہ
زما دِ هم بُلبل سرہ یو ځائے پہ دې چغا کړلہ
نا آشنا یمہ تراوسہ لا دَ مینې نہ جانانہ زړۀ
تا زما پہ لوري یو زړہ غوندِ بریښنانہ کړلہ

دا څهٔ چې کیږي دا خو د بېلتون په تماشه یمه
څکه دِ زما دَ حال زما په ځلهٔ وینا کړله
په باغ کښې دَ ګلانو زهٔ اوسیږمه په یا نړو کښې
خو بیا دِ هم ژړا زما ګلا تو ته نما کړله
دلبر چې تا ته اوویل په باغ کښې دې مالیا رشي دے
نو تا پخپله سیمه کښې دَ نورو هم سودا کړله
رضا په دې سودا یمه یواځې به ما څهٔ ګول
جانانه په دې چاره دِ بیا ما څکه خندا کړله
غواړمه مدام لتا زهٔ اسمٰعیل دا وفا
اے زما کریم خدا کهٔ تا نوره دارا کړله



دا سبق دے خومره ګران دَ محبّت
وی طالب ښیرې کړیوان دَ محبّت
خوک چې زده کړه دَ دې باب کاندې ژړیږي
یادوی پکښې جانان دَ محبّت
شپه او ورځ دَ محبت په غشو لړی
تیروی داسې ګذران دَ محبّت
هر قدم دَ خپل دلبر په لټون اخلی
کړځوی په زړهٔ سامان دَ محبّت
اسمٰعیل دَ محبّت په دام بندی یم
کوم څکه دا بیان دَ محبّت

چې ترکومه زړه ژوندے يمه جهان کښې
ته روغ ځائے به مې اونه وينې گريوان کښې
همېشه به ئې ګرځومه ووند په اوښکو
اوچ به نه شي چې ترخويم په هجران کښې
په ښلکو ښلکو مې تاپسې زيړه ژاړي
بې لتائې بل څه نشته په بيان کښې
زړه به ولې بې لتا خندا کومه
خندا نه کوي بورا چرې خزان کښې
په صحرا کښې مې د تن غوښې ورتيرې
يم په طمعه همېشه د ګلستان کښې
اسمٰعيل دِ په ديدن پسې رنځور يم
ځنکدن کښې چې مې پرې نردې ارمان کښې

---

ښنک خوشحاله په دنيا شم چې مې يار په دنيا نشته
راته بيا بيا ريبار وائې دلته هغه وفا نشته
د حيرت په بيابان کښې د هجران په لمبو سوزم
تل ژړيږم ما د يار يو ساعت له خندا نشته
هر ساعت بس تصوير ونه بښکلومه د جانان زړه
د دنيا په دې بازار کښې ماله بله سودا نشته

په نصيب مې ګدائي ده کوم فخر په دا برخه
ما په شان د يار په مينه لوغړن بل ګدا نشته

مسافر يم په دُنيا کښې له وطنه يم ډير لرې
ډيرارمان د خپل وطن کړم لا د رب مې رضا نشته

زړه له دا داړه ورکومه چې يو ورځ به رب رضا شي
بې د خپل رب له رضا نه بله چاره زما نشته

زړه مې هلته او زه دلته هر ساعت په ما د غم دے
اسمٰعيل له په دُنيا کښې له دې لويه سزا نشته





ستا په لوري به زه ولې نظر نهٔ کړم
هير به چرې دا ستا بشکلے بشر نهٔ کړم

چې په تا باندِ شيدا شومهٔ دلبره
هغه راسې هيڅ پروا د بل د ر نهٔ کړم

غلامي به ستا د در کوم ترمرګه
همه عمر به تربل خوا ګذر نهٔ کړم

د پتنګ پشان به ځان تا باندِ سيزم
بې له عشقه به زهٔ بل يو هُنر نهٔ کړم

چې يو وار مې خپل زړګے تالوه در کړو
اسمٰعيل به دا بيا چالره ورنهٔ کړم



ستا دَ منې په لمبو باندِ کسکړيم
هم رېګونه دَ صحرا هم سمندر يم

په هر لوري ستا دَ مينې سرې لمبې دي
توان ئې نهٔ لرم دلبره بې هُنر يم

لاهو شوے يم دَ هجر په درياب کښې
بې مجاله په ارمان ستا دَ يشر يم

سپين رُخسار دِ ياد وُم هره شلګے کښې
ديوانه کړمه ستا مينې قلندر يم

په ګريوان مې باران وورې له چشمانو
اسمٰعيل دَ بيلتانهٔ په تيغ پرهر يم

---

څهٔ پرِکهٔ زهٔ ژاړم په ژړاې دَ يار څهٔ
يمه زهٔ په دار په واويلا دَ ننګار څهٔ

صدف کښې ملغلره کهٔ پرته وي په دريا کښې
مدام کهٔ وي دريا کښې دَ دريائې په بار څهٔ

په برخه له ازله چې تيارهٔ دَ شپې نصيب دهٔ
خوره کهٔ شي هر څومره په تيارهٔ دَ سحار څهٔ

اور چې څوک ستي کړي هم هغه چغې سوري که
هر څوکهٔ ژړا کاندې په ستي بيا دَ نار څهٔ

ګلان چې شوکوي خوک په اغزوئې زخمي کیږي
ګلان ورته خندا که دَ ګلانو په بنار څهٔ

بُلبل که فریادونه شپه اَو ورځ په ګلستان که
کهٔ ډیر کړي فریادونه په بُلبل دَ مالیار څهٔ

کوښږي کهٔ بورا مدام لټون کښې دَ ګلانو
تور لکه دَ سکور شهٔ په بورا دَ ګلزار څهٔ

پتنګ کهٔ ډیر په مینه ځان ستی کاندي په شمع
دَ شمعې دَ پتنګ په دغه سوي رُخسار څهٔ

یار چې مې خمار کړمه یو وار په خپله مینه
کړیږم زهٔ دَ یار مې اوس زما په خمار څهٔ

دَ یار مې خوبان ډیر دي زهٔ ئې خس هم نهٔ یم دړکښې
اسمٰعیل غونډِ لاچاره په غریب او په خوار څهٔ





په بازار دَ محبّت کښې سوداګر شه
عندلیب غونډِ مدام په چغو سر شه

بې هوده ژوند دِ ژوند نهٔ دے کهٔ پوهیږې
ناخبرئې له خپل ژونده باخبر شه

دَ سینې عظیم مکتب دِ دے شار کړے
بنا او کړه په سبق ئې منور شه

همه عمر ځان مطلوب پسې طالب کړه
په څو وار ه ور پسې غوځ په خنجر شه

د خپل شان نه ځان خبر کړه چې ته څهٔ ئې
د حیوان خوئونه پرېږده شابه زړ شه
د ساقي نه جام د مهر مدام غواړه
په دې مست او سه دُنیا کښې قلندر شه
ادا زده کړه د دې جام د نوش کولو
دا نېټوس له اسمٰعیله او کړه ور شه





عشق بس عشق زهٔ لتا غواړم خدایه
بل څهٔ به زهٔ څهٔ کړم همه بل څهٔ دي بې ځایه
خوښه مې ژړا ده همیشه به زهٔ ژړا کړم
وایم ځکه داسې چې تا وېلي دي داوایه
خندا مې هم ژړا ده په بندګښې څهٔ خندا وي
نوره نوره غواړم راته نوره یاره بنایه
عشق ئې تهٔ پخپله ځکه برخې د عشق غواړم
ډیر دِ په دې برخوېسې کړهٔ د ځان ګدایه
هر څو که چاله ور کړې تهٔ دا برخې نهٔ مرېږي
ځکه وایم بیا بیا د ساقي دره ته مې بیایه
هغه ښکه انسان دے چې لتا به مینه نهٔ غواړي
په شمع پتنګ چرې هم ستي نهٔ دے له ورایه
هر څو وار که ستي یم بیا په څو وار دِ ستي شم
ستا مینه اسمٰعیل لره آفتاب دے هم ده سایه

سپین رُخسار ته چې دِ کله په کاته شوم
هیڅ خبر نه شوم له ځانه چې بیا څه شوم

لا تراوسه پورې ورک یمه له ځانه
داسې غوښ دِ په خنجر د بیلتانه شوم

د یادونو په دریاب کښې دِ لاهو یم
ستا د وصل په کنار تر کنار سنه شوم

ښه پوهیږمه چې وړو وړو نورو به وبیږم
په چپوکه ئې هر څومره په ښاسته شوم

اسمٰعیل چې کوم دیدن لتانه غوارم
امکان نشته بې له مرګه پوهه ښه شوم



لکه ګل چې په بُلبل کوی نازونه په چمن کښې
دا دستور صنم کړی ماسره زما د زړګه وطن کښې

سازونه مې سینه کښې د یار حسن ته غږیږي
پاتې نه شه له دې اوره خلقه ځائې زما په تن کښې

ښکنک به وایمه داحال زړه چې الفاظ ئې زمانه زده
چې کوم زده مې دی هغه هم کړی څنګه پاتې دهن کښې

خبر نه یم له دې چې زړګه په کوم وطن روان یم
نا اشنا یمه یس کورم ځپل اشنا ته په رفتن کښې

ارمان د یار د درکوم زما په چوي هیر نهٔ شی
ژوندے په مرحساب یم د یادو نو په کفن کښي
اشنا ته له مودو راسي دا سوال کړم اسمٰعیل
چي مي پري تړي د لدار ه بې نوا په زنکدن کښي



کهٔ دیدن د دلبر غواړې خبردار شه
په دُنیا له هرو بدو توبه ګار شه
د نیکی په کالو ځان دلته ستګار کړه
خپل دلبر نه بنهٔ صورت کښي نمودار شه
محبّت د ذوالجلال کړه په هر آن کښي
له دي ځایه تهٔ د هغه باغ مالیار شهٔ
هر قدم دِ په هُنر بره خار ستان دے
په طریق د قُدسیانو د ګلزار شه
طریقت د حقیقت د پاره اوکړه
خپل مرشد پسي دِ هر دم په رفتار شه
معرفت په نیک عمل دلته موندے شی
په دې فضل د الله شکرګذار شه
دا ګفتار د اسمٰعیل چري هیر نهٔ کړي
بنهٔ ئې پوهه په الفاظو د ګفتار شه

کۀ وائې چې زۀ مؤمن شوې ځان خبر کړه له خپل شان
زما دغه وینا ده ځان کړه دلته بندیوان
موندل دِ دَ دلبر داسې آسان نۀ دی نادانه
موندے شی خو چې تۀ وړسې ځیرې کړې کړیوان
هسې په خُلۀ وائې چې لیدَلے مې جانان وے
نۀ لړې په زړۀ کښې لړه مینه دَ جانان
پرهیز له ناره واؤ کړه همیش ترِ روښاڼه دار شه
رابه شی اختر لکه اختر پس له رمضان
په تیغ دَ محبّت باندِ حلال شه چې قبول شې
قبول دی چې چاکړے له چشمانو دے باران
مړک دې ولې هیر دے احمقانو دے هیر کړے
خلاص به شې له غمه چې دِ یاد وی هر زمان
پاتې دا دُنیا ده له هر چا نه کۀ لږ هیرې
خاؤرې کړۀ دې خاؤر و ډیر کلونه دَ بوستان
وینا دَ اسمٰعیل کۀ هیره نۀ کړې تۀ تر مړګه
روښانه به شې ستا پرِ هغه عمرِ جاودان

---

بیلتانۀ مې په جنان[۱] کړلو اوړ پورې
بې له آهه مې خبرې نۀ زده نورې

[۱] جنان : زړۀ

زۀ به ولې فرياد نۀ کړم دې غم کښې
په نقاب چې ئې کړې پټې سترګې توري
دَ بورا په شير خزان کښې هسې کړځم
پسرلے کۀ مې کړې بيا وني سمسوري
کاش چې ناست وے زۀ مدام دَ يار په څنګ کښې
انديښني به وې زما تولې نسکوري
اسمٰعيله ښۀ خبريم چې ښاپيرا شي
بيا به چرې هم بل لوري ته نۀ ګوري





چې په يار پسې ژړيږي دا پر زيرے دَ خندا دے
په دې چاره ترِ رضا شي دا قانون عجب زيبا دے
چې وي خوښ دَ خپل دلبر خوګ په ژړا به مدام سړوي
چې ترمرګه پورې ژاړي دغه کَس مردِ خدا دے
خنده رويه هسې ښکاري زړۀ ئې ژاړي چې قبول وي
په ظاهر کۀ وي عالَم کښې په باطن کښې ترِ جُدا دے
دَ دُنيا له رواجونو ناخبر وي په دُنيا کښې
پوره واج دَ مينې ئې زدۀ وي په دې کسب دَ مولا دے
اسمٰعيل دَ خپل مولانه نور هُنر دَ مينې غواړي
له پښتوائې پرِ زده کړے دا دَ خپل پير په دُعا دے



کهٔ په یار پسې ژړا اوکړې نو ښهٔ ده
دا ژړا دِ چرې هم بې ځایه نهٔ ده
هغه تخم دے ژړا چې زړغونیږي
داسې تخم چې هم تخم هم اوبهٔ ده
ملغلره ئې له هر ځا څڅکي جوړیږي
په دریاب کښې ئې صدف کښې تیکاونړه ده
جوهري چې ئې بیرون که له دریابه
بیس له هغې دَ شاهانو په ولکه ده
ملغلرې چې دِ جوړې شي له اوښکو
دابه ستا وي تابه شاه کړي دائې فائده ده
بادشاهي به کړې مودام په دواړه کونه
دې انعام لره ژړا ستا وسیله ده
اسمٰعیله غمزده اوسه دنیا کښې
غمزدو له ډیره لویه مرتبه ده



مالیدے غنچه فم دے څکه یادمې په هر دم دے
اے خدایه مینه غم دے دا پېما هُم ستا کرم دے
یم ولاړ په سر دَ دار

تل ژړېږم بیابان کښې په فراق دَخپل جانان کښې
ځائې مې اوچ نشته ګرېوان کښې دَ تو د و اوښکو باران کښې
ډېر خلکو کړم ناقرار

زۀ غوښ شوے په خنجر یم ارمانې دَخپل دلبر یم
په دې مینه قلندر یم سیلاے دَ بحر و بر یم
چرې نۀ مومم قرار

همه عمر به وفا کړم چې له خلقو جُدا کړم
تنها ځم دا ګدا کړم تاریکونه دَ صحرا کړم
ستا دَ مینې شوم یادګار

اے زما دَ رنځ طبیبه خوبرویانو کښې عجیبه
زما زړۀ لوۀ خطیبه زما زده له عندلیبه
ستا دیدن یسې چغار

صبح وشام کړمه فریاد زۀ ډېر دِمینې کړم برباد زۀ
زړۀ کښې تالوم مراد زۀ یم په تا پائنده باد زۀ
یادومه دِ رخسار

دَ بورا په شان خزان کښې ژړوند تیرومه په ارمان کښې
لکه یم چې په نیران کښې ستا دَ وصل ګلستان کښې
شوم زخمي په خندو ښار

ستا دَ زُلفو په دامونو ستا دَ سپین مخ په یادونو
شومه سر په تورو غرونو دَ هجران تود و بادونو
کړو ګرېوان مې تار په تار

ستا دَ مینې له کبله غمزدګه یم تل تر ستلـه
خبر نۀ یم له اجله چې به راشي ماله حـکله

دے هم دامی انتظار

ستا په مینه شوم مجنون زهٔ ځُوند تیر ومه دَ کړون زهٔ
داسې کړمه ستا بیلتون زهٔ په دریاب دَعشق دړون زهٔ

هم نشین یمه دَ نار

دَ دُنیا په دې بازار کښې دَ غمونو کاروبار کښې
یمه تل زهٔ په خمار کښې شومه خاوړې دَعشق لار کښې

هم پړ یمه پهره دار

اے خوبرویه ګل اندامه خبرنهٔ یم له انجامه
بهترینه دل آرامه کړه سیراب می زړ له جامه

وایم دا لیل النهار

نمر سپوږمی لتا شرمیږي ستا دې حُسن ته پسخیږي
هر عاشق لتا زاریږي دَ پتنګ په شان سوزیږي

ته چراغ ئې جلوه دار

اے دلبره بې مجال یم ستا دیدن ته ډیر لیوال یم
ستی کړے ستا جمال یم تیر لتا له سر و مال یم

زهٔ کومه دا اقرار

محترمه نازنینه ګل بدنه ګل رنګینه
په حسینو کښې حسینه ناتمامه ده ستا مینه

اسمٰعیل یمه لاچار

زړه به ستا په انتظار یمه ترمړکه
داسې خوښ په دې انکار یمه ترمړکه

ستا په یاد دومې ھر وته تول ایره شوه
خو محکم به په اقرار یمه ترمړکه

دهجران یاد مې اِیرې خورې ورې کړې
په هر ځائے به دِ یادګار یمه ترمړکه

پس له مرګه به یارې راسره اوکړې
دې وصال ته طمعه دار یمه ترمړکه

اسمٰعیل مړګی ته ځکه خوشحالیږم
چې په عشق به دِ بیمار یمه ترمړکه



دامې په زړګی باندِ ارمان دے له پښوا راسې
اوبه ګرم دیدن کله دیرګران دے له پښوا راسې

زړه دګلستان په طمع ګرځم چې په کوم ځائے دې
ځائے مې په دې طمع بیابان دے له پښوار راسې

چوې نهٔ صبریږم له جانانه په دې پوهه یم
تصویر زما په زړه کښې دجانان دے له پښواراسې

نهٔ پوهیږم دا مینه کهٔ هرڅو په دې ګړیکمه
ځکه دا بیان مې په زبان دے له پښوا راسې

مینه دَ جانان چې دلته نهٔ کوم نوځهٔ به کړم
زړهٔ زما په دې بانډ ودان دے له پخواراسې

مینه چې څوک نهٔ کړی دَ صنم او څان اِنسان بولی
پوهه شه په دې چې دے حیوان دے له پخواراسې

واوره اسمٰعیله چې دا چاره کورے پرینږدې
جوړ دَ دې دَ پاره دا جهان دے له پخواراسې



دا په عشق بانډې زړهٔ زما کباب شهٔ
روان ځکه مې له سترګو نه درياب شهٔ

په درياب دَ خپلو او ښکو کښې لاهو یم
هم نشین مې دَ زړګي عالی جناب شهٔ

کناره په ژوندانهٔ مالره نیشته
همه عمر مې درياب کښې دَعشق باب شهٔ

ډیر غرق ونه مې دریانه یار ته اوکړهٔ
غرقاب اوسه دا دَ یار ما ته جواب شهٔ

محبّت مې دَ همه عمر و وغو ښته
هر اندام مې ستی ځکه په آفتاب شهٔ

یم پټی پت به کومه زهٔ ترمرګه
اننا رجوړ په ما په ژوند کښې دَ تراب شهٔ

اسمٰعیل دَ غم په تال همیشه زا نګم
مرور لما نه ځکه زما خواب شهٔ

زهٔ دَ عشق دَ لو په ګنجه دولت مند شوم بې بها
دَ هجران په خنډ و بنار کښې کړم داچاره له پخوا

دَ بُلبل پېشان ژړا کړم دَ ماليار په انتظار کښې
اے عالمه خبر نهٔ یم لا تراوسه له خندا

زهٔ تنکل په توکّل کړم داګوهر په دې موندے شی
تل رېبار ما ته راښائی دا هنر ناز و ادا

دَ ژوندون په هر ساعت کښې یا دُومه زهٔ دلبر خپل
دا روزګار دِ کړی نصیب زما مدام کريم خدا

زهٔ دَ يار په بېلتانهٔ کښې دَ رنجو په څير اوړه شوم
تورې ستر ګې به ئې لما نه هيرې نهٔ شی دَ وفا

ملاقی مې دَ دلبر کړه اے زما غنی خدايه
په خاطر هم دَ هغه مې کړه قبوله دا دُعا

اسمٰعيل کهٔ دَ يار ښکک کښې وے يو وارې ځائے مونده
بیا به چرې ئې هُم له ښکه خلقه دے نهٔ وُجدا



تل فراخه تنګه اوسه په دُنيا کښې
پس له مرګه چې بيا اوسې په رڼرا کښې

دې سفر کښې هر ساعت سخاوت اوکړه
چې ښې لوړې ماتړئ در کاندی عقبا کښې

بخيل نهٔ شي بخيلي سړي توب نهٔ دے
دَ بخيل ځائے جهنم دے په جزا کښې
دا دنيا خو امتحان لره ده جوړه
ښهٔ ژغوره[1] نه دِ دَ ځان کړه هر ه سا کښې
ښهٔ عاقل ئې دَ ښو بد و تميز اوکړه
غواړه فضل له خدايه په ژړا کښې
کهٔ مسکن جنت کښې غواړې اسمٰعيله
دَ نيکئ په شنانز سوزشه دې دريا کښې





زندګی طاعت کښې تيره دَ مولا کړه
خوئ خصلت دَ نيک عمل ځان کښې پيدا کړه
بد و چارو ته تز دې چرې هم نهٔ شې
ځان لاهو دَ خپلو اوښکو په دريا کړه
دا سفر دَ توکّل بيړئ کښې اوکړه
بل څهٔ مهٔ کوه مدام دَ رب رضا کړه
کهٔ دوستي دِ دَ رب غواړې نو ذاکر شه
صبح و شام دَ ذاکرانو ملګرتيا کړه
مدام اوسه آرزومند دَ رب دَ فضل
دې انعام لره له خلقو ځان جدا کړه

[1] ژغوره : ګتل - حفاظت

له ساقي نه تل شراب د مینې غواړه
همه عمر په دنیا کښې دا ګدا کړه

که په ځان دې د عدن او سیده سودوې
په دې مینه سرتاپایه ځان زیبا کړه

مرتبه په عاجزۍ باندې موند ے شي
خپل ګوګل له تکبره بنه صفا کړه

د آشنا په لوری درومه بل خوا مه زه
نور کارونه دې عبث وارو ته شا کړه

ګلستان لره چې ځې له دې خبر شه
خارستان کښې ئې ورومبے ته زده ادا کړه

اسمعیله د ګل رخ جانان د پاره
په څو وار د عشق په لار کښې ځان فدا کړه





ما سره دلدار دے څه پروا د چا لرم
زړه مې پر سنګار دے، دے ګویا په ترنم

له هیبته مې زړه پرېوزي، کړي جانان ئې زرالوړ ته
ورومبے ئې زار کړي له سپین مخه بیا د زلفوله هر خم

داسې مینه مې نصیب ده داسې نوره مینه غواړم
داسې سوال کوم جانان ته په هر دم او په قدم

چې ربار موشي ترمنځه نوره مینه موسوا شي
ډیر خوشحاله په دې کار یم هم به کړم ترمرګه غم

نورو ستر کو ته ئې چې کوم دحیا نه کتے نهٔ شم
نهٔ ثانی ئې په عرب شته نهٔ عالمه په عجم
زهٔ ئې وینم لکه شمع چې وی بله په پرده کښې
په وصال کښې ئې دے وصال ته جوړ پما ځکه ماتم
اسمٰعیله ډیر ناتوان شوم د یار مینه بې بها ده
خبر نهٔ یم چې ترکومه به داغوانه داسې خوړم





دلبره د وفا په لاره ترې کوم وفا پسې
ویښ یمه له خوابه په دنیا کښې په عقبیٰ پسې
نهٔ یمه بې ننګه تل به ننګ کومه تا بانده
یمه د پتنګ په شان زهٔ ستا د مخ رڼا پسې
ځان به په تا سیزمه ادا د مینې زده زما
نوره زده کول غواړمه کرشمه ادا پسې
وینې مې د مینې نمرته او چې بیابان کښې شوې
راشه دیدان راکړه دا مې حال شهٔ ستا رضا پسې
پریښې دا دنیا ده ستا په مینه له پخوانه ما
چرې به ستون نهٔ شم ستا له دره په دنیا پسې
خیر په مات کچکول کښې لنا غواړمه که را دې کړو
دره په دره زهٔ ستا دره پسې کرشمه په تا پسې
تاته په نارو شوم بې مجاله ځکه غلے یم
بس دے دیوانه شوم اسمٰعیل ستا په بنګلا پسې

عبادت دَ محبّت دریاب کښې اوکړه
عاجزي دَ سترګو لوۍ سیلاب کښې اوکړه
دَ ریاله خیري ځان په توبه پاک کړه
حاضري ټول دَ مولا جناب کښې اوکړه
دَ زیبا نګار دَ حکم په تعمیل کښې
هره چاره دِ دَ عشق آفتاب کښې اوکړه
چې شیطان درته لمسون دَ بدو کاندي
ته نیکي دَ دې لمسون جواب کښې اوکړه
لږ ساعت له ئې راغلے بیا به درومي
دااستوګنه ته دَ ځان حساب کښې اوکړه
دَجانان دَ بېلتانه دې بیابان کښې
غم دَ وَصل دَ خپل زړهٔ کتاب کښې اوکړه
اسمٰعیله چې دَ مینې کاروبار کړې
له عالمه ئې ته پټ نقاب کښې اوکړه



په مقراض دَ غم زړګے خپل غُسُومه
نهٔ پوهېږم چې به داکُوم ترکومه
دَجانان نقاب مې سنځو نه نیولے
له رُخساره ئې ورو ورو ولرې کُومه

بۀ نقاب چې تر کوم لوی بل څوک نه شي
داسې عمر په دې غم کښې تیروُمه

په نصیب مې ډیر غمونه دي خدایه
خپلې اوښکې به تر کومه اوڅوُمه

کوم دا چاره دَ هجران په ښکرانې کښې
دَ یار دره ته په دې لاره معلوموُمه

ملغلرې مې دَ یاره دَ دره دي موندې
سپین بشر به ئې زړۀ خښکه هیروُمه

دَ فرقت په غشو لګم څکه ژاړم
توربې سترګې ئې ژړا کښې یادوُمه

اسمٰعیل په کتهارو ټوټې ټوټې شۀ
اوس ئې غوښې نذرانه کښې ورتوُمه

---



غوښ په تیغ دَ بیلتانۀ شه کۀ دَ وصل طلبګار ئې
ځان ستي کړه په دې اور کښې کۀ دَ مینې دعوه دار ئې

دَ برزخ رنړا دَ پاره اور دَ مینې په ځان بل کړه
داسې لاره نۀ شي تیروته چې رنړا ته بیا لاچار ئې

بنۀ په پام روده قدمونه په تحقیق دَ خپل جانان کښې
په دقیق نظر کاته کړه خاړ ستان کښې په رفتار ئې

اراده دَ باغستان اوکړه روان شه له دې سرا ئې
اره مه کوه چې هلته بیا دَ یار دَ باغ مالیار ئې

په تلاش کښې دَ ځان اوزه ورک له ځانه ئې په ځان کښې
که دِ ځان اوموند خبر شه بنه پیوست ځان کښې دیارته ئې
اسمٰعیله ځان مونده کړه دَ جانان دیدن دَ پاره
دا دولت دے ستا په ځان کښې که دِ اونه موند که خوارئې



نه ژوندے یمه نه مړم دَ عشق دریاب کښې
یوه پښه مې په زمین بله رکاب کښې
له زمینه به کړم بله هله پورته
عزرائیل چې راته اووائی خطاب کښې
انتظار کړم دَ پیښوا قدم بوسئ ته
کړم تطهیر دَ ځان دَ اوښکو په تالاب کښې
په خپل زړهٔ کښې زهٔ تصنیف دَ دلبر لولم
دائې لیکلے دے زما دَ عشق په باب کښې
دَ هر حرف په کتابت بانډِ ما سیزی
خبر نه یم چې نور څهٔ لیکی کتاب کښې
دې کاتب زما په ژبه ځان ګویا کړو
چرې نشته داوینا زما په تاب کښې
اسمٰعیل یمه حیران دې امتحان ته
څهٔ به وایم ممتحن ته په جواب کښې

اتش زن راله اور پوری کړو سینه کښې
سرو لمبو له ئې زړه ورکړمه ولکه کښې

داهونو هدیه چې ئې ماله راکړه
شوم ګذار د اتش زن په دروازه کښې

له هیبته مې تن رپې ډیر ویریږم
بندیوان ئې کړم د مینې جیلخانه کښې

له اثر له مې د زړه نول دے په برخه
یادوم صنم د غم په ترانه کښې

جانان غشې ورروې زما په لوری
یم اخستے ئې له ښوا په نشانه کښې

اسمعیل چې خنک زخمی دے په دې غشو
هیڅوک نشته په دا شان دې زمانه کښې



چې د حُب دلیندې برید اوشهٔ په ما
د اه کور شولو په زړهٔ کښې جوړ زما

چې له فمه فې راوځي ځي په پورته
نور راولیږئي دې کور ته له سما

له دې کاره به زړهٔ خنکه اوښکا ریږم
چې ملګرې د هر اه ده هره سا

د غفلت له خوابه دوې یم بیدار کړې
مقرر ده بیداري له دا غزا

د قاصد په انتظار یم څه به وائي
چې څه اُوائي نور غم مې شي سِوا

د اُلفت مکتب مې جوړ دے په کوګل کښې
پکښې وایمه سبق زړه له پخوا

له همه وُچارو ګران د عشق سبق دے
په څو واره ګړمه دې چارې فنا

فن د عشق به زده کوم چې څو ژوندے یم
که هر څو کړم فریادونه واویلا

اسمعیل ډیر کارنده شوم په دا چاره
کارنده پسې مې کړې اقتداء





چې د چا په لیچو کیوځي تورې زلفې د جانان
هغه دم به شي مدام له هر یو تار ته ډیر حیران

د یار زلفې دې خوشبویه مشک عنبر لري له مایه
دا سنګار ورله پخپله خوښه کړے دے سبحان

رب د ځان او د عالم مینې د پاره یار سنګار کړو
بیا ئې د یار په خُلهٔ عالم ته د دې کار اوکړو فرمان

چې څوک مینه د جانان کړي دغه مینه د مولا ده
دې لازم او ملزوم دواړه د عشق کار کښې دي یکسان

دَ ښکلا ثاني ئې نشته په اطرافو دَ کونین کښې
دا ښکلا دَ دهٔ نصیب ده دا ښکلا ده درحمانٔ
له صفته ئې لا چاره کُل عالم دے اسمٰعیله
تهٔ به څهٔ په ماته خلهٔ کړې دا صفت دَ یار بیان





زهٔ دَ عشق دَ لویه کاره اوزګار نهٔ یم
دَ ناصح بیان ته ځکه تیار نهٔ یم
ما جانان سنګار وی په خپلو لاسو
له بل څهٔ نه زهٔ یه دې خبردار نهٔ یم
په سنګار جانان له برمه یم پرې ایستے
تش په نوم ئې دَ یارئ طلبګار نهٔ یم
له زیبا مخه ئې مخ جار ایستے نهٔ شم
بې له عشقه په دُنیا دَ هیڅ کار نهٔ یم
دَ اُلفت په غشو لګم دَ یار څنګ ته
له دې وجې دَ یار څنګ کښې قرار نهٔ یم
چې به کله قرار اوموموم عالمه
له تراوسه زهٔ بې غمه میخوار نهٔ یم
اسمٰعیل به دَ وفا په لاره درومم
زهٔ راغلے په دُنیا جفاکار نهٔ یم



دَ ابرُوانو[1] لیندهٔ ئې ماته ده راښکلې
نهٔ ور تلے شم تهٔ تږتلے شمه داولې
چې غشې اوکړې وائې رالنډ شه قدم واخلم
په نصیب مې داسې چاره دَ لیکلې
دَ هر غشي سره ګذار سم په ما اوکړې
هر ګذار ته ئې سینه ده ما نیولې
له نباتو[2] راته جوړ زهرِ قاتل شوه
دَ هجران خامار مې غوښې اوخوړلې
آفرین په ما جانان وائي دې حال کښې
داسې مینه مې په برخه رسیدلې
اسمٰعیل مدام مرهم دَ وصل غواړم
کومه ورځ به وی طبیب راله تا کلې



کړه آګاه مې تهٔ خدایه چې څهٔ اولیکم ستا شان کښې
بې لتا لیکلے نهٔ شم رهنما مې شه هر آن کښې
تهٔ ئې مینه تهٔ ئې علم دواړه ماله دلته راکړه
تهٔ ئې حُسن لتا غواړم ډیر زینت په دوجهان کښې

[1] ابرُوان: روځې [2] نبات: مصري۔ خواږه

اُنس اوُ جن ﺑﻪ پیدا ﮐړی تعارُف له په دُنیا دی
معارف له دَ شناخت ځای جوړ کړو تا دَهغه ځان کښې

دَ ژوندون په هر ساعت کښې په هیر نه کړم تا خدایه
دا طاقت دا له پیدا کړه ته په زړه اوُ په زبان کښې

ما عدن کښې خوبرویانو سره یوځای کړه کریمه
کړم دا سوال درته اے ربه په دې خوشی بیابان کښې

دَ حساب په ورځ خدایه دا اُمید لرم لتا نه
چې به ما کړې بې حسابو کښې نه شمار په لوئې میدان کښې

اسمٰعیل یم ارزومند ستا دَ دیدار نه مې نصیب کړه
بل ارمان مې په زړه نشته یم مدام په دې ارمان کښې



چې مې خواته رانزدې شولو بیا غلے
دا سې حُسن ما دَ چا نه وو لیدلے

تورې زلفې چې ئې لرې کړې له رُخساره
هغه دم مې پرِ زړه کے دے خپل یا ئیللے

محترم چې شهٔ روان زما له خواته
په ما جوړ شهٔ په ژوندون دَ خاوُرو ځلے

دَ آقا دیدن ته خاوُر وکښې لغړیږم
لاتراوسه ترِ قاصد نهٔ دے راغلے

دَ فرقت په تور وهر ساعت ژوبلیږم
پرهر وته مې دی ډیر نهٔ شم شمارلے

دَ هجران په تورو شپو کښې ځلا غواړم
بیا په کله رانما شي هغه شکلے
پام لرونه يې کومه زړه دَ لاري
دي بلا دَ انتظار بیمه خوړے
تسلي زړهٔ له ورکوم چې اوس به راشي
چرې نهٔ شهٔ له ژړا نه په دې غلے
دا یقین لرم چې را به شي خو کله
همه تن مې دي سکروټو دے داغلے
محبت عجیبه اور دے لیدے نهٔ شي
کهٔ هر څو پرِ روح او تن وي سوزیدلے
تول بدن اخلي پخپله احاطه کښې
دغه اور يې په زړګي وي لګیدلے
اسمٰعیل په غم له اوره سره یار له
کهٔ یوواري يې زړهٔ ځان ته وے بللے



تهٔ مې نګهبان شه اے زما کریم خدایه
درومم دَ صنم په لوریم ستا دَ درګدایه
ستا دَ جانان مینه مې په زړهٔ کښې ده خبرئ تهٔ
تا راله پخپله دا راکړې ده اکبرئ تهٔ
پخپله له هر چا نه ډیر شیدا په ناز پرورئ تهٔ

ځکه دي همه واړو عشاقو له رهبري ته
غواړمه لتانه نور ګ مینه راته ښایه

میني زړه لتانه مینه غواړم بل څه نه غواړم
ستا په مینه ستا د میني بام ته زړه ښاته غواړم
مدام زړه له دي بامه د جانان مخ ته کاته غواړم
چي دانه غواړم ربه په دنیا کښي به نور څه غواړم
د میني په آفتاب کښي لټوم د میني سایه

ما د ځیل جانان سره یوځایے کړه په عدن کښي ته
ما د دړه په لوري ښنه قائم لوړه رفتن کښي ته
ماله ئې دیدن راکړه په وخت د ژنکدن کښي ته
مخ راله پټ نه کړي بي دیدنه په کفن کښي ته
ما د دړه په مینه ډیرستي کړه سرتاپایه

تا په کل عالم کښي پیدا کړے بهترین دے ډیر
ځکه په همه واړو خوبانو کښي نازنین دے ډیر
دے د عاشقانو سوو زړونو له تسکین دے ډیر
ځکه دِ ستا ئیلے رحمت اللعالمین دے ډیر
راغلے دي دنیا ته دے نبیؑ له هغه ځایه

تا ورله په سرتاج د لولاک ایښے عظیم دے
تا د ځیل معشوق کړے پخپله ډیر تکریم دے
نوري پیدا کړے تاله هر څه نه قدیم دے
بیا دِ راليګلے په دنیا بادِ نسیم دے
کرم به دیدنونه اسمٰعیل ترغوله ورایه

⁂

لوئي جاګیر مې شه په برخه د وفا
دا عطا کړو په انعام کښې خپل مولیٰ

زړه ئې نیش کړم بیا به شته شم چې وفا کړم
دا وفا ده هم فنا او هم بقا

نوم نشان د سړي ورک کړي بیائې پیدا کړي
لکه تخم چې زرغون شي بیش بها

افسانې ئې خلق وائي په دُنیا کښې
چې خوړلے وي د عشق توره بلا

وي عادت په میخانه د یار د حُسن
دا نشه ئې کړي له خلقو نه جُدا

له چشمانو ئې لښکرې ځي د اوښکو
وي ترمرګه پورې ډوب په دې دریا

ارماني د نورو ستر ګو د لیدو وي
په دیدن پسې ئې ګرځي په صحرا

د هجران په ارغنداب[1] کښې تل اوسیږي
ارغوان[2] له رېبه غواړي په ژړا

د موجونو له سپیړو سره مخ وي
هر عاشق وي په دې حال کښې یک تنها

اے رېباره یار ته وایه چې زړا شي
شومه دل د بیلتانهٔ په آسیا[3]

۱ ارغنداب: یو دریاب دے (قندهار) ۲ ارغوان: د یو ګل نوم دے ۳ آسیا: ژرنده

د یار د ړته چې د رون څو پورې نه یم
اسمٰعیل به یم ترهغې په غوغا





لاس فراخی د سکروتو انبار را کړو
په سینه کښې ئې راله ځائے جوړ د غوغا کړو

د ارمان ځلی ته ناست یمه په ځان کښې
زما لاش ئې دفن ما کښې په بیدیا کړو

همه عمر د خپل ځان په تماشه شوم
نور عالم ئې هم زما په تماشا کړو

سپین بشرې د آفتاب په شان را اوښود
په وریځ د بیلتانه ئې بیا فنا کړو

نرگسی سترگې چې ئې مرې را واړولې
هغه دم ئې زما زړه لما ته غلا کړو

تش کوکل وریسې کرشمه هر لور ته
که ئې ځان را ته پخپله رانما کړو

تور و زلفو ئې د خیال تالے وهلی
اسمٰعیل ئې په هر وُل تالا والا کړو



د ژوندون په هر ساعت کښې د غمونو سره مخ یم
زه د عشق په لوئ دریاب کښې د موجونو سره مخ یم

د جانان دیدن د پاره د اُمید بیړئ کښې ناست یم
قرار نه مومم د هجر د بادونو سره مخ یم

د یار مینې په دُنیا کښې له هر کاره یمه وتیستے
شپه او ورځ د یار په یادو فریادونو سره مخ یم

بیلتانهٔ سره چې مخ یم خوشحالي به څنګه اوکړم
زه د خپلو تودو اوښکو سیلابونو سره مخ یم

اور د مینې مې کوکل کښې تل بلیږي پرستي شوم
د اور رویه یار دلاسه د اورونو سره مخ یم

مینه اور نهٔ دے نو څهٔ دی هر عاشق په دې ګواه دے
اسمٰعیل ځکه مدام له دې ویرونو سره مخ یم



د خواګئ[1] خبرې پټې کړ څوم زړهٔ کښې
زهٔ مدام دا شمعې ځان ته بلوم زړهٔ کښې

په یادونو د خوبامِ تن ورتیږي
دې مهمان له خپلې غوښې ورکوم زړهٔ کښې

ما د زړۀ په فرش جانان ته خوان خور کړے

هر ساعت پرِ خپل جانان زۀ اُزړوم زړۀ کښې

همه عمر مې د عشق خُوپ کښې تیریږی

له خولو نه ځان په صبر اوچوم زړۀ کښې

بې له عشقه عظیم غم په دُنیا نشته

له دې غمه شنې مانړې ودانوم زړۀ کښې

نوره غوښته د دې غم کوم له خدایه

داسې بیا بیا خپله ځان قوبانوم زړۀ کښې

د دلبر عکس مې د زړۀ آئین کښې ښکاری

دغه عکس ئې صبح وشام زۀ ښکلوم زړۀ کښې

په ژړا ژړا د یار دیدن د پاره

د دربار په وینا ځان سنګاروم زړۀ کښې

اسمٰعیل د عشق دستور له برمه پرې ایښتم

سرۀ کلونه خپل جانان له توئوم زړۀ کښې





خړې غرونه د خیبر مې دی په زړۀ کښې

شهنشاه ځکه په ژبه د پښتو یم

زۀ تصویر د خپل وطن وینم هر څۀ کښې

دیر مټین د پاکستان په سرحد ویم

د بیرغ په رپائې زړۀ زما رپیږی

پائنده ئې د بیرغ په رپیدو یم

خوږیکونه به یې په سرو کلو ورنه کړم
زهٔ عادت د ریګستان په میګو یم
ځې له سترګو مې رودونه سمندر ته
سیلانے زهٔ د وطن د هسکو غرو یم
ټول سیند ونه چې یې ښنکه دی یؤ شوی
ارمانی داسې د قام د یؤ کیدو یم
مسلمان خو همه یو قام دے بیل نهٔ دی
غمزده د مسلمان په بیلیدو یم
د غلیم لارې ښار ل دِ ولې پریښوو ګ
په دې چاره دِ مدام زهٔ په سلګو یم
اسمٰعیل په خپل وطن چرې هیر نهٔ کړم
د پټنګ په شان عادت په سرو لمبو یم





بیدیا نے شوم ستا د مینې په غمونو
سر مې ایخے په بالین[1] دے د یادونو
ستا رخسار مې په زړهٔ نقش دے ورته ګورم
بیچاونړه په ځان خوږومه د آهونو
د فرقت بادونو یوړم ستا له ښکه
درته سترے شومه ډیر په آوازونو
د عشق بریخ مې راوچت دے له سینې نه
بې مجاله کړم صنمه فریادونو

[1] بالین: بالښ

افتابي يم ستا د ميني په دُنيا كښي
سوړے غواړمه زۀ ستا د ديدنونو
په مدفن د عاشقۍ كښي زۀ مدفون يم
ډير ژړلے يم د هجر طوفانونو
اسمٰعيل نه د غم دَف مدام غږيږي
ښُنګ خبر شي د دُنيا له رواجونو



لوړ په لوړ كړ غم دلبر پسې زحمت كښې
داسې چاړه ده راپيښه محبت كښې
زۀ د حُسن په درياب كښي مستغرق يم
دا سزائې راته اوړلې عدالت كښې
نۀ ويلے شم نۀ اوړمه نۀ تنلے شم
داسې حال مې شه د ميني په قيامت كښې
د جانان خمار و ستركو ديوانه كړم
ماليدلي دي دا ستركې حقيقت كښې
يم سپارلے د غمونو لوئ بحير ته
دا بهيږي د جانان په سلطنت كښې
ملغلري پكښي مومم د يار درله
دي پرتې په صدفونو د فرقت كښې
د زړۀ كور ترنه په ورو ورو دكومه
خپل دلبر لره ئې بند مه حفاظت كښې

پہ دُنیا دَ جانان مینہ لوئي دولت دے
راعطا ئي کړو دَ میني مشقت کښې

اسمٰعیل پہ کدا ئيې کښې شاهجهان شوم
دا کدا اکرم پہ بازار دَ طریقت کښې

⁂



صبح و شام خوړمہ سپیرې دَ هجران زهٔ
عادت ځکہ یم دَ اوښکو دَ باران زهٔ

پہ کوپوان مي اوښکي دړومي دَ یار درتہ
پکښي وینم دَ یار مخ پسې ارمان زهٔ

تحیّر پہ ولې نهٔ کړمہ دې حال کښې
چې او سیږم دَ حیرت پہ بیابان زهٔ

دَ الفت پہ زولنو یم کلک تړلے
دَ یادونو پہ وطن کښې خپل جانان زهٔ

دَ قربت پہ امید ژوند زما تیریږي
پیش قدمي کړمہ پہ لوړ دَ عالیشان زهٔ

دَ تعظیم ادا ئي وړو وړو زده کړمہ
یم فائز پہ دا منصب پہ خارستان زهٔ

دَ اخلاص کوشش رنځوړ کړمہ دې فن کښې
دروغ بہ نهٔ شم لہ دې رنګہ پہ جهان زهٔ

دَ یار غم کښې دیر دهشت یمہ اخستے
پہ دیدن پسې ئي کرځمہ پریشان زهٔ

قیام ګاه دَ بیلتانهٔ کښې تل او سیږم
سکونت به څنګ کوم دَ اطمینان زړهٔ
اسمٰعیل له خپل شبابه خبرنهٔ یم
ډیر زیږلې یم دَ مینې دې طوفان زړهٔ



کړمه تراه له بیلتانهٔ هم مې آشنا دے
وایه زغابنت[1] له خپله سوړې کړے چا دے
چې دَ تیغ لاړه دِ نیشتنه له بلا نه
بس ورځه غاړه په غاړه چل ئې دا دے
دَ جانان دیدن له تلهٔ څهٔ آسان نهٔ دی
هر عاشق وړومبے خوړلے دې بلا دے
دَ یار ستر ګو له رانجهٔ سغه ځوان مرد دے
چې اوړهٔ دَ بیلتانهٔ په اسیا دے
چې څوک ترخ دَ بیلتانهٔ دَ لوړی کاندی
مدعی بیا دے دَ بلې مدعا دے
دا دُنیا ده پیدا شوې بیلتانهٔ له
دې تشویش کښې تفتیش تا لره اولی دے
دې خواهش لره له خپل خواهشهٔ دُورشه
فکر او کړه چې کوم تا لره زیبا دے
قناعت دَ بیلتانهٔ په تشریح کاندم
نا معلومه تل انجام دَ دې دړیا دے

[1] زغابنت : نیستنه

اسمٰعیل له بیلتانهٔ نه خلاصے نیشته
دائ نیکلے په ازل دهٔ له پښتوا دے



په دوستۍ دَ کمینو به کمینه شې
ځان ساته له کمینو چې خائسته شې

دَ حیا په څادر پټ دَ ځان آشنا کړه
چې دے تاله اوته دهٔ له آئینه شې

دَ حسد کور کښې چرقاؤ دَ مینې اوکړه
چې له دغه کود غباره پاکیزه شې

له مکار و خلقو دُور اوسه دُنیا کښې
چې په خُلهٔ دَ هر وکړی ترانه شې

ښهٔ دریافت دَ ځان کوه له نیکو خلقو
په دا چاره به پخپله ځان مونده شې

په دربار دَ نیکوکار وکښې خادم شه
چې مخدوم دلته دَ دوئ په وسیله شې

دُښمنی نوره له ځانه سره مهٔ کړه
نور به تور لکه دَ تیغنې په سینه شې

شکسته ځان به دِ دروغ رمټ شی درومه
کهٔ یؤ وارې نه عادت په میخانه شې

اسمٰعیل په دې شرابو مستانه یم
مدام څښه چې په دې نهٔ هم مستانه شې

چې د یار په تورو زلفو بندیوان شوم
د سینې په مزکه ځان لره دهقان شوم

ټول د ګوګل مې خپل د عشق په یوه وار ورو
د ځان تخم زه په خپله د خپل ځان شوم

له چشمانو پرې د اوښکو باران ورېږي
زه عادي د خپلو اوښکو د باران شوم

زړه غنیږم په هله چې جانان راشي
هسې خاورې په هجران د خپل جانان شوم

زه په ځان کښې ځکه شېه او ورځ ځان ګورم
چې په خپله یم آئین ځان ته حیران شوم

خپل دلبر هم پکښې وینمه له ورایه
په خپل څنګ کښې به ئې وینم که روان شوم

اسمٰعیل به تل همدم یمه د یار خپل
صفت خوان ئې مدام ځکه په لسان شوم

---

چې پایمال ترڅو د حسن په توان نه شي
تر هغې به نه په غیږ د جانان نه شي

د دلبر تصویر د زړه په تاخ کښې کیږده
ورنه ګوره تر غافله یو آن نه شي

سلطنت کۀ د کونین ځان لره غواړې
بې له عشقه به ته چرې سلطان نۀ شې
فتحیاب به خپل دلبر تا څنگه بولی
پرهرې چې په تلوار د هجران نۀ شې
هر پرهر باندې به پټې ږدې د صبر
بې له صبره به مالیار د بوستان نۀ شې
چې لطف غواړې تل د فکر په تړال ځانګه
بهار کوم دے چې خیر له خزان نۀ شې
چې د عشق په اور دِ ځان سیزے نۀ وی
اسمٰعیله هیڅ خبر به له ځان نۀ شې





په خوبانو کښې دلدار زما اعظم دے
د ښائست ثانی ئې نیشته غنچه فم دے
د لولاک تاج ئې په سر ذوالجلال ایښے
پیدا کړے رب له هر چا مقدم دے
په ظاهر کښې ئې آدم نیکه بللے شی
په باطن کښې دے آبا د دې آدم دے
کل نبیانو ئې وو دیدار له رب غوښتے
مقتدی ئې د همه واړو محترم دے
ابتداء د عالم شوې ده له ده نه
دے رحمت ځکه د پاره د عالم دے

ډیر شیدا په دغه له هر چا ذوالجلال دے
لامکان کښې ځکه دغه سره منضم[ا] دے
اسمٰعیل د دغه د در غلامی غوارم
دې مخدوم پسې مدام په ما ماتم دے



په اتش مې زړه اتش تش په لیدو شه
په تول تن مې په ورووه په خوریدو شه
ډیر ناتوان د بیلتانه دې تشدد کړم
همه عمر مې په دې د کړیدو شه
کارنده شوم سرولمبو کښې سرولمبو له
کارنده نه اور په ما په زیاتیدو شه
هم پر سوزم هم ئې غوارمه حیران یم
د تسخیر سوزے په ما په لوټیدو شه
هر ځے زړه مدام وایمه دې اور ته
د آه چترې په سر په سوزیدو شه
د یادونو په پوکو مې ډیر کبرې کړو
ځکه ما ته خپل زړے په ژړیدو شه
په ډیر غم د اسمٰعیل اوښکې شوې اوچې
په دریاب کښې د غم نور په ډوبیدو شه

چې له اوښکو مې دَ اوښکو دریاب جوړ شهٔ

پس له هغې مې له زړهٔ نه کتاب جوړ شهٔ

مدام لولم دا کتاب په دې دریاب کښې

عداوت څکه زما او دَ خواب جوړ شهٔ

پکښې لولم تل یادونه دَ جانان زړهٔ

له ډیر خوږه دَ یادونو رباب جوړ شهٔ

ترنّم زما سینه همه قبضه کړه

پکښې کور زما دَ ښکلی جناب جوړ شهٔ

همنشین سره په قیل وقال کښې مست یم

قیل وقال زما دَ مینې په باب جوړ شهٔ

په خیرو دَ آشنا په څنګه موړ شم

چې په زړهٔ مې لوئې مرکز دَ خطاب جوړ شهٔ

دَ خوبا دَ حُسن نمر باندِ وَر ستیږم

په دې نمر زما ته تنه کباب جوړ شهٔ

اسمٰعیل دَ یار په غم دنیا کښې خوش یم

غم سبب زما دَ هغه شباب جوړ شهٔ

---

چې بندی مې زړهٔ دلبره ستا په دام شهٔ

دَ حیرت په بیابان کښې مې قیام شهٔ

ستا دَ زلفو په ځنګل کښې یم ورک شوے
په رڼا مې ډیر له ویرې هر اندام شهٔ

دَ هجران دَ شیر منګانو سره مخ یم
ستا په مینه کښې زما دغه انجام شهٔ

ستا دَ لورې په ما ووری له مُژګانو
تیرو غشو سره ژوند زما مدام شهٔ

دَ زخمونو تاب مې نشته نور په ځان کښې
بې تابي کښې مې هم ستا په لور اقدام شهٔ

پتنګ چرې له چراغه نهٔ جار اُوځي
په څو واره که ستي یم دا مې کام شهٔ

اسمٰعیل ستا دَ رخسار لمبو سوخته کړم
ستا له رویه ستا لمبې زما انعام شهٔ





چې کهذار په تاترین کښې دَ هجران شوم
ورک په دې زهٔ له عالمه په جهان شوم

زهٔ جانان جانان ناری مدام وهمه
تالانے دَ سرو مال په خپل جانان شوم

تاترین کښې مې تالاب دَ اوښکو جوړ کهٔ
ډیر حیران پکښې تصویر ته دَ خپل ځان شوم

اژدها دَ بیلتانهٔ یم په خُلهٔ کړے
دَ یار غم کښې ښکلے لعل دَ بدخشان شوم

دَ یار دَرته به مې خلهٔ کښې ورو ورو یوسي
ترهغې به مې زورې په داسې شان شوم

دااستوګنه مې په برخه دهٔ پوهېږم
همیشه پکښې دَ سپین مخ په ارمان شوم

دَ ناصح له نصیحته ځکه دور شوم
چې دَ یار په تورو زلفو بندیوان شوم

بې له مرګه مې ضامن دَ خلاصی نشته
دې ضامن ته انتظار کښې په لړزان شوم

جوړی له به مې مُفت ورکړی ډالۍ کښې
هغه وخت نه له پښوا په هاځې سوران شوم

اسمٰعیل خونهٔ ژوندے یمه نهٔ مړمه
زهٔ خپل ځان لره دَ مینې لوئ برهان[ا] شوم





دَ حیرت په تماشه کړم قدر من زهٔ
کړم بهرئې دَ دُنیا له انجمن زهٔ

په وطن کښې له وطنه بهر اوسم
جوړومه انجمن دَ بل وطن زهٔ

له اغیارو ئې پنهم ترون کوُمه
ګرانې چارې کرمه ډیر فکرمن زهٔ

دَ سلطان دَ سلطنت په نوکرئ کښې
لوئ فنکار شومه دَ عشق په دې فن زهٔ

[ا] برهان: دلیل

په فیشن دَ ګدایۍ کښې بادشاهي کړم
دې ګدا ته یمه ډیر آرزومن زړه

قدردان راته داچل دَ ګدا بښائي
زخمي کیږم په اغزو دَ چمن زړه

دا زخمونه مې پنهان دی لیدے ته شي
هم پنهان کړمه له خلقو غمژن زړه

زما زړه بانډ تصنیف غنچه فهم لیکي
په تصنیف شومه نافه دَ ختن زړه

عنقریب ده اسمٰعیل به ملاقي شم
له واکمن سره یه شمه واکمن زړه





نابلدي له الفته ځان بلد کړه
په دې پاک له سینې خیرے دَ حسد کړه

دَ سینې په لوح به تاله لیکل اوکړي
ځان دَ مینې له مکتبه مستند کړه

مدرس شه تل دَ مینې په مکتب کښې
بې له دې نه نور کارونه همه رد کړه

ستا زبان به شي قلم زړونو دَ پاره
لیک په زړونو دَ عالم احد احد کړه

دَ عظمت دستار به تاله په سر کیږدي
هر ساعت کښې پیروي دَ محمدﷺ کړه

اسمعیله کهٔ یارې په دُنیا غــواړې
په دُنیا کښې همیشه خوئ دَ ابد کړه

---

په دلبر پسې له وړایه خوار وزار شوم
کنج دَ مینې له ما جوړ شهٔ پُراسرار شوم
په تمغه دَ راز داړې ئې اونما ئغلم
چې وړونبې تر په څو واره جان نثار شوم
دَ زړهٔ تاخ کښې مې تمغه دَ مینې ایښې
ذې سند بانډ دَ یار دَ باغ مالیار شوم
شنهٔ طوطیان پکښې خوړدن دَ کشمش کاندې
سیلانے مدام دَ داسې لاله زار شوم
څې له سترګو مې رودونه دَ یار درته
په ژړا ژړا آشنا دَ ګلعزار شوم
په فریاد فریاد ئې زهٔ غیرې له لاړم
پس له هغې زهٔ دَ یار دَ غاړې هار شوم
په مزه مزه مې دواړه لاس ترِناؤ کړهٔ
په څلکو څلکو آشناته په ګفتار شوم
په دمه دمه مې حال ورته څپل اووې
په انداز انداز ئې پښو کښې راګذار شوم
ډیر ساعت ئې مپاړ کو پښو کښې پروت ووم
په ورو ورو پورته په لاسو دَ خپل یار شوم

اسمٰعیل په ګفتګو د یار مشغول یم
میکده کښې د یار تڅنګ ته زه ميخوار شوم



ما به په یار پسې خدایه دا ژړا نه کړله
تا که د یار سره په ما باندې وفا نه کړله

زه نا خبر وُمه له مینې تا خبر کړم له دې
که دې راښودے نه وے دا مینه به ما نه کړله

د ژوندانه په هر ساعت کښې لتا غواړمه دا
که ستا کرم نه وے نو ما به دا کدا نه کړله

ستا د محبوب په وسیله هم ستا محبوب غواړمه
که دا مې فعل نه وے ما به ستا رضا نه کړله

ستا په رضا زما رضا ده ډیر رضا شه له ما
بې له رضا ستا به مې چرې دا ادا نه کړله

د هاشمي دلبر د در غلامي غواړم لتا
که شیدا نه وُم ما به چاره د شیدا نه کړله

د اسمٰعیل د زړه له حاله خبر دارې الله
که زخمي نه وے بیا به ئې پته واویلا نه کړله



یا عبد القادر جیلاني څو دِ آفتاب دے
درکړے رب محبوب سُبحاني عظیم خطاب دے

ډیرې نازنین پیره اے زما برین پیره
هر چالره ئې تسکین پیره بغداد کښې ئې مکین پیره
ستاله فیوضاتو پیره ډیر عالم فیض یاب دے

اے دَ شریعت ګله اے دَ طریقت ګله
دَ ډیر لوئې سلطنت ګله دَ پاک رب دَ اُلفت ګله
ستا په څو شیدا دَ مدینې عالي جناب دے

نمسے دَ مصطفیٰ ﷺ ئې ته پیرانو کښې بالائې ته
ډیر ښکلے آقا ئې ته دَ مینې لوئې دریائې ته
جاري ستاله سینې نه دَ انوارو لوئې دریاب دے

لور په لور دِ ستا ئې خلق افسانې دِ وائې خلق
یوړل ته دِ بنائې خلق ستا په مینه پائې خلق
وائې په چمن کښې زموتن پیر ګل دَ ګلاب دے

غوث الاعظم عهده لرې عظیمه مرتبه لرې
لویه سلسله لرې شیرِ خدا استانه لرې
ستا په سپین رُخسار پسې ډیر اسمٰعیل بې تاب دے

---

تل کشاده تندره اوسه بخیل نهٔ شي
دجانان د در د لوري تبدیل نهٔ شي
دخپل نفس له تصرفه ځان آزاد کړه
واخله نفس په تصرف کښې چې ذلیل نهٔ شي
د الفت توره را واخله جنګ د یاره
بې له دې نه به ته چرې جمیل نهٔ شي
دحسد خونه ویرانه کړه له زړه نه
په دې کور کښې به ترعمره اصیل نهٔ شي
په دې عمر باندِ څهٔ په دې جهان کښې
چې دلبر لره د مینې دلیل نهٔ شي
د دلبر په محبت کښې مستغرق شه
په دې فتح په کونین کښې ذلیل نهٔ شي
اسمٰعیله د پتنګ په شان ځان سیزه
بې له عشقه به رښتیا اسمٰعیل نهٔ شي

---

د الفت په چاره زر زر آغاز اوکړه
پوخ طلب سپکښې دیارِ حجاز اوکړه
د دُنیا د خواهش سیند کښې ئې ډوب شوې
ځان له غم د معرفت د شناز اوکړه

معرفت له یې پیدا بل څه له نه ئ
په دې پړ و دُنیا دې ته پرواز اوکړه

ځان قربان له خپل جانانه کړه دُنیا کښې
طریقه په ځان دَ عشق دَ جانباز اوکړه

په ژړا ژړا دِ زړه خپل پاکیزه کړه
دَ بُلبل په شان مالیار ته آواز اوکړه

دَ دلبر دَ دې ادا هم دلته زده کړه
دَ عشق تله کښې دَ هر څۀ انداز اوکړه

میخانې نه بهر مۀ اوځه ترمو ځکه
خپل آشنا سره خبرې دَ ناز اوکړه

په دُنیا کښې هسې مۀ اوسه بې ننګه
ځان له غم دَ هغۀ عمرِ دراز اوکړه

اسمٰعیله راز و نیاز کښې مشغول اوسه
یۀ پالنه همیشه دَ هغۀ راز اوکړه





دا کادونه دِ نهول خوبښ دَ رهبر نۀ دی
ستا تو ینې لره جوګه دَ سفر نۀ دی

نا خبره له توبښې کوځې ورک شویه
ځان موند ه کړه ویره یا دغه کوهر نۀ دی

اے تش لا سیه دَ ځان غم درځخه نشته
دا غمونه دِ لا ولې په سر نۀ دی

په توبه د سینې لوښې پښه کنکال کړه
تول رحکوته دِ له هیڅه خبر نه دی

تل د عشق په تمر کښې ځکه سوی بوی
ملاق دلته د یار بې هنر نه دی

له پتنګه هنر زده کانده ستې شه
سو زیده تالره هیڅ د ضرر نه دی

د ضرر له تیرې راشه دې رهنا ته
تا لیدلی خوبرویان یو نظر نه دی

همیشه به ئې له څنګه چرته نه ځې
لا خوړلی دِ خواږه د دلبر نه دی

مدام خیر غواړه د عجز کچکول کښې یارنه
داسې خلق مې یار ښړلی له در نه دی

اسمعیله د یار در چوړې پر سینه دې
بهو خلق دِ طبیبان د پرهر نه دی





په انبار د بیلتانه مې ورمیره مات شه
له موړو راسې دیدن مالره قات شه

د زیبا جانان دیدن ته ډیر لیوال یم
ورک لمائې د دیدن هغه اوقات شه

تلوسو مې له سینې زړه دے ښړے
په صحرا کښې ارمانې د ملاقات شه

دَ زینت په تماشه به يې شمه کله
دَ هجران په طماچې مې ځان وفات شه
دَ خنجر په شوکه ټول پوټې پوټې شوم
لکه ځان چې مې په یار پسې خیرات شه
دَ وفا دې دستور دا کاڼې راو کړې
دې دستور باندې مې ځان ځان ته میرات شه
خپل میراث زما میراث دے تر خُوردن کړم
لما یاتې دا میراث خپل په کرّات شه
صدقې ترې په میزان دَ زړه ور کومه
که پوره مې پرې دَ مینې هر حاجات شه
زړه مې مروړی مینه، مینې پسې ژاړم
په مروړ تو ډیر عادی دے په صفات شه
اسمٰعیل یم خپلو اوښکو کښې ډوب شوے
جوړ له اوښکو مې په یار پسې فرات شه



چې غرقاب زړه دلربا په رود نیل کړم
بس له هغې ټې عالم کښې اسمٰعیل کړم
په دریاب کښې دَ جانان وطن لټومه
دالنون دَ خپلې مینې په دلیل کړم
که مې دَره دَ دلبر بیا مونده خدائے
غلا مې په تل تر تله دَ جمیل کړم

په څو واره مې ترڅان دے قربان کړے
داسې ټکه ترانې دَ خپل خلیل کړم

له جانانه چې مې چل زده دَ بازئ کړو
جانبازئ لره ئې صحرا ته ژَر تبدیل کړم

اسمٰعیل به له دې نیله په مرګ او خُم
ښهٔ پوهیږم ترهغې به پکښې ډیل کړم



چې دَ عشق په تیغ ترکومه پرهر نهٔ ئې
سرو لبانو له جوکه دَ هُنر نهٔ ئې

دَ ساقي جام نوش کوَل دِ لا زده نهٔ دي
وروغ رمتي ئې لا زخمي په جګر نهٔ ئې

دَ عِبرت ځائے کینې ئې پاتې بې عِبرته
هیڅ خبر لا تهٔ له مشک وعنبر نهٔ ئې

دَ یار زلفي کهٔ دِ کیوتې په لیچو
بیا به داسې بې پروا مسافر نهٔ ئې

دَ منزل په لور چې تش تور داسې درومې
تهٔ مئین دَ کل جمال په پدر نهٔ ئې

نوراني چهره ئې ځنګ ده لتا هیره
ښهٔ پوهیږم خواهشمند دَ کوثر نهٔ ئې

دَ شبنم غوندِ له نمره تیښته مهٔ کړه
په تا څهٔ چې سوزیدلے په نمر نهٔ ئې

مستانه په میخانه دَ مهر اوسه
دې نعمت لره ته ولې نهر نهٔ ئې

سینه پاکه کړه له مکره چې نهر شي
ته عادت دَ یار دَ دَر دَ ثمر نهٔ ئې

که یو وار دِ دا شراب خدائے نصیب کړه
بیا به آړ په دې شرابو په سر نهٔ ئې

اسمٰعیل په بل څه څه کړم دا دی هرڅه
اے ناصحه ما پشان قلندر ته ئې





په ما کړے خپل دلبر عظیم تسخیر دے
راته پټ ئې شروع کړے اوږد تفسیر دے

ډیر اثر ئې په ما اوکړو ځکه زاړم
رسید لے مې په برخه داسې ویر دے

دَ دُنیا چارې همه شوې لما پاتې
څوړ له غمه مې له ځایه نه خمیر دے

ټول تقریر راته دَ غم په موضوع کاندی
په سینه کښې مې ځائے شوے لوئې تفسیر دے

دَ تفسیر پاڼې مې نشتنه په لوح ثبک دے
په یو مخ باندِ تفسیر په بل تصویر دے

هر ساعت ئې ماته دواړه مخه ښکاری
نهٔ کاته کړمه تصویر نه چې تحریر دے

له تحریره يې زړه لولمه عالَمه ته
پکښې ښایسته تصویرچې بې نظیر دے
اسمٰعیل دَ بې نظیر نظیر ورکومه
دا نظیر ورالله راکړے زما پیر دے



معتبر تا لره ډیر دَ حال دا قال دے
اے بې حاله له چا واؤره دا کمال دے
مرتبه به دِ په دې قال شي بلنده
دَ حال ځائے به ته درومه دا مې درته سوال دے
له نیکانو دَ حال قال زده کړه په مینه
ورعطا دوئې ته په حال کښې لوئې جمال دے
دَ نیکانو صحبت ډیر کانده چې نیک شې
دغه قال بدل په حال کوړے دَ سیال دے
رب دِ سیال کړه دَ سیالانو په ټولی کښې
نقش په زړه باندِ دَ هر سیال دغه حال دے
نفس تابع کړه دَ خپل ځان تابع دَ حق شه
غور زوے ابلیس سیال ته توره ډال دے
تل دَ نیک خیال په دریاب کښې غرقاب اوسه
حال نصیب دَ نیک خیالانو په نیک خیال دے
اسمٰعیله دَ جمال کمال ته ګوره
ستا راوتے له پښتو راسې دا فال دے

کوم ساعت چې شوم داخل باغ دلدار ته
هغه دم ئې کړم کتار نار رُخسار ته

په کبرئ اور کښې اوسیږمه زړه اور شوم
مرګ ته مرګ کښې یم ډیره دیدن دیار ته

مرګ مې ډیر داسې مرګونه په ما تیر کړه
مدام ګورمه په مرګ کښې د مرګ لار ته

مرګ به ما له دې مرګونو څخه خلاص کړي
ځم به یار له د تسکین شکلی ګلزار ته

له مودو راسې اوبهٔ د دیدن غوارم
هر ساعت وایم اوبهٔ اوبهٔ ریبار ته

ځنکدن کښې انتظار کړم ځنکدن ته
خیژولے یمه یار همیشه دار ته

نور به څهٔ اوږد ځنکدن کښې چا ته وایم
چې د عشق کلمه وایم انتظار ته

اسمٰعیل نه کهٔ د عشق دلیل ته غواړې
په دیوان د اسمٰعیل کښې ئې ګوره کار ته

زهٔ دَعشق په مدرسه کښې سبق وایم
چې څهٔ زده کړم په قلم ئې بل ته ښایم

دا سبق وایم دَحُسن په کتاب کښې
لا هو شوے زهٔ په داسې لوئې دریایم

سیلابونه مې مدام زړې دَ هجر
په دې حال کښې توره ستوګې دَیار ستایم

لکه تومُه خط وخال په دې دریا کښې
دَیار زلفو کښې یم نښتے په ژړا یم

مخې مخې ته مې کیږي په آئین کښې
په دې غم باندِ اوُ ښتے له پخوا یم

دَ بیلتون خامار مې غوښې خوري غصّه دے
له خپل یاره زهٔ په دې سبب فدا یم

دَکوثر پیاله به ماله ساقي راکړي
دَدُنیا له خلقو دې پسې جُدا یم

دَ بیلتون چارې به مالره سنګار شي
دَیار در کښې به په نازو په ادا یم

دَ ریحان غنچې به هر وخت بوئیوُمه
له دې ځایه په هغوئ باندِ شیدا یم

شیدایان به سره یؤ شو په چمن کښې
زهٔ به هم په شیدایانو کښې نمایم

دَ حُرمت په لوټ بازار کښې په تل کړم
دَ اُلفت په دم به دم وهم وفا يم
اسمٰعیل په دې کړنګ کښې څنګ خوشحال شم
چې دَ حُسن په وارونو زړه تباه یم



مدرسه دَ عشق تعمیر په مزکه نهٔ ده
له ازله جوړه شوې دا په زړګی ده
دَ توبې په کنجی وَر دَ دې لر کیږی
هره خښته ئې پخه په بیلتانهٔ ده
دَ عشق باب پکښې چاپ کیږی له بل زړهٔ نه
دغه چاپ باندِ عالِم شی دائې قاعده ده
هم ئې لولی دا سبق عاشق په ژبه
زخمی شوې په حرف حرف دَ دهٔ سینه ده
دَ هجران په کرسی ناست وی په مکتب کښې
دَ حیرت په بیابان کښې ئې تهکانه ده
دَ اُلفت دَ باغیچې ډیر ارمانی وی
شرابی دے ترِنه وړکه میخانه ده
دَ یادونو په سُور اور کښې ستی پروت وی
فریادونه ئې دَ مینې ترانه ده
دَ بُلبل په شان غږونه زیروبم کړی
له سینې ئې جوړه شوې سازینه ده

اسمٰعیل هم سازینه لری سینه کښې
بنهٔ غږېږي سازینه ئې شاهانه ده





زما اوښکې ستا د پاره دی کهٔ نهٔ دی
دا روانې ستا په لاره دی کهٔ نهٔ دی

اے دلداره جلوه داره راته وایه
دا مې ستا د مخ له ناره دی کهٔ نهٔ دی

زهٔ په تا پسې له ځانه یم ورک شوے
ستا په شمار کښې دا له شماره دی کهٔ نهٔ دی

دخپل شمار کتاب را اوښایه لږ ماته
چې مې وینې له تلواره دی کهٔ نهٔ دی

ستا د هجر د تیرو تورو په ښکر کښې
دا نارې چې مې بې واره دی کهٔ نهٔ دی

ستا د حسن په خنجر پرهر پرهر یم
بنهٔ خرکند مې له اشعاره دی کهٔ نهٔ دی

د محمد اسمٰعیل د زړهٔ قراره
ورځې شپې مې ناقراره دی کهٔ نهٔ دی



پیدا کړے رب بادشاه ئې له خپله نوره
له قدیمه د پاک رب په دړ منظوره
مکمّل ئې په خپل علم ئې نما ــــــ تخلي
باخبر ئې د الله د تهول منشوره
تۀ په حُسن رسیده ئې ډیر ښکلیه
دا انعام دے په تا شوے له غفوره
د الله سره پیوست د الله رازئې
اے د پاک رب له دړ ګاه د پور معموره
ستا په حُسن ډیر عُشّاق دی ستی شوی
ډیر په تا پسې کړیږی له دستوره
تۀ بُلبل لره ماليار بورا له ګل ئې
تۀ پتنګ لره ئې شمع مشهوره
اسمٰعیل هم ستا په مخ باندِ شیدا یم
ستا جلوو په ما اورکړې اکبر پوره



په هجران د مکوّم زړه دړ په دړ شوم
د پتنګ په شان په شمع خاکستر شوم
په بستر د بیلتانۀ کښې مې ځان نغښتے
همه عمر د بیلتون د اوړ نوکر شوم

له قادره یاره مدام سمدستي غواړم
داسې غم بانډې کړه ډ منوّر شوم

لا تراوسه مې دلبر چرته اونه لید
خبر نه یمه چې څه شوم ناخبر شوم

بې خودۍ کښې مظّهر مظّهر وایم
په دې بناره کښې څکه ورک له پېښور شوم

د نشې په بناریه کښې نسې کړ څم
څوک ئې نه اوُري مدام په چغوسر شوم

اسمٰعیل څکه ناره مدام وهمه
چې مئین زه په زیبا شمس وقمر شوم



د افسوس په بناریه کښې مې مسکن دے
د کاش کاش ناره وهمه دامې فن دے

د نواز اوره کښې په زده کړه شین لوګے شوم
د هجران لوئې بیابان زما وطن دے

د صنم د دره په لاره بانډې تله کړم
همیشه مې په دا لاره څنګدن دے

څنګدن کښې د دیدن پیاله تل غواړم
په زبان زما هر آن عدن عدن دے

اسمٰعیل په داسې ولې غمژن سته یم
چې د زړه په تخت مې خوره راته کفن دے

دا زما دَ زړهٔ قصه کتاب کښې په ژړا شوله
زهٔ دَ یار اؤ یار زما یوه خبره دا شوله
دا هغه خبره ده چې ټوله قصه دې کښې ده
له دې نه وړاندې وروستو دا قصه جوړه زما شوله
اوس هم لا پوره نهٔ ده داسې به جارى وى دا
بس به شى پخپله کهٔ یؤ وارې په خندا شوله
غم کښې به قصه دَ غم تو ره هم اوږده شى بنهٔ
لنډه به په څهٔ شى خوشحالى ترِنه جُدا شوله
آخر به خوشحالى راشى دَ غم قصه به ختمه شى
هغه به تل جارى وى دا قصه ئې رهنما شوله
د واړه یؤ قصه ده وړاندِ غم بیا خوشحالى پسې
څومره چې دا ستا شى بس هم هومره هغه ستا شوله
بس کړه اسمٰعیله دا قصه خولهٔ غم بس نهٔ کړې
ډیر به شم خفه کهٔ دا ادا له تا قضا شوله



نهٔ وایم خو اُوایم دا خو وائى نهٔ اُوایه
زهٔ وایمه نهٔ بنایم خو دا را ته وائى اوښایه
زهٔ به تل رضا دَ دې کومه چې خفه نهٔ شى
هیڅ به په دُنیا کښې بې له خونه زما زده نهٔ شى

ځکه ورته وایمه چې ما ځان څخه بیایه

نه یمه خبر له دې چې نور به راته څه وائی
بس له دې خبر یمه چې څه وائی نو ښه وائی
شومه همیشه زه د دې خو د در ګدایه

زه په ماتِ کچکول کښې د دې خووینا تولومه تل
ځان څخه ئې په زړه کښې پته پته بیا یادومه تل
دا ګدا په برخه ده زما له هغه ځایه

زه د دې ګدا یم بیا ګدا له ره پتی شومه
ګرځمه په نور کښې تل په دې پسې ستی شومه
غواړم له امیره د امیر د دیدن سایه

زه د خیل امیر د باغیچې لوړې ماڼرئ لټوم
غم شومه له غمه ځکه ځان له ره ښادئ لټوم
پټ به په ښادو کښې کړی امیر مې سرتاپایه

ستا په لویه مینه مینه ناک شومه اے مینې زه
ستا د بیلتانه په نور اوچومه خپلې وینې زه
نوره نوره غواړم اسمٰعیل لتا خدایه





محبوبِ سبحانی نظام الدّین دهلوی ګلله
ډیر خوشبویه ګل ئې ته ګل کړے ئې هادی ګله

اے سراجه بل ئې ته له فرید الدّین سراجه
ستا نظرِ کرم ته ډیر مدام یمه محتاجه

اے طبیبه ستا په در کښې پروت یم لاعلاجه
ما په خپل بوستان کښې کړه د ځان سره مالی کله

ستا په لور پرواز کوی ډیر صبح وشام بادِ حجاز
ته په خوبرویانو کښې مقام لرې بالا د ناز
ډیر په تا شیدا دے اجمیری خواجه غریب نواز
ته ئې په میخانې د چشتی کښې خمار ی کله

ستاله میخانې دی جوړې شوې میخانې ډیرې
ستا د مخ رڼا باندِ ستی دی پروانې ډیرې
وائې بلبلان دِ په بوستان کښې ترانې ډیرې
دور لتا غمونه دی په تا ده تل ښادی کله

سلطان الاولیاء ئې ته ډیر لوئې سلطنت لرې
ته د پاک محبوب په طفیل تاج د ولایت لرې
خپلو مهرویانو سره ته ډیر محبت لرې
ته د اسمٰعیل تنکی د پیاره ئې ساقی کله





زۀ په دام کښې دام بر دم پکښې دام گر شوم
دام گری کړمه دام گوله زۀ ئې نوکر شوم

د غم دام کښې مې هنر زده کړو غمژن یم
د فیاض په قینچې غوځ د زړۀ په سر شوم

د یزدان سره پیوست یزدان ته ژاړم
زۀ د ځان د ړو بید و ستر سمندر شوم

ډیر جوهر یکښې لټوم د ناز سلطان له
دې کیمیا پسې له ځانه زه بهر شوم
قد قامت د جواهر و معلومومه
ستومانی لره په بحر مقرر شوم
د هجران په اله ئې ځکو رمه په خوب کښې
په دې کار کښې مړنے د بحروبر شوم
د خندا قاعده مې هیره دې روزګار کړه
په ژړا نن همه عمر مسرور شوم
د سبحان وطن کښې هر وخت سفر کاندم
بل وطن ته د سبحان څمه خبر شوم
لوئې انبار د جواهر و راځخه دے
زه پر نور بدمه مریږم ته نهر شوم
اوکے تګے به زه بل وطن ته لاړ شم
بنه به مور شمه چې دلته در په در شوم
اسمٰعیل به دا ګدا چرې پریږدم
په ګدا باندې بادشاه او ګدا ګر شوم



تا چې ماله په سینه کښې د عشق بریخ که
دا دې ځان پسې زما رکونه ویښن که
چې له خوابه دِ بیدار کړمه بیا نه وې
خپل یادونه دِ زما په زړه کی سلیخ که

له غمونو مې محل دَ خاطر ډک شه
راحتونه تر پـه تیښته زما شیخ که
ورځ په ورځ مې داغمونه سیوا کیږي
وتے نه شي تا مې زړه کښې داسې میخ که
توَل غمونه ستا دَ حُسن صفت کاندی
نور صفات يې له زړګي ویران له بیخ که
جیلخانه کښې به موړ نهٔ شې په شرابو
اسمعیله که خدائے دړ باندِ پیښبر که





ځائے په ځائے مې جوړ له اوښکو شوهٔ ډنډونه
وروپه ورو بیړ شوهٔ سیوا زما غمونه
زړهٔ مې شین دَ شین ګنبد په شین تصویر دے
سپین رخسار تر وروی په ما اوړ وړنه
زنګانهٔ باندِ مې سر له غمه اېښے
دَ قبلې په لور مې مخ دے کړم وِیروَنه
زړهٔ به چرې دَ قبلې نه مخ واړوهٔ روم
دې ادا کښې ادا کومه نوږ نمونځونه
دریابونه له ډنډونو څخه جوړ شوهٔ
دَ جانان په لوری ځمې وهي موجونه
زړهٔ مې ډیر دَ دلربا غیرې ته کیږی
کله ښکل به يې کړم خدایه قدمونه

په دریاب د عشق لاهو یم تن مې اوسوه
دیار در پسې کړم سوی ارمانونه

پوول زړه کې مې د عشق نمر کړلو چکړمکې
څکه غواړم د وصال تازه بادونه

اسمٰعیل تل د حجاز لاړې ته ګوري
چې د پاسه پرې زما سوي آهونه



اخ په ولې زما سخت ته وې له بخته
له هر اخ سره مې زړه اولې په خخته

له دې اخه مې الا جوړ شي پور ته دروي
د عشق چاره شوله ماله ډیره سخته

د ضیاء څخ په وفا مې داسې حال شه
هر ساعت خورمه وهل د غم په لخته

عاشقي د عشق د دار په سر موندے شي
ورختلے یمه دار ته زړه له وخته

د آشنا د یاره تل په دار خوشحال یم
دیر مې خوښ دے د دار سر له تاج و تخته

اسمٰعیل به تل په یار ځان قربانومه
مامنلے دے چې ځان د یار منخته



ستا دیدن دلبره غواړمه تل زړه
دَ هجران په ژړنده ډیر شومه دل زړه

دَ اهونو په لوګو مې تا لوتور شه
ستا له حُسنه چې په زړه ګ شومه بل زړه

دَ سینې میره مې تولۀ په اور اُسوه
پکښې ښکار شوم همیشه دَ اجل زړه

ستا په ننګ باندِ مې ځان په تا شهید کۀ
په ویرنۀ لرمه ځان پسې خپل زړه

اے حسینه خدائے ته اګوره زړ راشه
خبر نۀ یم چې به څو کړم بلل زړه

دَ خپل حُسن باغیچې ته مې زړ بیایه
یمه تا پسې صحرا کښې بلبل زړه

طوفانونو ډیر زپلے یم دلبره
مدام خوړمه ستا له هجره وَهل زړه

ستا فراق مې له اَزله دے په برخه
تا لرم ځان له غمخوار له اَزل زړه

په غرونو مې حلق اوچ شو لوله تندې
ډیر اخستے یمه تا پسې جَل زړه

اسمٰعیل چې ستا په باغ کښې کشمش خورشم
څۀ کومه بیا دَ غم په غزل زړه

دَ شیطان سره په ځان کښې ښهٔ په جنګ شه
په خپل یار پسې ژړا کوه ملنګ شه
دَ یادونو کچکول واچوه خپل څنګ ته
په عالَم کښې له عالمونه په څنګ شه
دَ حاکم نظام په سر سترګو قبول کړه
ښهٔ خبرې دَ تیرې توری له شرنګ شه
دَ بیلتون توره به تا ډیر واره مړکه
په دا توره هر ساعت په وینو رنګ شه
ځان په وینو کښې لت پت دَ بیلتانهٔ کړه
په خپل یار باندِ فدا داسې په ننګ شه
دَ رخسار له اوره چرې تیښته مهٔ کړه
ځان په دې شمع ستی کانده پتنګ شه
اسمٰعیله کهٔ بوستان دَ دیدن غواړې
دَ بوستان مانړۍ ده هسکه ورته ډنګ شه

---

زهٔ اوخته په مرض دَ لوئ ناسور یم
په خپل یار پسې له حده تیر رنځور یم
بې څلکو مې یوُ ساعت چرې تیر نهٔ کهٔ
ډیر لاچار لا زهٔ دَ عشق له دې دستور یم

په قسمت مې محبت دے رسيدلے
هرې ساسره په دې بوخه مسرور يم
زۀ مېين لکه د قيس په ليلٰى نۀ يم
زۀ فدا په دلربا د خپل غفور يم
تل د مينې په تازه اور باندې سوزم
که اور شوے د تازه اور په تنور يم
د نګار په بيلتانۀ مې تن اِيره شۀ
سوزيدلے لکه زۀ د کوه طور يم
د ديدن يارانو له خدايه څخه غوارم
د فراق په سوکړه زۀ له ياره دور يم
اسمٰعيله والله زړۀ دې د کتو دے
ستۀ خبر دې اوس د مينې له منشور يم





د مسلم په کور حملې د غليم کيږي
خبر نۀ يم چې په دے کله خبريږي
رنګارنګ وارونه ئې اوکړۀ صبر نۀ شۀ
رنګارنګ جواب که ورکړے شي ستنيږي
دښمنانو ته دوستان احمقان وائي
عجيبه ده چې له دې به څۀ جوړيږي
په خپل کور کينې ئې د ځان په ويراخته کړه
دوئ لا بيا هم له هغو نه قربانيږي

دَ غیرت توره یې خرڅه په دُښمن کړه
په دولت یې څکه شپه ورځ نهٔ مړیږی

ما تحتی یې دَ ما تحت ده اختیار کړې
ځائے په ځائے یې دا ما نړئ څکه نړیږی

دَ مسلم نوم به یې له ویرې په خُله نهٔ اخست
اوس مُسلم یې دَ وطن له نام ویریږی

دَ الله ښنک کښې یې طاقت دَ الله ډیر کهٔ
کهٔ یې یاد کهٔ درست جهان پرِ فتح کیږی

له مشرقه ترمغربه غافل پروت دے
مزری لره دا خواب ښنګه ښائیږی

اے مغلوبه تهٔ غالب وې بیا غالب شه
بیا مغلوب نهٔ شې کهٔ دا دِ په زړهٔ کیږی

دا ظلمونه به ښنک ډیرشی له مردانو
په هر ظلم دَ سړی زړگے غوښیږی

دَ دُنیا په هره سیمه مُسلم یو دے
له ځان ورک دی په وفا به موندے کیږی

اسمٰعیل به چرې هم مُسلم هیر نهٔ کړی
په اُلفت دَ پاکستان ورته یادیږی



اوریدهٔ بې له خپل یاره کوے نهٔ شم
زهٔ خبره دَ بل چا اوریدے نهٔ شم

اے ناصحه زهٔ په دواړو غوږو وکوڼ یم
یؤ ذره دِ په ګفتار پوهیدے نهٔ شم

دَ دلبر خیرې اوږمه په زړهٔ کښې
ستا ګفتار ته یؤ ساعت سمیدے نهٔ شم

سماعت مې بې له دې بل کیدے نهٔ شي
له دلبره چرې مخ اړوے نهٔ شم

ذهانت ما نیول له دې سماعت زده کهٔ
زهٔ دا ګنج درومرجان پریښودے نهٔ شم

زهٔ په امر درمرجان ورکوم بل له
بې له امره دَ تاجدار ورکوے نهٔ شم

تاج وتخت باندِ به څهٔ کوم چې دا شته
یؤ دانه په تاج وتخت بدلوے نهٔ شم

ما موندلی دا ګوهر دَ عشق په لاره
له دې لارې چرې بل خواوتے نهٔ شم

اسمٰعیل به دَ ګوهر وشاه له لاړشم
په دیدن به ئې همیشه مړیدے نهٔ شم

---

دَ جلوو مهرویانو دَ سرکله
دَ هر چا په حقیقت کښې پیره خپله

ستا له مخه په رب ځان مخلوق ته ښائی
ستا له مخه به دوئي اوبخښي پخپله

ستا له مخه يې معرفت دنيا کښې جوړ که
خپله مينه يې په ستا ده مکمله

د دې ميني مينه ته يې مينه ناکه
هر څه کاندې ذوالجلال ستا له کبله

له ازله يې محکښې خوښ يې له قديمه
چې ته نه وې ستا قيصه يې ځان ته کوله

خپله مينه يې پيدا کړې په اول کښې
پس له هغې يې په نورو اوښيله

پټ بشر کښې نور را غلے يې دنيا ته
اسمٰعيل په تا شيدا يم له ازله





چې پخپله څو خوشحالا له زار نه شي
تر هغې به هيڅ خبر له دلدار نه شي

باغيچه چې د له زړه نه جوړه نه وي
د يار در پسې به ته په رفتار نه شي

ماليار زده کړه د زړه په باغيچه کښې
د يار باغ کښې به ته هسې ماليار نه شي

ماليارئ لره خپل يار يې رالېږلے
بې له مينې به اشنا د نګار نه شي

غمخوري کوه ته هغه خوشحالے له
بې غمخويه د دنيا په بازار نه شي

سودا کړ شه تل دَ عشق دَ سرو سکروټو
يار مونده شه په دُنيا کښې بېکار نهٔ شي

له خپل ځانه بهر اوځه دَ يار لار ته
څنګ به ئې مومې چې دَ لار پېره دار نهٔ شي

يار ته لار چرقاوَ وه مدام په او ښکو
ملاقي به بې له دې انتظار نهٔ شي

فوارې دې نه دَ سترګو نښې نهٔ شي
له يادونو څخه ئې چرې قرار نهٔ شي

منتظر خطاب چې يار تا لره دې که
اسمٰعيله بيا جُدا به له يار نهٔ شي

---



په الفاظو کښې مې نشته چې ئې بيان کړم
داسې چارې له پيدا تا په جهان کړم

کور دَ پوهې مې په دې څهٔ پوهه نهٔ شهٔ
کړه مې پوهه په دا پوهه دا ارمان کړم

ستا دَ حُسن انتها نشته خدايه
دغه حُسن له دِ دلته بنديوان کړم

له خپل حسنه دِ پيدا ځان له حسين کهٔ
دې په دې دا ذرهٔ په دهٔ پسې هجران کړم

کل عالم حسن دَ دهٔ له حسنه مونده ے
ځکه تا دَ خپل حبيب زهٔ صفت خوان کړم

ستا له حُسنه په داوړ کړه څۀ کم نۀ شي
په یوۀ حال ئې ځکه سوال له تا هر آن کړم
اسمٰعیل ستا په حسین حبیب عاشق یم
ډیر زخمي ئې زړۀ په غشو دَ مژګان کړم





دَ شفقت په پټ مې ځان له دُنیا اوخکۀ
دَ زینت په نور مې ستر کودریا اوخکۀ
دَ نصیب په دام بندي یم دَ غم زور کښې
ځان مې ځان نه دَ دې غم په غوغا اوخکۀ
تن وطن مې سره دواړه جانان یوړۀ
تورې شپې ته ئې مدام له صبا اوخکۀ
توره شپه کښې په امسا دَ شفقت کړم
تول عکسونه ئې زما دَ وفا اوخکۀ
په وفا نوره وفا له وفا غواړم
په وفا پسې مې زړۀ دلربا اوخکۀ
دَ چمن په لورې ئې یوړو په خپل زړۀ کښې
همیشه ئې زما زړۀ له خندا اوخکۀ
نش کوکل زړۀ دَ چمن په لورې درومم
ډیر زوزان ئې له بیابانه په ما اوخکۀ
اسمٰعیل تل دَ الله په توکل کړم
کۀ غمونه ئې له زړۀ نه زما اوخکۀ

مسلّط په ما غمونه دَ انعام دی
دَ یار غم کښې زهٔ په داسې ناکام خوښ یم

ما فرقت دیدن دَ یاره دے خوښ کړے
خپلې تندې لره ځکه په جام خوښ یم

موړ به نهٔ شمه په جام یم جل وهلے
ستا له اَمره په داجل زهٔ مدام خوښ یم

دَ وفا قیامت مدام په ما تیریږی
دې قیامت کښې زهٔ دَ مرګ په دانام خوښ یم

زما مرګ کښې به دیدن زما نصیب شی
زهٔ له حده تیر دَ مرګ په پیغام خوښ یم

هر ساعت دَ مرګ ساعت ته یم لیواله
زهٔ په ځان باندِ په داسې نظام خوښ یم

هر کلے به عزرائیل ته بیا بیا وایم
ترهغې زهٔ اسمٰعیل په صیام خوښ یم





نهٔ مې دیدار نهٔ مې دلبر اولیدهٔ
ځان مې په یار پسې پوړ اولیدهٔ

زهٔ چې دیدار کړمه په طمعه دَ یار
نهٔ مې شبنم نهٔ مې سحر اولیدهٔ

خدائے خبر دواړه به کله راشی
نهٔ مې شوقدری نهٔ اختر اولیدهٔ

دَ یار په غم کښې به ترڅو کړځمه
ما خو دَ اوښکو سمندر اُولیدهٔ
دَ شهنشاه لاړې نه کوم مدام
خخ مې دَ زړهٔ په سر خنجر اُولیدهٔ
بې له فکرونو زما کار نشته بل
دا لوئې دریاب مې بنهٔ جوس اُولیدهٔ
دَ کُل عالم حُسن لوګے شه لـه دهٔ
کرمه ارمان کهٔ مې دا نمر اُولیدهٔ
ما اسمٰعیل نه دُنیا پاتې شوه تل
چې مې دَ مینې دا منتر اُولیدهٔ



دلدار ه تور دَ سترکو دِ عقیقِ یمنی دی
له توروئې چا پیره سپین کلونه یاسمینې دی
زلفې دِ سنبل زما دَ دل دَ پیاره دام دے
ستا په سپین بشرېسې زما څکه صیام دے
نقش زما په زړهٔ دلبره ستا دا ښکلے نام دے
وایمه درود سلام په تا هم دامِ کام دے
ستا دَ فم خبرې همه وارهٔ رحمانی دی
ستا ښکلی بشرېسې عشاق په غرونو سر شوهٔ
زړونه ئې په تیغ دَ بیلتانهٔ باندِ پرهر شوهٔ
ډوب په محبّت کښې دَ هجران په سمندر شوهٔ

ستا دَ مینې اور کښې دا همه واړه کسکرشوهٔ
ناړې ئې په دې اور کښې یارسولِ مدنی دی

ستا په محبّت کښې انتظار دَ محبّت کوی
دوئې په انتظار کښې په ځان چارې دَ قیامت کوی
حرص دَ نیک عمل په دغه لار ه هر ساعت کوی
خوشې بیابان کښې دَ عدن هغه عادت کوی
خویونه ئې په تا پسې دلبره عدنی دی

ستا دَ عشق سکروتو نه مې ډکه ده سینه همه
نهٔ شمه لوټلے ستا دَ علم خزانه همه
نهٔ شي تمامولے څوک دَ مینې میخانه همه
څکه اسمٰعیل دِ وئیلے نهٔ شم ترانه همه
وایم همیشه چې دا چشمان دِلا ثانی دی





دَ دلربا سترګې یادیږی زما
ډیر په یادونو زړهٔ خوږیږی زما
زما او دَ یار ترمینځه لږ مزل دے
لکه په زړهٔ کښې چې پټیږی زما
کوم ځائے به کرځمه په ځان پسې زهٔ
چې ځان مې یار پسې ورکیږی زما
کله ئې ځائے راته دیبار اوښائے
کله دیبار هم پټ او سیږی زما

کله دَ ځان په تماشه شمه تړه
کله مې ځان ته ځان ژړيږي زما

دا لږ مزل راته الله اوږد کړے
يوُ ورځ به دا سفر غوښيږي زما

لاړه دَ ميني مې په زړهٔ جوړه دهٔ
اخر به يار پرِ مونده کيږي زما

اے اسمٰعيله شا به نور هم چاق شه
له ياره زړهٔ کله صبريږي زما





تش په نوم دَ مسلمان نور ګرځه مه
دَ غفلت په بيابان نور ګرځه مه
دَ ابليس خبيث له بنده څخه خلاص شه
تهٔ په خوښه دَ شيطان نور ګرځه مه
دَ شيدا قاعده کړه خپله چې قائد شې
بې دَ لارې دَ سُبحان نور ګرځه مه
دَ صبا په لور روان شه له دې شپې نه
په تيارهٔ کښې سرګردان نور ګرځه مه
نقاب پوش سره په هوش خبرې اوکړه
بې واکئ کښې دَ زيان نور ګرځه مه
محترم به معظّم خطاب درکاندی
له دې شان نه په بل شان نور ګرځه مه

دا روزګار به دِ محروم کړه له حرمته
په بازار کښې دَ تاوان نور ګرځه مه
دَ عجیب خطیب خطبه دِ رایه یاد کړه
هیر وُو نکے ئې له بیان نور ګرځه مه
باغ دَ یار کښې په مالیار شي که ئې غواړې
بې له یادو دَ جانان نور ګرځه مه
دَ ضمیر واګې قابو کړه اړتاؤ نه شي
په چقړ وکښې دَ ځان نور ګرځه مه
اسمٰعیله ګرځیده که چرې پرې نه دي
خوبې عشقه په بل توان نور ګرځه مه



لرې دَ یار له میکدې خفه یم
زهٔ شرابي یم بې نشې خفه یم
خفه خفه په بیابان کښې ګرځم
خفه ریګونه دي په دې خفه یم
څهٔ ته چې ګورمه زخمي لیدے شي
ډیر زهٔ په داسې حادثې خفه یم
وایمه هر وخت میکده میکده
داسې له ډیرې زمانې خفه یم
په بیابان کښې بیابان شوم دَ غم
لکه بورا بې باغیچې خفه یم

مالا تراوسه سحر اونهٔ لیدهٔ
دَ انتظار په اوږدي شپې خفه یم
ساقي مې جام ډک دے بیوے اُوري
زهٔ اسمٰعیل ورته دلې خفه یم



ستا رُخسار زما یادیږي محمّدهٔ
زړهٔ مې تاپسې ژړیږي محمّدهٔ
بې لتا زهٔ یوٴ ساعت تیرَوے نهٔ شم
په زړگي مې اور بلیږي محمّدهٔ
محمّدهٔ ستا په زلفو بندیوان یم
په هر وَل مې زړهٔ خوږیږي محمّدهٔ
محمّدهٔ محمّد مې په زړهٔ لیک دے
خنک به دے لتا صبریږي محمّدهٔ
یا حبیبه محمّد محمّد وائی
دا سې عمر مې تیریږي محمّدهٔ
محمّد راته په هر لوري لیدے شي
پرِ زړگے زما نریږي محمّدهٔ
ستا دَ نوم په اخستو به زهٔ مور نهٔ شم
کهٔ قبلې نه نمر راخیژي محمّدهٔ
توري سترگې به دِ خنک له ما په نظر شي
چې په زړهٔ کښې مې اوسیږي محمّدهٔ

دَ رحمت ستوري الله تالره در کړي
رحمتونه ترِ وريږي محمدهؐ
ما محمد اسمٰعیل ته ډیره خوږه
هم په تا مي زړه خوږيږي محمدهؐ



په دربار دَ مهر ويانو کښې لوغړيږم
مهرويانو پسې شپه اؤ ورځ ژړيږم
په وطن کښې بې وطنه ژوند تيرومه
دَ کړون په تماشه يمه کړيږم
دَ رخسارِ لاثاني دَاور دلاسه
گذار شوے يم دې اور کښې ستي کيږم
دَ ديدن چمن لټومه په لمبو کښې
په درياب کښې دَ ارمان ورو ورو ډوبيږم
دَ هجران ځلے په ما ترآسمان جور شهٔ
هر ساعت دَ يار په مينه فنا کيږم
په معشوق باندِ عاشق دَ دهٔ عاشق کړم
له عاشق ځخه ئې ځکه ډير ويريږم
دَ معشوق په روئ ترِ هر وخت معشوق غوارم
په دې حال کښې به زهٔ څنگه خوشحاليږم
چې ئې عاشق کړم دا اميد کړم يار به راکړي
اسمٰعيل به بيا له يار ځخه او سيږم



چې دیدن مې دَ خپل ښکلي جانان اوکهٔ
په تلوار مې ترِ تپوس دَ هجران اوکهٔ
جانان اُووې ماته څکوره دا هجران دے
دا دیدن خو تا زما په بیابان اوکهٔ
په چمن کښې به له دې نه ډیر ښائسته یم
هغهٔ دم مې پسې ډیر ډیر ارمان اوکهٔ
ارمانې شومه تر عمره دَ جانان زړهٔ
پسې ګرځم لوړ په لوړ مې میزان اوکهٔ
په وصال کښې يې وصال غواړم عالمه
په ما ډیر دا عجیبه کاریزدان اوکهٔ
په سکوتو دَ هجران مې تن ورسنیري
ما مدام څکه دَ هجر بیان اوکهٔ
اسمٰعیله تل سوزیږه په دې اورکښې
کهٔ تپوس دِ هغه ښکلي تابان اوکهٔ





په دُنیا کښې دَ خوبانو بادشاه څکوره
په ژړا ژړا تل هغه خندا څکوره
دَ آقا هغه روښان دړنه چې دړومې
دې تیارې لره دَ مینې رڼا څکوره

دَ رښا وطن ته لاړه بنهٔ په رښا شه
دَ زړهٔ لارې باندې روان اوسه دا ګوره
دَ بیدیا نه دَ چمن په لور کاته کړه
ګذار نهٔ شې ورسره دا بیدیا ګوره
دَ توکل په عصا تل زه په دا لاره
محمّدؐ خیر الابرار دلبر باګوره
دَ زړهٔ لار به هم لتا سره ځې یوځائے
ملګرتیا ته ئې دَ جفا اؤ وفا ګوره
خفه زړهٔ چې دِ تپوپونو ښخه بس کړې
اسمٰعیله بیا دِ خنک کښې اَشنا ګوره





له زړهٔ کښې چې جوړ دَ غم رباب دے
خپل دلبر راته په دهٔ کښې په خطاب دے
دَ دلبر خطاب چې اؤرمه ژړېږمه
ځان مې ډوب دَ خپلو اوښکو په دریاب دے
درست جهان په ما تور تم دے کوم خوالا ږشم
دَ هجران په اور مې تن همه کباب دے
دَ یار لارې ته مې سترګې دی نیولی
انتظار دَ یار په ما یوم الحساب دے
ډیر موجونه مې دریاب دَ مینې کاندی
مسلّط په ما مدام دَ عشق سیلاب دے

آوازونه له دریانه کوم یار ته
چپاوونو کښې لمبا پټ په حجاب دے
زهٔ دَ عشق دَ اور دریاب کښې سیلاب یوړم
په نصیب زما له عشقه دا عذاب دے
دَ دلبر په طفیل زهٔ داسې شاعر شوم
لیک په زړهٔ مې دَ اشعارو لوئې کتاب دے
اسمٰعیل په دا دُنیا دوزخ کښې سوزم
خوشحالو لره ورکړے ما جواب دے





په ما سفر کښې ترانې پیښې شوې
یاره دا سta له میکدې پیښې شوې
ستا دَ یادونو له کلانو مې هار ونه جوړ کړهٔ
نا مې سینه کښې دې پیللو له سازونه جوړ کړهٔ
څکه پر ما ته افسانې پیښې شوې
زهٔ په لیمو کلات ټوټوه ستا دیدن دَ یاره
له دې چمن څخه اورمه ستا چمن دَ یاره
په ما اغزنې باغیچې پیښې شوې
ټوله لمن دلبره زهٔ په وینو سره لرمه
ځان پکښې کورم ټول زخمې یم آئینه لرمه
ما ته دَ هجر حادثې پیښې شوې

تالره زړه په حادثو کښې درروان یم دغم
دخپلو اوښکو په چپو کښې ډیادومه صنم
داسې دِ ماته نظارې ښې ښې شوې
ستا دجلوو په تماشه یم ستی کېږمه زړه
ځان ته مې اوکاته ایره یم پښه پوهېږمه زړه
چارې په ما د پروانې پېښې شوې
ستا په الفت مې داسې حال شه بیابان کښې دویر
خور مې په تن د هجر جال شه په رضا د قدیر
ځکه په ما دغم مصرعې پېښې شوې
مدحې دې تل اسماعیل وایه تانه هیروم
ښکلے رخسار به دې زړه ستا یمه دانه هیروم
دا په ما ستا له خزانې پېښې شوې





سیلانے چې زړه د مینې د بوستان شوم
په لیدوئې هغه دم ځیرې کریوان شوم
په بوستان کښې د ارمان چغې وهمه
په هر وخت پکښې هر لورې ته روان شوم
همیشه د خپل جانان لټون کښې کړم
ډیر زخمی د دې بوستان په خارستان شوم
زما وینې د بیلتون په نمر اوچیږي
په ارمان د دید نونو د باران شوم

په غنګو کښې چپل زیبا دلربا ستا یم
همه عمر په دې ذکر د جانان شوم
ده وفا زما په برخه له ازله
په بوستان کښې زه بلبل د بیابان شوم
اسمٰعیل په پسرلي کښې ګلان غواړم
د بورا په شان زه تور په داخزان شوم





زه به ستا بنکلے رخسار خنک هیرومه
په چپل زړه کښې به انکار خنک هیرومه
هر ساعت چې مې په زړه کښې نور ډیریږي
داوار ونه به د یار خنک هیرومه
چې آفتاب زما په زړه کښې ئې ځائے شوے
شپه او ورځ به د رفتار خنک هیرومه
تا زړه چمن دے ماله سوکړه کړے
هر یوګل به ئې بیمار خنک هیرومه
استسقا کړم د دیدن یاران د پاره
زه به نونځ د انتظار خنک هیرومه
چې ربیار مې دي یاران له ره ورېځ ده
زه به دا عجب ربیار خنک هیرومه
اسمٰعیل به دِ په طمعه یم ترمرګه
زه به تا سره اقرار خنک هیرومه

یم ډوب شوے د ساقي په ښکلي جام کښې
تیر وُمه ورځې شپې په داسې دام کښې

زۀ له جامه پوره ته کړم ګلستان ته
تماشه کړم د ګلانو دې نظام کښې

بحر و بر راته خسنړے پکښې ښکارې
منتظر یم له مودو راسې دې کام کښې

جامِ جم راته ولاړ کُته په خُلهٔ دے
زما عمر دے په جامِ ناتمام کښې

په ورو ورو ترِ نوش کوُمه نهٔ مرېږم
کړمه غوښته همیشه زۀ په قیام کښې

لاس په نام غواړم له جامه جام کښې جام زۀ
شوم بې تابه د دُنیا په دې ایّام کښې

اسمٰعیلؔ به له ایّامه کله خلاص شم
چې په جام کښې مدام ژوند تیروم آرام کښې

ـــــــ ✻ ـــــــ

زۀ چې ستا د لوئې کمال په ننداره شوم
اے دلبره هغه راسې غمزده شوم

بې له غمه نور له هر څهٔ نا اشنا یم
ستا د هجر په آره آره اره شوم

کوم خبري زهٔ له غمه سره پيتي
په ميچنه ستا دَ غم ذره ذره شوم
څځ شرګند کړه له نقابه څخه زړ کړه
ستا په غم کښې دَ غمونو مقبره شوم
ډير غمونه مې دَ زړهٔ صحرا کښې خخ شوهٔ
صحرا ډکه شوله ځکه بې چاره شوم
نواتې مې قبوله کړه دلبره
راته اوګوره په غم ډِ دليوانه شوم
اسمٰعيل پخپله غم شوم په غمونو
په زبان اؤ په قلم ځکه بنکاره شوم





زهٔ به ستا په بيلتانهٔ ترڅو سوزيږم
زهٔ به څو لکه ديوال ورو ورو نړيږم
ستا دَ مينې په پلک خوږ مه کړه ارونه
نهٔ ژوندے يمهٔ نګاره نه مړ کيږم
انتظار کومه ستا دَ تورو سترګو
په مرهمو دَ ديدن به دِ رغيږم
ستا دَ زلفو په هر وَل باندِ بندي يم
امکان نشته بې لتانهٔ خوشحاليږم
خوشحالئ مې واړه ستاله مينې زار کړې
تهٔ مې غم خوشحالي دواړه ئې پوهيږم

ستا دَ مینې طوفانونو یم زپلے
ستا دَ مینې ارمانونو کښې اوسیږم
اسمٰعیل به ستا له مینې نهٔ جاروځم
کهٔ هر څو داسې په تا پسې کړیږم



کهٔ دَ یار په مینه داسې غمګین نهٔ ووم
په سرو وینو دَ هجران به رنګین نهٔ ووم
کهٔ دَ عشق سکروټو زهٔ نه وے داغلے
په زړګی به چرې بیا داسې شین نهٔ ووم
کهٔ له ما نه دَ ارمان خلے جوړ نهٔ وے
ګذار شوے به په دې تاترین نهٔ ووم
دریا بونه کهٔ مې جوړ نهٔ وے له اوښکو
زهٔ به چرې هم زرغون په زمین نهٔ ووم
محبت کهٔ مې هر رګ نهٔ وے سیزے
خال به زهٔ دَ دلربا دَ جبین نهٔ ووم
کهٔ زما مینه دَ یار نهٔ وے قبوله
دَ یار لاس لره به زهٔ بیا نګین نهٔ ووم
کهٔ دَ عشق په تیغ زهٔ نهٔ وے حلال شوے
سپین رخسار ته به دَ یار تماشبین نهٔ ووم
کهٔ پروت نهٔ وے زهٔ ریګونه بیابان کښې
ارمانی به دَ ګلاب اؤ یاسمین نهٔ ووم

کهٔ زخمي په غشونهٔ وے دَ مژګانو
دَ زړهٔ کور کښې به ئې زهٔ همنشین نهٔ ووم
وربخښلے کهٔ مې ځان جانان ته نهٔ وے
په دې وخت کښې به عاشق اوّلین نهٔ ووم
کهٔ رضا نهٔ وے زما دَ یار رضا کښې
اسمٰعیل به ئې په خلهٔ آفرین نهٔ ووم





تمام ایّام په دام کښې دی غمونه بې حسابه
یار به کله ما ته مخ څرګند کړی له نقابه
ځان مې پسې ټول دَ بیلتانهٔ په تیغ پرهر کړو
خپل ویرونه اور مه دَ خپل زړهٔ له ربابه
ټول تیکې تیکې شوم دَ تابان په نمر ورتیرم
موندے دے شفاف آفتاب له دغه لوئې آفتابه
څنګ به مې په زړهٔ کښې بل څهٔ تیر شي پدې حال کښې
یادونو دَ جانان چې یمه ویښے زهٔ له خوابه
ځان مې په یادونو دَ اشنا زړې زړې کهٔ
چرې به اونهٔ ځمه دَ یادوله دریابه
یم دَ ساقي جام ته ډیر لیواله دې دریاب کښې
غواړم جام مدام زهٔ اسمٰعیل یمه بې تابه



پیر زهیر په ویر کښې دَ دلبر یمه ساتلے
غوره فن دَ درې راته ښائي دا ښاغلے

تن مې ټول په اور دَ محبت کښې ستې کېږي
ځان مې لا تراوسه پورې روغ نهٔ دے لیدے

کړمه تل ویرونه په خپل یار پسې بلبل یمه
ما دَ یار په مینه کښې داوِیر په ځان منلے

مانه وړاندې ډیر عاشقان یار ځان ته بللي دي
دا مې لوئ ارمان دے کهٔ زهٔ هم وے یار بللے

پیر زما هم یار دے هم دیدار دواړه عهدې لري
ځکه زهٔ په برغوتوړ ویمه پرهر ژړلے

وینې ئې زما دَ یار په لوړ رواڼ کړې دي
ما ورڅخه بیائي وائي تا دے زړهٔ بائیللے

اوښکې مې له وینو څخه کړې ځې دلدار لره
زهٔ ورسره درومه یو ځے دَ ارمان ښد

اوبه رسم یار له یوه ورځ به دیدن اوکړمه
ما ته خپل مرشد داسې فرمان دے اورے

مرشد چې مې څهٔ وائي اے عالمه ټول رښتیا وائي
ډیریم دې رښتیاؤ زهٔ په زړهٔ باندِ داغلے

اور دَ حقیقت راله په زړهٔ کښې بلوی مدام
ځکه اسمٰعیل یم په دې اور کښې دهٔ ترے

○

په بازار د واويلا کښې سودا کړيم
ارماني د خپل آشنا د ښکلي درييم

دا په درد د يار په دا پسې کړ ځيګم
په دريآب د عشق ډوب شوے بنه جوړيم

که نارې وهمه ډيرې له دريابه
جواب نه راکوي ما الله بنه خبريم

له ناروبه مې زړه چرې صبر نه شي
زه مئين د دلربا په سپين بشريم

دواړه ګوته ئې له يؤ وييښته نه زار شه
زه بندي په تورو زلفو د سرويم

عندليب غوندې ماليار پسې ژړيږم
د ماليار له تورو سترګو باخبريم

اسمٰعيل د انتظار په اور کسکرشوم
زخمي کړے خپل آشنا د زړه په سريم

---

○

که زړے داسې نه وے دې بېلتون زه
هيڅ خبر نه ووم د مينې له قانون زه

چې ژړا مې په نصيب شوه هله يار شوم
دې ياري کښې به کومه ښکلی سکون زه

زۀ په کړو دَ خدائے حیران یمه په عشق کښې
اَرمانی دَ خپل جانان یمه په عشق کښې

ګرانه چاره کړه خدائے راته راپیښه
ګذار شوے په نیران یمه په عشق کښې

په نیران کښې به تل سوزمه دَ عشق زۀ
زۀ خیر له دې زندان یمه په عشق کښې

همه عمر دَ عاشق اور کښې تیریږی
ځکه زۀ په هائے سوران یمه په عشق کښې

عشق خدائے دے په خپل ځان مې ستی کاندی
په دا ځان ئې ورک له ځان یمه په عشق کښې

زړ چې اوراوخړې دَ یار دَ غاړې هارشی
تماشبین دَ ګلستان یمه په عشق کښې

اسمٰعیل به دَ خپل یار غاړه کښې پرونت یم
زۀ دَ یار په لور روان یمه په عشق کښې

---

ما خوړے په زړۀ غشے دَ حجاز دے
خپل جانان کړے داوار په ما دَ ناز دے

دَ باران په شان په ما غشی راوورے
په هر غشی کښې ئې لما سره خپل راز دے

قبول کړي مې دا غشي دی دَ مینې
په ما نوم څکه صنم ایښې جانباز دے

له ازله نشانه یمه دَ غشو
له ډیر غمه مې شروع سینه کښې ساز دے

له مودو راسې مې زړه په یار بائیلے
زما یار په کُل عالم کښې ډیر ممتاز دے

اسمٰعیل لائق دَ یار دَ یارۍ نهٔ ووم
وسیله زما خواجه غریب نواز دے

---



چې خمار دِ په شرابو دَ وفا کړم
هغه دم دِ یاره ډوب زړهٔ په دریا کړم

دَ یاد ونو په دریاب کښې دِ یادومه
تا په ځان پسې ټول عمر په ژړا کړم

طوفانونه دَ هجران مې دی ملګړی
خوشحالو نهٔ یٔ همه عمر جُدا کړم

په هر لور راته ستا مینه هر دم ښکاري
آئینه به یاره نوره هم صفا کړم

کړد غبار به پرِ لما چرې پریوتړی
اے دلبره زړهٔ به تل هم دا ادا کړم

ستا دَ در لاره به پرې نږدم ترمرګه
ډَل به تا پسې خپل ځان په آسیا کړم

ستا له رنګه ګُل خوبانو رنګ اخستے
ستا په مینه په ځان تور لکه بورا کړم
اسمٰعیل به لتا چری صبر نهٔ شم
دَ بُلبل پشان به شپه ورځ ستا ثنا کړم



ستا دیدن پسې دلداره قلندر شوم
دَ ریدی په څیر صحرا کښې اوچ په نمر شوم
خبر نهٔ یم چې دیدن به کله اوکړم
ارمانی دِ همه عمر دَ بشر شوم
دَ دیدن فرمان دِ کوړے وور بیا ر ته
په تلوار دَ انتظار پَرهر پَرهر شوم
ستا دَ عشق لښکرو زړهٔ تالا والا کړم
هم په عشق کښې سیلانے دَ بحر و بَر شوم
پروانه ستی که ځان په چُور لګونو
زړهٔ په اور کښې درون پروت یمه کسکو شوم
بې لتا زما په یاد کښې بل څهٔ نشته
زړهٔ مدام هم ستا یادونو ته نهر شوم
ستا دَ مینې انتها نشته صنمه
ستا په مینه دَ غمونو سمندر شوم
مرګ به راشی ما به بیائی خوشحالو له
اسمٰعیل په دا اُمید دَ ستا نوکر شوم

چې نصيب مې په ترتيب کړ تا ازل کښې
له ترتيبه ذِ عشق راکړ په اوّل کښې

دا ترتيب دَ عشق په زور ادا کومه
راکوي رااله هم عشق ته په بدل کښې

کړ دا برخه مې هر څو ترخه ليدے شي
حقيقت کښې ده شيرينه په اجل کښې

دَ زړه باغ به مې پر هر مره بنه تازه وي
چې مې څومره اور بليږي په کوګل کښې

له حجازه دَ اِعجاز په اور کښي سوزم
هم مدام يمه دَ دغه اور تکل کښې

په ورو ورو دَ صنم خوا ته نژدې کيږم
سره ګلونه ئې راته بنکاري په اوربل کښې

دَ نژدو ديدن به ئې رب زما نصيب کړي
اسمٰعيل کومه دا سوال په غزل کښې

---

شيدا يمه په تا اے زما دلربا حسينه
زړه زما په تا پسې زخمي دے نازنينه

زلفې دې خوشبويه اوږې حده تا باني ګله
دغسې له ځايه پيدا کړي دې ها دې ګله

خیږی دې شغلې له مخ له کُل عالم برینه
ستا دَ مخ رڼا دواړه جهانه کښې خوره ده
ستا دَ هر عاشق له سینې جوړه آئینه ده
اَخلې عکس دَ ټولو آئینې ستا له آئینه
په خپلو عاشقانو ته عاشق له دوئي نه ډیرې
ته دَ دې همه واړو رهبر بدر منیرې
مومې نمر سپوږمۍ ستوري رڼا ستا له جبینه
امام الانبیاء وې دَ معراج په شپه دلبره ته
ﷺ پاک الله له ئې لا مکان ته منوره ته
اے په لا مکان کښې له مولیٰ سره مکینه
مینه دې مدام غواړم جانانه له خدایه زه
قبوله دې شی ستا په مخ یم ستا دَ در گدایه زه
زه اسمٰعیل پایمه دُنیا کښې ستا په مینه





دَ رُخسار ګلزار ګلزار کوم بیابان ته
شوم انکار په دا انکار باد دَ هجران ته
بیابان مې سرې لمبې کۀ پکښې ګرځم
دَ دیدن دیدن نارې وهم جانان ته
دَ دیدار او دَ جانان صلاح یوه ده
یمه دَ واړو اچولے زۀ زندان ته

هر ساعت ربیار خبر راوړي د هجر
ډیر حیران یمه دي خپل زړګي حیران ته

د جانان د خلې خبرې راته کاندي
تل ژړیږمه د یار د خلې بیان ته

د یار مینه کښې ژړا زما شیوه شوه
ښکاري یار زما په زړه زما چشمان ته

اسمٰعیل له ډیر نزدې جانانه دور یم
دور به نه یم که یې وار لاړم بوستان ته

زړه چې مې دلبر اوړه په سوکو د مژګانو
زر زر يې بندي که زولنو کښې د زلفانو

نیولې يې د رخسار په سر ولمبو مدام يې سیزي
جوړ دي له ازله دا قانون د خوبرویانو

ځیزي پتنګان ځکه په شمع باندې ځان خپل
شمع ډیره سوزي په دا اور له پتنګانو

هیڅ احسان عاشق په دې معشوق کولې نه شي
عاشق دي دا معشوق له حده تیر په عاشقانو

غواړي له ساقي شراب د مهر پر مریدي نه
خپله ساقي ډیر ځښې دا شراب له مهرویانو

ژوند د هر عاشق وي دې نشه کښې بل څه نه غواړي
په برخه داسې چاره ده دنیا کښې د مردانو

یمه همنشین په میخانه کښې له خپل یار څخه
نهٔ شم اسمٰعیل چشمان اړوئے ئې له چشمانو





دَ سرو لبو تبسّم به مې هېر نهٔ شی
لږ ساعت به هم له ما تیر و بیر نهٔ شی

یار تیرهٔ شمشیر په زړهٔ زما دړون کهٔ
همه عمر به بیرون دا شمشیر نهٔ شی

دَ شیرین لذّت به څنګه را معلوم شی
چې وړومبے مې تیر له حلقه ګنړیر نهٔ شی

له شودو څخه به غوبیړ چرې وانخلی
چې په تومنه دَ بیلتون په بل څیر نهٔ شی

دَ هجران په سرو لبو چې وِ بیلې نهٔ وی
عاشقانو کښې به چرې هم شمیر نهٔ شی

له غنمو به نغن څنګه جوړیږی
څو چې دړون پل ته دَ ژرندې ورزیر نهٔ شی

دَ یار غیږه به مونده چرې څوک نهٔ کړی
څو په یار له سرو ماله وړ تیر نهٔ شی

اسمٰعیله ډیر دولت دَ عجز خُوندی کړه
چې له تا نه دَ بل چا څخه ډیر نهٔ شی



عشق له ما نه توان اخستے ناتوان کړځم
زۀ دَ عشق په توان مدام سرګردان ګرځم
دغه توان مې داسې نور توان له توان غواړي
زۀ به دۀ پسې ورک شوے له ځان ګرځم
دَ حیرت لوئ بیابان زما وطن دے
دَ حکمت په بند دننه پریشان ګرځم
دَ اُلفت آئین مې مخې ته نیولے
په دیدن پسې په اور دَ هجران ګرځم
دَ هجران اور تر آسمانه رسیدلے
دې رحمت کښې دَ رحمت په ارمان ګرځم
بې له هجره ژوند زحمت دے حقیقت کښې
ګلستان لره په دې خارستان ګرځم
اسمٰعیل به دَ وفا رسئ پرینږدم
همیشه به په دې یاد دَ جانان ګرځم

---

ګذار دِ کړمه مینې دَ فکرونو سمند رته
چرې به راؤنځم بې وصله تر بهرنه
ما ځۀ طوفانونه دَ بیلتون داسې دېراوزلي
ګورم به مدام په آئینه کښې هم ستا درته

مخ اړوے نۀ شم ستا د لوری کلک تړے یم
تړے به د ړځمه ډیر حیران یم دې سفر ته
تا کۀ زۀ تړے په زلفانو عنبرین نۀ وومه
ولې به کاتۀ کړۀ ماله وړایه ستا بشرته
زنه به تړې په ململ ماله ستا په مینه کښې
بیا به ئې ړاله پرانزی تخته باندِ اخترته
ستا دَ عشق په اوړی کښې مدام زۀ روژه داریم
غواړم دَ دیدن اوبۀ ولاړ یم دَ عشق نمرته
نۀ شم بیانولے دَ دې نمرتاؤ نا تمامه دے
کوړم اسمٰعیل پوهې دَ پیاړ کا خپل رهبرته





هم راته وائې دښمنان دی زما
ځان ترې ساتی کوړے باغیان دی لما
هم ئې په نوم خسنو ثواب راکوې
وائې نزدې نۀ شې فرقت ترې کوئ
هم راته وائې چې نفرت ترې کوئ
هم ئې نومونه تۀ په مونږ بنکلوې
ستا دې قانون ډیر حیران کړے یمه
زۀ دَ حیرت دې دریاب وړے یمه
کله دوستان په دښمنانو وهې

ته چې څهٔ کاندې ښهٔ ترتيب دے دغه
ستا له قديم علمه عجيب دے دغه
کهٔ پرِ هر خومره ربه مونږ کړوې
هسې نه خوښ دادُښمنان وی هم ستا
څکه چې تهٔ ئې ناتمامه وفا
رښتيا يؤ نوم راته قهار ياد وې
رحم غالب دے ستا په قهر ربه
قيصه شوه مخکښې راته بيا عجبه
ما اسمٰعيل به په دې تهٔ پوهوې



غبږ دَ زړهٔ مې دَ بُلبل غبږ سره سم دے
په ماليار پسې مې زړهٔ قلم قلم دے
صبح وشام کوُم ماليار پسې غبږونه
په زبان زما مدام صنم صنم دے
دَ زيبا نګار رخسار به مې هير نهٔ شي
راته ياد په هر ساعت کښې غنچه فم دے
دَ يار ياد کښې تراني هميشه وايم
جور په ما دَ يار دلاسه داما تم دے
په خوبرويه دلربا باندِ مئين يم
زړهٔ زما څکه کويا په ترنم دے

دَ دُنیا له نوروچار و مې زړهٔ تنور دے
رسیدے مې په یرخه محترم دے
بیلتانهٔ دَ محترم زړې زړې کړم
راته خور په هر قدم کښې دام دَ غم دے
دَ یار درزهٔ په دې دام کښې تل لټومه
دا لټون به چرې پرېښږدم قسم دے
دَ یار زلفې به زما څنګ نهٔ یادیږی
چې بندی مې زړهٔ دَ زلفو په هر خم دے
ژوند تیرومه دَ ربیار په ما تختې کښې
راته ښودے دې ربیار دَ یار حرم دے
په سور اور مې له مودو راسې تن سوزی
تماشبین څکه زما داسې عالم دے
خدائے خبر چې اسمعیل به ترڅو سوزم
ما دَ یاره دلبریا زما مرهم دے





زړهٔ مې څهٔ شهٔ له کوکله دا خو زړهٔ نهٔ دے سور اور دے
دَ زړهٔ کور مې اور نیولے په لوګو مې تالو تور دے
چې تهٔ څهٔ شوې کوم خوالا ړې ولې غږ نهٔ کوې ما ته
بنه بنه پوهه شومه وائې خستے ما ستا زور په زور دے
اوس له تا خبر شوم چې دا اور هم زما زړهٔ ئې ته
دا ولې داچا اورکا چې په اورکښې دا ستا کور دے

زړه به تاته زړه وایم که اور دا راته اُووایه
شابه زړکه حال اُووایه حال زما اوس نور دے

ولې چپ ئې مانه ته په خه مرور شوے ئې
مانه ستا په غم کښې جوړ په ژوند مړے دَکور دے

زړه که چپ یم ستا په شان هم تا داسې زړه چپ کړمه
هیڅ نه شم وئیلے تن مې ستا په لمبو سکور دے

بس دواړه ملګرې یو دې اور نه چې نه ئې اور کړې
تا سره یو شان اسمٰعیل ستا په غم غمخور دے

―――― ✻ ――――



په درویش وی تل خزان اؤ بهار دواړه
یادَوی مدام جانان اؤ ربیار دواړه

دَ یار در ورته ربیار له ورایه ښائی
وی مشغول داسې صحبت کښې دَیار دواړه

دَ درویش په زړه ارمان دَیار دیدن وی
روح اؤ تن ئې وی پراته په انکار دواړه

انتظار مدام دَیار کوی په اور کښې
یؤځائے دروی دا درویش انتظار دواړه

په دې اور کښې پرِ وړمې لګی دَ ګلو
وی سینه دَ ډه سور اور لاله زار دواړه

پس له مرګه نجات بیا مومی له اور ه
یو معنیٰ لری بیا دے او ګلزار دواړه

په فراق دَ خپل زیبا دلربا ټاټې
شي یوځائے په اسمٰعیل اؤ دلدار دواړه





اے خنجره ته زما دَ رنځ دوائې
چې زما په زړه کښې خخ ئې نو زمائې
زړه مې ستا په تماشه دے بل څۀ نۀ کړي
په زور زیر دې ته کاته کاندې زیبائې
نا تمام حُسن ئې ستا دے تسلیم کړے
عالیشان صفت دَ پاک غني مولائې
اے صفته ستا صفت پاک ذوالجلال کړي
کُل عالم لره ته بې مثله عصائې
اسمٰعیل به هم ته بیائې دَ یار در ته
ته رضا شه یار رضا دے ته ئې رضائې





ټول عمر په یار پسې ژړیږم دا مې کار دے
ځائے ئې دَ ژړا راله جوړ کړے سر دَ دار دے
دَ دار په سر ژړیږمه له یاره نۀ صبریږمه
په نمر دَ بیلتانۀ باندې په یار پسې سوزیږمه
دَ هجر په طوفان زما ګریوان ټول تار په تار دے

دار زما جانان ماله جوړ کړے په صحرا کښې دے
له ځان ځنځه ډوب کړے ما د اوښکو په دریا کښې دے
رابه ځي جانان زما هم دامې انتظار دے

ویرکوم شوکیر کوم تل ځان ته تقریر کوم
یادونو سودائي کړمه یاد د بې نظیر کوم
د عشق په توره شپه کښې لما ورک شام وسحار دے

نه ځان وینم نه بل وینم نه ګل اؤنه بلبل وینم
اور په زړګی بل وینم بس دغه لمبې تل وینم
ماله ئې په برخه همیشه لیکلے نار دے

بحر د غمو نو یم موج د ارمانونو یم
زه په خپل جانان پسې اوږد تال د فکرونو یم
مدام ما اسمٰعیل ځکه د غم کړے ګفتار دے

―――――― ※ ――――――

په ګفتار د مهر ویانو عمل اوکړه
له اجله وړومبے غم د اجل اوکړه
د کریم کرم مدام له کریم غواړه
د کرم په لاره چاق چاق وزلل اوکړه
چې کریم پرله هر چا ته ډیر مستین دے
د هغه په مخ د مینې غوښتل اوکړه
د توبې په ریګمال بدله ځانه لر کړه
د الفت په تیغ د بدو وجل اوکړه

په دا چاړه به شي سيال دَ مهرويانو
دَ ساقي له جامه خاځه څښل اوکړه

چې منکر وي څوک دَ مهر له شرابو
په هغهٔ باندِ يقين دَ پاګل اوکړه

دې پاګل سره تعلق مهٔ لره چرې
دې سفر کښې تږنه بيله منزل اوکړه

دَ منزل لار به غلطه کړې له تانه
بند وبست تل دَ غلـيم بغل اوکړه

دَ صنم په بيلتانهٔ برين صابر شه
په خپل وس پهلواني مکمّل اوکړه

دَ طاقت له شهنشاه نه مدد غواړه
په رسئ دَ شاه دې شاه ته ختل اوکړه

دا ښانهٔ به مهرويان تا ته در ته کړي
شابه زر دَ دوئ په لوړې تکل اوکړه

هميشه ئې په خدمت کښې حاضر اوسه
په ماليار پسې نارې دَ بُلبل اوکړه

سرهٔ ګلان به دَ جانان اوربل له درکړي
له دې دره ئې ننداره دَ اوربل اوکړه

عاقلانو لره دا بيان هم بس دے
اسمٰعيله اختتام دَ غزل اوکړه

همه عمر مې دلبر دَ زړهٔ مراد دے
په هر دم اؤ په قدم کښې زما یاد دے

په هر دم اؤ په قدم کوی وارونه
مقرّر دَ بیلتانهٔ په ما جلاد دے

دَ دلبر دَ پاره ما کړون قبول کهٔ
په رواج دَ محبت کښې دا جهاد دے

په څو وار شومه شهید په دې جهاد کښې
څنګ به پریږدم دا جهاد چې مې جانبداد دے

باغ دَ وَصل به آخر زما نصیب شی
په خپل یار زما پوره پوخ اعتماد دے

دَ بیلتون په تلوار زهٔ ذرې ذرې شوم
راکړے شوے هر ساعت دَ صبر داد دے

دَ جانان زلفې به څنګ له ما هیرېږی
لګیدے ئې په ما خوشبویه باد دے

اسمٰعیل دَ یار دَ مینې منت بار یم
کهٔ هر څو مې په بیلتون عمر برباد دے

—※—

جاوِدان عمر دَ پاره
زهٔ روان یم پدا لاره

## ګډا کومه ستا د مینې

را څرګند شه ګلغزاره

ډیر زخمي په خندا و خار شوم
چې مئین دِ په رخسار شوم
هیر په نهٔ ګرمه تا چرې

ګرم تپوس دِ له ربباره

د بیلتون په اور ورتیږم
تل په تا پسې ژړیږم
ځي له سترګو مې رودونه

ستا په لور دروي نګاره

اے زیبا ګلِ نسرینه
ده په زړهٔ کښې مې ستا مینه
د خوبانو شهنشاهٔ یې

ځي شغلې دِ له رخساره

زړهٔ زما په تا قلم دے
جوړ په ما ځکه ماتم دے
ستا دیدن نه ډیر لیوال یم

اے زما د زړهٔ قراره

نهٔ مې ګل زهٔ دِ بُلبل یم
د هجران په ژړ نده دل یم
په دُنیا کښې مې ژوند ګران شهٔ

ستا د مینې له تلواره

دَ فراق په بیابان کښې
نور توان نهٔ وینم ځان کښې
بې مجاله کړم یادونو
وا به نهٔ ورم له خُماره

دا شراب به مدام غواړم
کهٔ هر څو ورپسې ژاړم
بې نشې یم بې نشې یم
دا نارې وهم له داره

ساقي ستا په انتظار یم
ستا دَ جام تل امیدوار یم
اسمٰعیل له تا ته زار یم
اے دلبره په څواره

---

O

بنهٔ لنا خبر یمه شیدائي ته په ما
تهٔ کهٔ په ما نهٔ وے زهٔ به نهٔ وومه په تا
خپله چې شیدا شې په چا کړې شیدا په ځان هغه
زهٔ دَ دې دستوره خبر کړے یمه ستا
څوک چې تهٔ عاشق اؤ معشوق دواړه کړې اے عشقه
هغه له ورکوې دلته دَ عشق په اور سزا
تهٔ چې مقرر کړې دا سزا چا له هم دا غواړي
مدام در ته منت کاندي وائي نوره نوره را

اوره ورو ورو دے هم اورکوي دغه دِمینه دره
سُوراوره ته ئې سره کړې که وئ وُسپنه سیاه
ډیره که ئې سره کړې بیا هم وسپنه بللے شي
نه دِ ابتداء شته اوره نه دِ انتها

چمن کښې به هم داسې ئې اومونږه به بیا نه سیزې
حیران یمه ستاکاره ته اے زما کریم خدا
اوسوزوه ما دلته ته ډیر ډیر زما ره به
خومره چې څوک اوسوزوې همره ئې پرِشیدا
بنه لما خبرئ نه چې نه غواړمه بل څه زه
ما دَعشق امام پسې ده کړې اقتداء
زه اسمٰعیل تا خبر له عشقه کړمه عشقه
رادِ که الغام راله خدایا بیش بها





لوئې سُوراړ دے دَهجران زما په برخه
دے بعید بنکلے جانان زما په برخه
خبر نه یم چې دې دشت کښې به ترڅو یم
له ازله دے ارمان زما په برخه
دَ ارمان اغزو مې تن همه زخمي که
ځکه شه ځیرې ګریوان زما په برخه
دَ ریخي ګریوان مې خلق په نندارہ دي
رسید ے داسې شان زما په برخه

د الفت جادو له خوابه پسه ویښتې
ده یارې د ویښ سلطان زما په برخه
بې له یادو مې خبرې نهٔ زده نورې
دې سلطان کهٔ دا بیان زما په برخه
اسمٰعیل د یار بیان په زړهٔ کښې اوړم
شهٔ ترجوړ زما دیوان زما په برخه

---

د قسمت غشي مې ټول برابر دروومې
هر یو غشے مې د عشق په هنر دروومې
د عشق غشي چرې نهٔ لګي بې ځایه
د هجران په سمندر کښې جوړ دروومې
سمندر کښې چې څوک اوسي هغه ئې اولې
هم پړ لګي دا د دوئ له نظره دروومې
همه واړه په سینه غلبیل غلبیل دي
د یار در ته ئې فریاد له جګر دروومې
په وصال پسې څو واړه شهیدان شي
هر ساعت په لوړ د ښکلي دلبر دروومې
د زیبا په لاس مدام انعام ورکیږي
نور له هر څهٔ بې پروا قلندر دروومې
همه عمر ئې دا چاره په نصیب وي
اسمٰعیل هم دوئ سره په سفر دروومې

کهٔ هر څهٔ ته دِ نظر او کړو دقیق
یار به تا ته هله اُووائي رفیق
دَ دقیق نظر کولو در ته وائی
خیال کوه در څخه جوړ نهٔ شي زندیق
لار مونده شه کوړے وړک نهٔ شي ځنګل کښې
شه روان دَ قدسیانو په طریق
دَ دې لار نوم دے شفقت ایښودے شوے
تل پرِ دړومه چې له تا جوړ شي شفیق
لباسي یاری له یاره څخه مهٔ کړه
پرِ عاشق شه دَ پتنګ په شان صدیق
له بدکا رو همیشه دَ یاره دور شه
دَ نیکانو په صحبت به شي عتیق
اسمٰعیل په خوبرویانو فریفته یم
خدائے مکړه ما جُدا له دې فریق



اے حاسده زړهٔ دِ سخت لکه حدید دے
ځکه داسې له الفت څخه بعید دے
شا به زړۀ دَ الفت په اور نروب کړه
کهٔ ئې تاؤ تا لره هر څو مره شدید دے

دَ هجران په انگیټئ کښې ځان ستی کړه
حقیقت کښې دا اور تالره مفید دے

په دې اور چې کوم وګړے ځان سوخته که
هغه چالره مراد چاله مرید دے

بادشاهي او ګدائي سره کړې دواړه
خریدار دے دَ اُلفت خپله خرید دے

بصیرت لرې دَ زړهٔ سترګې ئې بینا دي
خپل مولیٰ ورله ورکړې عظیم دید دے

ننداره چې دَ باغستان دے له بیدیا نه
بصیرت دَ دهٔ په هر آن کښې جدید دے

اسمعیل ﷺ ننداره کړې دَ عشق صوم کښې
پس له مرګه پرِ مدام دَ پاره عید دے

---

چې نقاب پورته ریبار له نقاب پوش کهٔ
نور ئې هر څهٔ پرِ لما نه فراموش کهٔ

دَ زینت دریاب کښې پټ اوسم له خلقو
په راحت مې غم خرید له غم فروش کهٔ

په ارمان ئې ډیر عالم زړې زړې شهٔ
ماله داسې ساقي جانه شراب نوش کهٔ

میخواران ئې میخانه پسې تل ګرځي
دهٔ په ځان پسې عشّاق خانه بدوش کهٔ

داسې حُسن په کونین کښې دَ چا نشته
دَ دهٔ حُسن عاشقان ځکه مدهوش کهٔ

اسمٰعیل په دې نشه بیله کونک نهٔ یم
دې شرابو ډیر زما په شان خاموش کهٔ





ستا صفت په همه عمر تمام نهٔ کړم
ستا له دامه په ځان بند په بل دام نهٔ کړم

ستا په دام کښې په همه عمر زهٔ خوښ یم
خوښ به زهٔ بې ستا له عشقه ایّام نهٔ کړم

کهٔ هرڅو دَ بیلتانهٔ په اور کښې سوزم
هیر به چرې ساقي ستا ښکلے جام نهٔ کړم

په خپل ژوند به دِ جارنهٔ او ځم له یادو
زړهٔ به غلے یوُ ساعت دِله نام نهٔ کړم

ما دَ عشق روژه نیولې ستا دیدن ته
بې دیدنه به افطار دا صیام نهٔ کړم

دَ دُنیا له هره کاره شومه پاتې
ترک به چرې ستا دَمینې دا کام نهٔ کړم

تا په ځان پسې بُلبل کړمه مالیاره
آرام ځکه بې لتا صبح وشام نهٔ کړم

هُم پتنګ یم نهٔ مې شمع ئې روښانه
بې لمبو ځکه زه بل ځائے قیام نهٔ کړم

اسمٰعیل لکه بورا پسرلے غواړم
لا تراوسه ولې مړ دې نظام نه کړم

---

زړه په داسې دام کښې ژوند تیروم چې نوم ئې مړګ دے
یار دلاسه تناره کښې ځان سوزوم چې نوم ئې مړګ دے
زړه د یار دلاسه تناره ته ګذار شوے یم
مدام پکښې زړه هغه څه یادوم چې نوم ئې مړګ دے
بل څه کار مې نشته بس یؤ کار کوم د فکر زړه
ځان په داسې تال باندې زنګوم چې نوم ئې مړګ دے
په اوښکو مې لا ورو په ورو ډیرېږي داسې اوردے دا
خپله داره یا د اور جوړوم چې نوم ئې مړګ دے
مړګ به کله راشي چې ما خلاص کړي له دې مړګ څخه
ترکومه به زړه د انتظار کوم چې نوم ئې مړګ دے
پام به په دُنیا کښې اسمٰعیل بل څه ته او نه کړم
هر ساعت به زړه هم د النوم چې نوم ئې مړګ دے

---

په دُنیا کښې چې د مینې سودا نه کړي
همه عمر به رضا دلبر با نه کړي

بې هوده ژوند و ن دِ تیر کۀ په دُنیا کښې
په تا څۀ چې تر رِحلت کښې مُسکانۀ کړې

پس له مرګه په راحت څۀ رنګه مومې
چې ورو ورو بې وړ پسې دلته ژړا نۀ کړې

دَځان غم در څخه نشته بې غم کړې
ډیر حیران یمه چې دا واویلا نۀ کړې

دَماتم ځائے کښې په کړس کړس خندا کاندې
جفاکاره چې تر څو به وفا نۀ کړې

نۀ دِ ځان باندِ څۀ کار شته نۀ په بل چا
بد لیدے شې دَمردانو ادا نۀ کړې

اے نادانه بندګی لره پیدا ئې
بنده نۀ ئې چې بندګي دَخدا نۀ کړې

اسمٰعیل به په تا ولې غمژن نۀ یم
چې عمل مې په رښتونې وینا نۀ کړې



دَ دُنیا په دې بازار کښې وفا ګورم
دا سودا پکښې مونده شې هم دا ګورم

دا به ځان سره اوهم دَ وفا تُون ته
زۀ په خواب کښې غلامي دَصبا ګورم

همه عمر به دا خواب هم داسې وینم
دَ ویښ ځان دَپاره ننداره دا ګورم

اسمٰعیل به چپ د یار له صفت نهٔ شم
تیر په ذړهٔ مې د اشعارو ستر دریاب کړه



خلاص په چرې زهٔ د عشق له زنځیرنهٔ شم
ځځ اړوے د خپل یار له تصویرنهٔ شم
په دې ینډ کښې زهٔ تر عمره ینډیوان یم
یار موندہ به شمه څنګ چې زهیرنهٔ شم
دوئیم نوم د دې بند کښې ایښودے شوے
بې له ګنجه به زهٔ چرې امیر نهٔ شم
فقیری اؤ امیری لازم ملزوم دی
زهٔ به منع په کړیوان له بحیر نهٔ شم
ملغلرې مې له اوښکو نه جوړېږی
پرېښودے د ملغلرو خمبیر نهٔ شم
ماکهٔ ځو د بېلتانهٔ په غشو اولی
زهٔ به ستون د خپل اشنا له دې تیر نهٔ شم
اسمٰعیل په فقیرئ کښې امیری کړم
پوره کوے شکریه د قدیر نهٔ شم

اے زۀ څۀ شوم کوم خوالاړ مه نا اشنا یم
نۀ پوهیږمه چې دا یمه کۀ دا یم
دَ لیاقت سماړ چې ما اولید بیانۀ ووم
اوس هغه یم چې کوم وومه کۀ سماء یم

سماء نۀ یم چې سماء یم سماء څه شۀ
داسې ښکارے جوړ سماء کښې زۀ فنا یم
اوس لږ پوهه شومه نور به هم پوهیږم
هم فنا یمه په دۀ کښې هم جُدا یم

لکه اوسپنه چې اور کښې سره لیدے شي
داسې زۀ هم دَ وفا اور کښې وفا یم
له زیبا اوره به چرې بیرون نۀ شم
داخو دۀ کښې یمه ځکه زۀ زیبا یم

اسمٰعیل چې څۀ غوښتۀ هغه ئې نصیب شوۀ
خدائے دِ ورکاندی دا ډیر لاس په دُعا یم

---

چې کوم زړۀ دَ مینې علم ته مائل شي
ټکانه ئې دَ هجران بحر لکاهل شي
دې مکتب کښې تل سبق دَ مینې وائي
تیر په دۀ ډیر دَ غمونو مراحل شي

دَ ساحل په لټون ګرځي بې مجالـه
رسیده په مرګ ساحل ته شي واصل شي

دانائي له دې مکتبه ګړي حاصلـه
دَ بیلتون په لختو اوګي عاقل شي

همیشه یې په زړه کاتب کتابت کاندې
په زبان یې بیا ښکاره دا دلائل شي

له چشمانو یې باران دَ رحمت ووري
رحمتونه پرِ له پاک ربه نازل شي

مُرده زړه یې شي ژوندے په رحمتونو
سلطنت ګړي دا سلطان چې زنده دل شي

سلطاني ورته هله شي ورپه غاړه
چې دَ عدل په سبق بانډ عادل شي

اسمٰعیل دَ دې شاهانو یارې غواړي
دا مراد به یې په دُعا دَ دوئ حاصل شي





دَ راحت په لور روان یم دَ زحمت په لوئ دریاب کښې
دَ اُلفت بیړۍ کښې ناست یم اشنا ستا یمه رباب کښې

له ډیر غمه مې له زړه نه دَ غمونو رباب جوړ شه
مدام لولی دا یادونه دَ یادونو په کتاب کښې

یم تړلے یې بند په بند په تناوونو دَ زلفانو
پریښیے نه دے ذره دَ ځ دلربا په هر تناب کښې

دَ صراط په پُل به ښَنکه ګُذر کاندي
مُنور چې په دُنيا کښې له نور نهٔ شي
اسمٰعيله دَ نيکانو په مَنځ کې دروم
بې له دې منځه به خوښ دَ غفور نهٔ شي





ښَنکه اوچ له پرنالو ښځه ګريوان کړم
چې مدام دَ غم ور يخونه باران کړم
دَ اُلفت دَ حکومت داسې منشور دے
په ښېرا يه زړهٔ خوشحاله خپل جانان کړم
په ګريوان مې دِ وچوبے خدائے نهٔ کړه
چې له کومه پورې ژوند پدې جهان کړم
خپلې اوښکې به يؤ وارې ماز رغون کړې
هميشه به سيل دَ يار دَ ګلستان کړم
اسمٰعيل به خپله بيا سدا بهار يم
کهٔ يؤ وار خدائے په آمان له دې خزان کړم





ښځهٔ اوکړم چې اور مې په کوکل کښې لګيدے دے
زړهٔ مې په دې اور کښې مدام نور اُورېسې تلے دے

وهي نارې نور اور ته وائي راشه ماستی کړه نور
ځان ئې له مودو راسې په اور باندِ بائېللے دے

هم ترفِر یادونه کړي هم ئې رابلي ځان ته
اور ترِ هم زاریږي زما زړۀ ئې کور ګڼلے دے

هر ساعت حیران ګوري دې اور ته بل څۀ نۀ ګوري
داسې کار زما د زړۀ په برخه رسیدلے دے

زړۀ ته مدام وایمه په دې کار ماهم پوهه کړه
وائي په جواب کښې داچا سر ته رسولے دے

وائي چې ژوندے ئې توهغې ئې درته نۀ ښایم
بیا خو هسې هم ماځان تاله کړولے دے

ما اسمٰعیل مرګه پورې ځان له زړۀ نه صبرکۀ
پوهه یم قابض پرِ دیو زیبا ښکلے ښاغلے دے

---



تماشبین زما د وِیر ارض و سماء دی
خوشحالئ لما همه وارۀ اغوا دی

کړمه وِیر په خوشحالو یسې چې څۀ شوې
اغوا کړې دلربا لما پخوا دی

بې له غمه هیڅ خبر له بل څۀ نۀ یم
د خندا وختونه ټول لما جُدا دی

د خندا ځائے دُنیا نۀ دے څنګ ئې اوکړم
هوښیار ان تل په دُنیا کښې په ژړا دی

ما رهبر مدام دَ غم په لاره بیائی
وائی داتله دِ په لوړ دَ خپل اشنا دی

په وروغ ځائے طبیب مرهم چالره نږدي
اندامونه مي زخمی ډیر په وفا دی

همه عمر به شِفا زما نصیب شی
دَ ساقی دَ جام شراب ماله شِفا دی

شرابی یم بې شرابو نهٔ رغیږم
دا یوُ وار په ما نوش کړی دلربا دی

اسمٰعیل به له شرابو صبر نهٔ شم
ما پریښودي پسي چارې دَ دُنیا دی



نهٔ دِ یاره خوږ کلام باندې مړیږم
نهٔ داستاله سپین بشره زهٔ صبریږم

نهٔ دِ اوړ دَ میني پریښودمه خواب ته
مدام سر په زنګانهٔ یمه زنګیږم

تا دَ زلفو په وږمو یم عادت کړے
همیشه په دې وږمو پسې ګرځیږم

ستا دَ سترګو په جادو وړک یم له ځانه
وینم سترګې په هر لوړ نهٔ موندے کیږم

دې حیرت لما ژړا ده هیره کړې
وار خطا وار خطا ګورمه بوږنیږم

ستا دَ حُسن ناتمامه ګلستان کښې
ستا دَ در تلاش کښې شپه او ورځ ګرځیږم
ستا دَ عشق په باب کښې ګنګ شوم اوس به څهٔ کړم
هغه نهٔ شمه ویلے کهٔ ویریږم
اسمٰعیل به دَ عشق باب همیشه وایم
له دې بابه چرې زهٔ نهٔ اوړ کاریږم



زهٔ په داسې لاثانی رخسار شیدا یم
چې مدام ئې زهٔ په حُسن کښې فنا یم
سُنبل زلفې ئې خوشبو دَ کشمالو کړي
په عالم کښې ځکه هر ساعت تنها یم
هیڅ علاج دَ تنها ځان کولے نهٔ شم
همیشه په انتظار دَ دلربا یم
یم زخمی دَ نرګسی سترګو په غشو
زیبا سترګې ئې هر چا ته ځکه ستایم
چې دَ یار دَ رنګ تپوس لما څوګ اوکړي
په مثال کښې ئې ګلاب او یاسمین بنایم
همه حُسن ئې لا مالیدلے نهٔ دے
حال ئې څنګه دَ همه حُسن اُووایم
په دُنیا ئې څوک ټول حُسن لیدلے نشي
ارمانی ځکه زهٔ هر وخت دَ عقبیٰ یم

کړم په ځل پسې استوګنه په اغزو کښې
په لبیک آواز مُدام یار ته ځو یایم
په ځنګلو کښې آواز ونه کړم یار ته
اسمٰعیل د هر آواز سره فدا یم



قول او فعل چې دِ همه د اُلفت نه شي
همه عمر به دِ درست ذهانت نه شي
په دې قول او فعل به چرې عادي نه شې
چې شیطان سره دِ خو عداوت نه شي
دُښمنۍ ته د شیطان هر دم تیار شه
چې دِ نفس په بد وچارو عادت نه شي
ځان د مینې په مکتب کښې هنرمند کړه
بیا منلے په تا خپل مهارت نه شي
د بورا سکونت زده په ګلستان کښې
کو نکټ چرې کوے ذا سکونت نه شي
شرائط د یار دیدن له ښودے شوی
زده کول د دې بغیر له صحبت نه شي
له نیکانو څخه دا شرائط زده کړه
بې له دوئ نه به دِ زده شرافت نه شي
چې تر څو شریف بنده د الله نه ئې
تر هغې به دِ نصیب معرفت نه شي

دَ بلبل په شان ماليار چرې هير نۀ کړې
په دروغه به مونده حقيقت نۀ شې

چې دَ يار طلب کښې نۀ ګرځې نو څۀ کړې
بې طلبه څوک خاوند دَ عزّت نۀ شې

پيدا کړے دې طلب لره خپل رب ئې
بې له کم بخته به خبر له قربت نۀ شې

دې کړان کار لره همت ځان کښې پيدا کړه
دا کوے چرې هم بې همت نۀ شې

يار خوهر چاته وئيلى دَ دې کار دى
غافلان کوے دا سلطنت نۀ شې

اسمٰعيل مدام طلب دَ مطلوب کومه
هير به چرې لما دا عبادت نۀ شې

---



چې دَ مينې په شرابو دِ خمار کړم
په قطار دَ غمزو دُوکښې دِ شمار کړم

تا په جام پسې بې مثله تنده راکړه
تير له حلقه ستا دَ هجر لوئې خمار کړم

ساقى تاوې مدام ژړا نر به راشم
په ديدن پسې دِ توک توک انتظار کړم

ما په تا پسې ګريوان په اوښکو ورو ستۀ کۀ
چې نۀ نۀ ئې زۀ به دغسې ګردار کړم

بې لتا مې د راحت استوګنه تښتنه

ستا په مینه خدائے داسې وفادار کړم

وروغ یه نهٔ شمه په بل څهٔ له دې رنځه

زهٔ په هغه څهٔ رغېږم چې ئې بیمار کړم

اسمٰعیل به په دې رنځ ترڅو کړېږم

بې جماله ستا د مینې کاروبار کړم



چې د هجر د دریاب په ننداره شوم

د یادونو په اره، اره اره شوم

ستا جمال یؤ لوئ کمال دے حُسن داره

کهٔ تا نهٔ وینمه هم زهٔ درسره شوم

خپلو اوښکو زهٔ په تا پسې قیانوس کړم

زهٔ د غم د طوفانونو اجاره شوم

ستا دیدن پسې وهمه چپاوونه

ستا په مینه د عالمونظاره شوم

له ډېر غمه اسمٰعیل په ځان کښې ډوب یم

خپله ځان لره د صبر سهاره شوم

چې ترخو د سپین بشر په ارمان نهٔ شي
هیڅ خبر به له ګلاب وریحان نهٔ شي

جفا پرېږده د وفا په تیغ حلال شه
بهار کوم دے چې خبر له خزان نهٔ شي

د فراق اوښکې چرګې یار لره بیایه
بې له اوښکو به زرغون په جهان نهٔ شي

چې د غم دریاب دِجوړ نهٔ شي له زړهٔ نهٔ
د یار لوري ته به چرې روان نهٔ شي

د فرقت په توره ځان کړه پرهر چې
ملاقې به هسې تهٔ د جانان نهٔ شي

د فکرونو په طوفان کښې ځان مرده کړه
بې له فکره به مالیار د بوستان نهٔ شي

د حیوان پشان ژوند تیر نهٔ کړې دُنیا کښې
بې له عشقه به تول عمر انسان نهٔ شي

په اُلفت به تهٔ انسان شې له ځان ورکه
داسې ورک نور له خپل ځانه یوان نهٔ شي

اسمٰعیل والې له عشق کهٔ ناخبرې
چرې پوهه به زما په دیوان نهٔ شي

زړهٔ دَ اوښکو دا سیحونؔ[1] جیحونؔ[2] دلبر کړم
چې په خُلهٔ کښې دَ بیلتون دړون دلبر کړم

دَ حیرت په بیابان کښې مدام ښاړم
زړهٔ دَ مینې په مضمون مجنون دلبر کړم

بې دِلبره هر ساعت په ما قیامت وي
دې صحرا ته په قانون بیرون دلبر کړم

خپلو اوښکو کړمه غاړې په صحرا کښې
په دا چاره دَ افسونؔ[3] مخزونؔ[4] دلبر کړم

اسمٰعیل دَ دلبر چارې ته حیران یم
غمزه دَ سر په زنګون زرغون دلبر کړم



دَ حضرت په مخ لتا نه هم تا غواړم
دا چې وائې هم دا غواړه هم دا غواړم

ته په ما باندې داغوښته کړې پخپله
ته وفائې لتا څکه وفا غواړم

بل مې هیڅ نهٔ دی پکار ته مې پکار ئې
ډیره ښکلیه ته ښکلا ئې ښکلا غواړم

---

[1] [2] سیحون جیحون: دَ دریابونو نومونه [3] افسون: جادو [4] مخزون: غمزده

هيڅ کمے دِ دَ بنکلا په ور کړه نهٔ شي
زهٔ مدام له تا نه دا په ژړا غواړم

چې دِ نهٔ غواړي احمق دے ستا په قول
دې تيرو لره دَ علم رڼا غواړم

کرم اوکړه تهٔ په ما زما نصيب شه
اے طبيبه تهٔ دوا ئې دوا غواړم

ستا رضا ما اسمٰعيل لره علاج دے
زهٔ خپل رنځ لره مدام ستا رضا غواړم

---

له مشرقه تر مغربه له جنوبه تر شماله
دَ دلبر لټون کښې ګرځم مدام له ډيره خياله

بنکته پورته بنهٔ تحقيق کړم دَ جانان په پلوشو کښې
چې به کله مخ ښکاره کړي دلربا ما ته له شاله

زهٔ دَ فکر سمندر کښې پسې شپه او ورځ ډوب ګرځم
په دا چاره دَ فکرونو شومه ډير زهٔ با کماله

دَ حيرت په طوفانونو مدام ډير زيلے کيږم
مدد غواړمه هر آن کښې زهٔ له خپله ذوالجلاله

بې له مينې په دُنيا کښې ما ته بل څهٔ ليدے نهٔ شي
زهٔ پائيږم په دا مينه يمه مينې ته ليواله

رُوح اؤتن شوګ زما مينه زهٔ دَ مينې سمندر شوم
بيا هم نوره مينه غواړم وايم راکړه نوره ماله

اسمٰعیله مینه غواړه عبث وخت چرې تیرنهٔ کړې
چرې کوزنهٔ شې دَمینې دَ فکرونو له دې تاله





ولې داسې مسرور له دلبر کړې
په دُنیا کښې به ترخوب هنر کړې
په مکتب دَ عاشقۍ کښې هنر زده کړه
باخبر شه له کیمیا ناخبر کړې
دَ هجران چاره په سر سترګو قبول کړه
په دیدن پسې به غُس په خنجر کړې
دَ یادونو له صحرا به بل خوا نهٔ ځې
همیشه به دَ یادونو په نمر کړې
چې ریبار دې له خبر دَ سرور راوړې
بنهٔ به چاق بیا په تلاش دَ سدبر کړې
دَ دیدن سود به په تا دلربا اوکړې
چې دَ فکر په دریاب کښې جور کړې
چې دِ پورته شې آهونه له کوکله
بیا به هله یارمونده قلندر کړې
اسمٰعیله دَ دلدار رُخسار هیر نهٔ کړې
په طلب کښې به ئې مدام در په در کړې



لکه پاڼه د خزان یم رژېدلی
د یار دره ته لا رېبار نه یم بللی

د خزان یاد مې زړې خوږې ورې کړې
په آفتاب ئې د الفت اوسوزولې

په هر ځای کښې مې اېرې د تن خورې دی
له ازله مې دا برخه رسېدلې

شنه به نه شم په بل آب بې له دیدنه
د وفا ادا رېبار ما ته خودلې

پسرلے به لتاچرې بېرته نه ځي
اسمٰعیله که غتمه ئې اوسپړدلې

---

ستا په مینه مې خپل ځان زره زره که
داهنر مې د فرقت سیمه کښې زده که

د حرمت د سیمې چاره زده کوم دلته
په یادونو مې یادونه اجاره که

په دنیا کښې له دنیا نه بېرون اوسم
ستا د پاره مې ځان داسې کناره که

دې هنرته مې شوق ورو په ورو ډېرېږی
په خواره مې پرې ځان خپل غرغره که

فوارې به مې د سترګو اوچې نۀ شي
تا مې زړه مدام د یار یار په ناره کۀ

د بوستان ارمان به څنګ نۀ کوم بیدیا کښې
چې له ورایه دِ ګلان راته ښکاره کۀ

اسمٰعیل بې ستا له مینې بل څۀ نۀ کړم
نور مې هر څۀ ستا له رویه شکوانه کۀ





په خکالو چې دِ شوم پوهه له خپل تنه د ربرخیر شوم
چې دِ مخ راته برخیر کۀ له حیرته تیروبیر شوم

خپلواکي لمانه لاړه واک مې ستا د واک غلام شۀ
ستا د واک په غلامۍ کښې زۀ له خپله ځانه هیر شوم

زۀ په ځان کښې تا ته ګورم نور له هر څۀ شومه پاتې
ستا دیدن مې هله اوکۀ چې د سرو مالۀ ستیر شوم

د رښتونو خلقو خویش یم ستا په اِذن رښتیا وایم
دروغ نۀ شمه ویلې دروغ جنو له کنډیر شوم

دا جهاد کوم ظالم سره مدام مشت و ګریوان یم
ډیر زخمي ستا محبت کښې زۀ پدې تیرۀ شمشیر شوم

دا جهاد به زۀ کومه چې ترڅو پورې ژوندے یم
دا په ما د رب احسان دے مجاهد وکښې چې شهیر شوم

اسمٰعیل به په څو واره له تا ځان داسې فدا کړم
پرېښودے نۀ شم دا چاره ستا د زلفو په دام ګیر شوم

اوّل قلم په خپله ژبه چې نوم ستا ښکل کړ
بيا مې په دواړو شونډو نوم ستا په ژړا ښکل کړ
قابلې نۀ وې زما شونډې زړۀ مې صبر نۀ کړ
لکه چمن کښې چې بوړا ګلِ لالا ښکل کړ
بوړا خو وائي چې مدام دَ ګل په څنګ کښې وے زۀ
زۀ بې نوا پرې تيريدم ما په هوا ښکل کړ
ستاله زيبا مخه به څنګه زما زړۀ صبر شي
چې تل دَ يادو په آئين کښې زړۀ زما ښکل کړ
ستا په اُلفت کښې دَ خزان صحرا نصيب شوه زما
ما دِ په مينه تول ريګونه دَ صحرا ښکل کړ
ډير بُلبلان شوۀ زما مينې ته حيران ما ليا ره
ستا نور زلفان چې مې په ناز و په ادا ښکل کړ
له پتنګانو مې په شمعه سوځنګې هيره کړه
ما چې ما بين کښې دَ لمبې داړ فنا ښکل کړ
زۀ اسمٰعيل ستا دَ رضا په لمبو سوزم مدام
په اوسيدو دَ بيلتانۀ کښې مې بيا بيا ښکل کړ

---

په دُنيا کښې دَ عشق کار همه ادب دے
قبول کړے مې په خوښه دا مذهب دے

لکه برق مې دا مذهب په تن کښې کړی
جوړ له زړه مې دَ مذهب حسین مکتب دے
دا مکتب مې هم کتاب اؤ هم طالب دے
فائز ځکه دَ حیرت په دې منصب دے
چې خدائے په ما دَ مینې دا سودا وکړه
دغه سود په ما نور سود لره سبب دے
زړه دَ یادو یوُ ستر بحرِ منجمد شوم
دا احسان کړے په ما بانډِ خپل رب دے
په رضا ئې زما رضا ده چې څهٔ کاندی
په رضا پسې ئې کړے ما طلب دے
دا طلب ما اسمٰعیل ته دځ بښو دے
ورک مې خواب ځکه لما نه روز و شب دے





په څو وار چې مې خپل سر تالره دړ کړهٔ
نور غمونه دِ راپښا زما په سر کړهٔ
ستا دَ یوُ وار په لید و مې هر څهٔ هیر شوهٔ
خپل یادونه دِ تل ماله مقرر کړهٔ
یوُ ساعت دِ هیر وے ځکه سنهٔ شم
چې فنا لما نه هر څهٔ ستا بشر کړهٔ
زړه چې ستا په تماشه شومه دلبره
تا زما په تماشه دا بحر و بر کړهٔ

ستا دَحُسن په درياب کښې غرقاب اوسم
هيرلمانـه ستا بنکلا شمس وقمر کـۀ

دَ ليمو غشو دِ زړۀ زما زخمي کـۀ
دَ ديدن مرهم ته تا پدې نـهر کـۀ

خپل ديدن ته دِ ليوال کړمه دلـداره
دَ ديدن په لاړې تا زمـا کـذر کـۀ

شپه اوورځ دِ نمر دَ مينې په ما لګی
تول هډوونه ئې زما ځکه کسکر کـۀ

اسمٰعيل ستا دَ لعلونو خـزانـه شـوه
دالعلونـه دَ ريبار په لاس تـاور کـۀ

---

○

مه ګوځه نور ورک دَ ګمراهۍ په خاريه کښې
استوګـنه کړه اختيار مدام په فرقه ناجيه کښې

حيران يمه تراوسه ته خير له ناجئ نه شوې
شبلي دِ شراب نهٔ دی دَ يار په ميکده کښې

واړه انبياء اؤ اولياء په ناجيـه کښې دی
اولوله دا باب دَ تصوف په مدرسه کښې

تولو اولياؤ ناجيه ثابتـه کړې ده
ستا ولي ولی ځنه خلاف دے عقيده کښې

سخت امتحان راغے رب دِ خير کړی مسلمان ته
خدائے دِ امان راکړی چې شمار نهٔ شو جبريه کښې

څهٔ چې اولیاء وائ ربښتیا وائ صادقین دي
ربه تل لري موتبرہ دَ دوئ په باغیچه کښې
دا فرقه لري څلور مذهبه واړه حق دي
زهٔ حنفي مذهب لرم یمه کلک یمه دعوه کښې
څلور دَ طریقت سلسلې هم په ناجیه کښې دي
ما اسمٰعیل نوش کهٔ ډیر شراب په چشتیه کښې



دَ مالک په لاره دروه نورې لارې دَ خطر دي
له مالکه مدد غواړه ډیر غمونه دِ په سر دي
رهبران دُنیا کښې ډیر دي یو رهبر پسې روان شه
لتا وړاندې قدمونه په دا لار ایښې رهبر دي
رهبران به تر قیامته پورې وي په دې دُنیا کښې
هغه خلق دي ډیر کم بخته چې له دوئ څخه منکر دي
دَهجران سپرې اوخره دَ دیدن عظیم نعمت له
په سیړ و خیر شوي مهر ویان له بحر وبر دي
دَ ارشاد تعمیل ئې اوکړه چې له دوئ سره بیا ښادشې
پوهه خلق مدام له دوئ سره دُنیا کښې همسفر دي
قافله درته تیریږي تهٔ په غم و سترګو اوده ئې
دا منزل نهٔ دے روان شه دلته واړه مسافر دي
له دلبر سره به څنګ کښې هغه خلق ځائے موندہ وي
له دې ځایه چې دیدن ته اوکي تګ دَ دلبر دي

هر قدم په حساب اخلي په تکل دَ چل جانان کښې
فریادونه يې عبادت دے زخمي شوې په خنجر دې

کوم طبیب له چې روان دی زخمي کړي دې طبیب دی
تول زخمونه يې تور کړي په دالاړ دَ بیلتون نر دی

اے طبیبه اسمٰعیل هم ستا دَ وصل مرهم غواړي
دا نغري ورله لیکلي ذوالجلال په مقدر دی

---



اے زړکیه هغه ښکلے نګار څهٔ شهٔ
کوم خوا لاړ هغه دَ ګلو مالیار څهٔ شهٔ

دا چې ته يې توتې توتې کړې او بیا نهٔ وو
زړه که حال وایه صاحب دَ تلوار څهٔ شهٔ

توري زلفې چې يې شانه واړه ولې
دَ آفتاب په څیر ځلنده رخسار څهٔ شهٔ

په مُسکا چې يې کاڼهٔ کړهٔ ستا په لوري
پسې درومه ستا دَ یاره قرار څهٔ شهٔ

چې پتنګ شوې چراغ لاړ بیله شوې پاتې
خدائے زده چې دا چراغ جلوه دار څهٔ شهٔ

دَ بیلتون په لویه شپه کښې دِ ژړوندون شهٔ
دَ سکون هغه بې مثله راز دار څهٔ شهٔ

لږ ساعت چې دې دیدان خدائے نصیب کهٔ
بیا رنګین تروتازه لاله زار څهٔ شهٔ

کوم ساقي چې پر شراب دَ مهر نوش کړه
اسمٰعیل لره بیا هغه خمار څهٔ شهٔ





ډیر په تا باندې خفه یم برادره
لږ مې خواته رانزدې شه دَ زړهٔ سره
دَ کوڅک په لور روان ئې زر راستون شه
دَ ګلشن لار دغه نهٔ ده مسافره
کوم سفر له چې آقا ئې رالیږي
لا تر اوسه ترې نه کړې نا خبره
دَ آقا فرمان دِ ولې دے هیر کړے
زر بیرون شه دَ غفلت له سمندره
دَ جفا په قینچې ځان نور پرکټ نهٔ کړې
دَ وفا په پړو والوځه په سره
نر سپور مې دِ په خدمت کښې ګرځینده دی
له چقړو نه ځان پاک کړه منوره
اسمٰعیل په ستا له غمه بې غم نهٔ شم
دا فرمان مې اورېدلے له رهبره



دَ سبحان نظام دَ عشق په دام بندي کړم
بیابان کښې يې په تابان آفتاب ستي کړم
دَ جمال په رسوئ کلک يمه ترړے
دې سزا ياندې يې نور هم زۀ پتي کړم
دَ يادونو په مکتب کښې سبق وايم
دَ يار مينې دَ يادونو سبق کړم
دَ منصور له داره دار زما ډېر کران دے
په خوواره بيلتانۀ دَ يار فاني کړم
سلطنت دَ محبت په وطن کاندي
زۀ له داسې شهنشاه سره ياري کړم
دَ بناګست په سمندر يم لاهو شوے
ډېر دَ حُسن دې شرابو خماري کړم
دې نشه کښې نور ليواله شوم نشې ته
ساقي لاړ لهاچې زۀ يې شرابي کړم
دَ حسين ساقي فرقت مې شۀ په برخه
شپه اوُ ورځ يې زۀ دَ لار پهره داري کړم
اسمٰعيل دَ انتظار په اور سوزيږم
ځکه داسې دَ اور ډکه شاعري کړم

د دنیا په دې بازار کښې یم حیران دعشق روزګار ته
همه عمر مې داکار دے چې یس ګورم د یار لار ته

مدام داپهره دارې کړم بل خواګځ اړوے نه شم
پټ تېښک کړے یمه زړه د انتظار داسې یلغار ته

دایلغار به تردید نه په ما دغسې جارې وي
زړه به چرې اوزګار نه شم له دې کار څخه بل کار ته

له دې کاره څوک بل کار ته یوساعت سمېدے نه شي
دې انکار کښې بې مجاله مدام ګوري دې انکار ته

د شیدا دا زندګي ده نور عالم ئې تماشبین وي
همیشه لکه بلبل وهي نارې ښکلي ماليار ته

د خپل مرګ په ارمان ګرځي بل ارمان ئې په زړه نه وي
پس له مرګه په بیا ګوري همیشه د یار رخسار ته

اسمٰعیله رب دِ مل شه دا ژوندون همه خزان دے
دې خزان کښې تل اوسیږه هغه دیر زیبا بهار ته



خواهشات چې ئې له نفسه رخصت نه شي
سیلانے به د زیبا مملکت نه شي

د حسین تاجدار لیده چې ئې په زړه نه وي
دے به چرې هم خاوند د زینت نه شي

له بد بخته وی موجود قدیر هیر شوے
بې له یادو به په بل څهٔ نیک بخت نهٔ شی

له جماله چې زړهٔ توری وی حاسد دے
په یؤ زړهٔ کښې ځائے حسد اؤ اُلفت نهٔ شی

چې دُنیائې دَ قارون غوندې وی خوښه
خبردار به دَ وفا له دولت نهٔ شی

چې بیدار څوک دَ غفلت له خوابه نهٔ وی
هیڅ په پوهه دَ خپل ژوند په لذّت نهٔ شی

اسمٰعیله چې له هجره ډېره ګاندی
په نصیب به ئې دَ دیدن مسرّت نهٔ شی

—※—



چې سینه مې په بیلتون اره اره شوه
له چشمانو نه مې جوړه فواره شوه

په تودو اوښکو ګریوان خپل چرقاوومه
دَ یار مینه کښې زما دا اجاره شوه

زړهٔ دَ عشق په یوه اړوم ژړېږم
تر آسمان پورته زما هره ناره شوه

په دفتر کښې مې تحقیق دَ ستارو کیږی
له هغه ځائے نه مې دَ عشق چاره ښکاره شوه

له دفتره آفرین آواز بلند شهٔ
دا آواز مې بیانارو له سهاره شوه

هر ساعت دَ آفرین آواز راکاندی
هر ساعت مې پرِ زاره زره زره شوه
اسمعیل له دې غمونو اوزګار نهٔ یم
دَ غم چاره مې عالم ته ننداره شوه





نهٔ دَ یار په تورو زلفو معطّر شوم
نهٔ له یاره بیلتانهٔ کښې مرور شوم
دَ راحت استوګنه کوم ده چې یې اوکړم
زهٔ مدام له راحتونو نه بهر شوم
په صحرا کښې دَ مطلوب په لوری درومم
دَ صحرا خنک ته دَ اوښکو سمندر شوم
زهٔ لغمت دَ دیدن غوارم له خدایه
دَ دُنیا له هر نعمته ناخبر شوم
دَ دنیا په تاج وتخت باندِ به څهٔ کړم
چې روپیے په اور کښې زر بیا کیمیاګر شوم
دَ بقا وطن کښې یار زما اوسیږی
دَ وفا په لار کښې پیښ زهٔ په خنجر شوم
دَ دلدار رُخسار مې لویه وظیفه ده
په دې اور کښې زهٔ اوسیږمه کسکر شوم
دَ تنها ځان په علاج هیڅ نهٔ پوهیږم
په صنم صنم په ځان کُف کولو سر شوم

بې اختيارہ زۀ په خُلۀ صنم صنم کړم
په دې دَم بانډ زۀ نوړهم ډير پړهر شوم
اسمٰعيل به ترديد نه ځان دمومه
لوئ دم کړے زۀ دَ ځان شومه خبر شوم

---

په زړګی پوړې مې سليخ دَ صنم غم دے
ارمان مې زړګے ځکه دَ مرهم دے
زۀ دَ عشق په هاړ کښې تګے مدام کړخم
دا صيام راله خوښ کړے محترم دے
دَ تن وينې مې افطار پسې اوڅيړى
زما خوا ته لما دوړ دَ يار حرم دے
دَ حرم لوړ ته په تړ کښې بيړه کاندم
هر قدم مې له فرياده سره سم دے
عندليب غوندې مدام فرياد کړومه
صبريدے نۀ شم ماليار مې غنچه فم دے
په څوار دَ بيلتانۀ په تيغ حلال شوم
کريم کړے په ما داسې لوئ کرم دے
اسمٰعيله په رمضان پسې اختروى
دا انعام کړے په تا بانډ اعظم دے

---

پہ زړګی مې قابض شوے محبّت دے
رسیدے مې پہ سر ہرخہ سلطنت دے

تاج وتخت مې لہ حیرت څخہ جوړ شوی
پہ محل کښې مې دَ زړهٔ داسې دولت دے

تاج وتخت مې دَ الفت ما تختي کاندی
پہ سر سترګو مې منلے دا طاقت دے

دَ اُلفت منشور غفور خپلہ جوړ کړے
پہ کونین هم دالہ ټولو لوئې نعمت دے

چې ما تخت شی دَ منشور خپلہ منشور شی
دَ عزّت خاوند چې څنګ خپلہ عزّت دے

پہ هرآن کښې ئې پہ زړهٔ کتابت کاندی
ورکو نکے دا کاتب دَ ذهانت دے

چې منعِم مې دا انعام چالره ور کړی
فرمائیلے منعِم دهٔ څخہ صحبت دے

اسمٰعیل دَ جاوداں عمر دَ پاره
پہ دُنیا کښې خوئې زده کړے دَ جنّت دے



ورک یمہ لہ ځانہ دَ حیرت پہ بیابان کښې
ځان رانہ ورک شوے لہ مودو راسې پہ ځان کښې

اسمٰعیل به ځان ته چرې دانا نهٔ وائی عاشق دے
خنک به وائی چې دانا یم ورک په مینه ئې ځان له ځان کهٔ





هنرمند شوم مدرسه کښې دَ هُنر زړهٔ
جوړ وُمه ترمو اوښکو نهٔ لښکو زړهٔ

دا هُنر به زده کوُم چې څو ژوندے یم
کهٔ هر څو شمه په دې توره پرهر زړهٔ

په دُنیا کښې له بیلتونه لوئ غم نشته
دَ دلبر په بیلتانهٔ یم قلندر زړهٔ

غمزده مې بل دَ ځان په شان اونهٔ لید
سیلانے یمه مدام دَ بحر وبر زړهٔ

زړهٔ دَ غم یم غم زما دے بل څهٔ نهٔ کړم
هر ساعت یمه دې غم پسې نهر زړهٔ

ما په پاک الله ﷻ توکل کړے دَ مینې
کړمه دې بنائسته بیړئ کښې دا سفر زړهٔ

محترم سره چې یؤ وار ملاقې شم
په بل لور به ترِنه واتهٔ روم نظر زړهٔ

اسمٰعیل به دَ تسکین ما نړئ کښې اوسم
چې یؤ وار اُوځم دَ غم له سمندر زړهٔ





دَ عشق نمر راله زړے تول ننکئ کړه
په دُنیا کښې ئې محروم له خوشحالئ کړه

په طبیب پسې دَ سوز وطن کښې ګرځم
راپه غاړه ماته یار کار دَخوارئ کړه

له ډیر درده قدمونه ورو ورو اخلم
راته پېښ طبیب له تلۀ دې لاچارئ کړه

له مودو راسې روان زۀ په دالار یم
زړۀ مې ډک هم دې طبیب له بیمارئ کړه

ورځ په ورځ مې دَ زړۀ رنځ لا سیوا کیږی
ډیر ترخې راله دۀ تن په کټارئ کړه

خبر نۀ یم چې طبیب به کله مومم
فریادونه مې هم چپ ناقرارئ کړه

اسمٰعیل له خپل خدایه قرار غواړم
څۀ وار ونه په ما خپلې شاعرئ کړه





کۀ غواړې په دُنیا له شهنشاه څخه شاهي
ګذار کړه خان شاهئ لره دَ عشق په کراهي

کباب شه چې له زړۀ نه دِ رباب دَ مینې جوړشي
ګویا به همیشه وی بیا په ذکرِ الٰهي

لوئیدلے ئې ناپوهه لا خبر نه ئې له ځانه
راوخیژه دمینې په رسی له دې کوهی

روان شه د منزل په لوری دروم په دالاره
بل خوا یه قدم خستوده لویه تباهی

سره دعقله ولې په ځنګلو باندې سرې ته ئې
راشه نوره چرې مه کړه داسې کوتاهی

زه اسمٰعیل نور امداد لتا سره کوے نه شم
دغه زما وس ووچې مې درکړه آګاهي



په قرار پسې مې زړه ډیر ناقرار شه
د فریاد په تیغ مې تن همه پرهار شه

د قرار موهم به څوله قرار غوارم
هر یوه مې لکه سکور په انتظار شه

د فرقت بار مې په ولو باندې پروت دے
په نصیب مې همه عمر داسې کار شه

د وفا رسی مې کلکه له بار ستا ووده
له ډیر بوجه مې کړیوان تول تار په تار شه

په سینه راله زخمونه رسی جوړ کړه
هر یو زخم مې په یادو د نګار شه

راحتونه مې د زړه له کوره لاړه
چې مې زړه د دې دنیا څخه کنار شه

اسمٰعیل به بې نکاره څنګ خوشحال شم
چې ئې نقش زما په زړه ښکلې رخسار شه





زه په یار پسې د اوښکو لوئ بحیر شوم
د زیبا په بیلتانه اخته په ویر شوم
کل عالم کښې ئې ثاني د حسن نشته
زه مئین په داسې ښکلي بې نظیر شوم
د دلبر په تصور کښې شپه و ورځ کړم
د یادونو په صحرا کښې ډیر ظهیر شوم
د خبرو مې څوک نشته په صحرا کښې
مقرر یمه خپل ځانته په تقریر شوم
تول تقریر کښې غلې نه شوم له ژړا نه
منتخب داسې ژړا له له قدیر شوم
په ژړا د یار دیدن غواړم له ربه
په داچاره هم فقیر او هم امیر شوم
اسمٰعیل دواړه و عهدو زړې زړې کړم
څکه چالره مرید چالره پیر شوم



پہ دُنیا کښې پہ ژړا متـواتر شـه
هر ساعت کښې دَ اللّٰهؐ پہ کړو شاکر شـه
همہ ژوَند دَ خپل مولیٰ پہ یاد کښې تیر کړه
چې هر رنګ دِ کړی ثنا هغه ذاکر شـه
داسې مینہ لہ خپل رب مدام غـواړه
پہ دې کار باندِ دې کار لره ماهر شـه
پاکہ مینہ دَ خپل پاک پروردګار کړه
لہ دې ځایہ ئې دیـدار لره طاهر شـه
توکّل پہ اللّٰهؐ اوکړه دې سفـر کښې
همیشہ دِ پاک اللّٰهؐ حافظ ناصر شـه
پہ دالاړ ده خزانہ دَ جـواهـرو
پہ نصیب دِ دابې مثلہ جـواهـر شـه
پہ حضور دَ خپل مولیٰ کښې مـدام ژاړه
اسمٰعیلہ همیشہ ئې در کښې حاضر شـه



---

چې زرغون ترځو دَ عشق لہ زمین نۀ شې
شینکے خال بہ دَ آشنا دَ جـبین نۀ شې
چې دَ یار پہ تورو زلـفو بندي نۀ ئې
تور اوربل لہ بہ ئې ګل دَ یاسمین نۀ شې

دَ یار غشو ته زړګي خپل نشانه کړه
بې له غمه به خبر له تسکین نهٔ شي

دَ یار څنګ کښې به ته ځائے څنګه بیا مومې
چې له دې ځایه ئې لاس له نګین نهٔ شي

چې دَ عشق رمضان په ځان باندِ تیر نهٔ کړې
دَ اختر په تال به چرې یرین نهٔ شي

زیبا در دِ دَ یار ولې دے هیر کړے
دغه در ته به داخل بې یقین نهٔ شي

دَ یقین په طریق تر ترمرګه کانده
تهٔ به هسې دَ دلبر تماشبین نهٔ شي

له حسده به ترڅو داسې کندیرئ
په تا څهٔ چې له الفته شیرین نهٔ شي

اسمٰعیله دَ اُلفت په پت پټی شه
بې الفته به دَ یار نازنین نهٔ شي

---

روغه سته مې شوه خاوري دَ فراق په زولنو کښې
ویر له خپل ځو ټکله اوړمه دَ غم په سازینو کښې

په شرابو به رغیږم میکدې ته که مې بوځې
شفا نشته ما دَ پاره دَ دُنیا شفاخانو کښې

هم زخمي یم په مژګانو هم مژګان راله مرهم دی
مدام ځکه مژګان ستایمه ریبار ته په سلګو کښې

غوږ مې ایښې له مودو نه چې په کله وائې ده ره[1]
خوار و زار په انتظار شوم د فرقت لاړو کوشو کښې
د هجران په توره شپه کښې صباوون ته انتظار کړم
صباوون صباوون وایم د یادونو ترانو کښې
ستوری ما ته په مسکا دی زه ژړېږم دا مې ژوند دے
محتوم له خپلې اوښکې مدام بیا یمه جرګو کښې
اسمعیل به داسې بیله ژوند ترکومه تیروومه
زه دیدن د صنم غواړم د هجران په تورو شپو کښې



ستا د جمال صفت کولے نهٔ شم
همه جمال دِ زهٔ لیدلے نهٔ شم
زهٔ په پوندو باندِ دړ خیژم مدام
خو تر همٔو دړ ختلے نهٔ شم
هره پونړۍ باندِ زهٔ مرمه یوـوار
خو بیا دِ هم زهٔ هیر ولے نهٔ شم
د نا تمام حُسن دِ څهٔ اُووایم
بس داسې وایم څهٔ ویلے نهٔ شم
چې دِ عادت په میخانه کړمه زهٔ
چرې تر زهٔ اوس صبریدلے نهٔ شم
ډیر عاشقان دی تا په غږ وسر کړی
زهٔ هم له دوئي نه بیلیدلے نهٔ شم

[1] ده را، راشه

زۀ اسمٰعیل سینه غلبیل کړ ځوم
بې له تا یاره دغسې نۀ شم



ستا له فضله په ما والوَتۀ نسیم
ډیر خوشبویه دِ نسیم دے له قدیم

هر ساعت پرِیاندِ نور نور تازه کیږم
دې نعمت لره توفیق راد تکریم

زۀ لائق دَ دې انعام نۀ یم منعِمه
تا را اوبښود ځان پدې ما ته کریم

شکریه دِ چرې نۀ شم پوره کوے
کۀ هر څوې ادا کومه په تعظیم

تۀ دَ هغه چا په مخ ډیر مهربان شه
چې دَ چا مخ دے مخونو کښې عظیم

همیشه به ستا دَ فضل امید واریم
همیشه غالب لره ما په غلیم

اسمٰعیل له کړاهانو په امان کړه
لکه څنګ چې شۀ له اوره ابراهیمؑ

○

په دُنیا کښې خوښ څهٔ اِنسانیت دے
دوئیم نوم اِنسانیت لره الفت دے
بې اُلفته چې ئې استوګنه وی دُنیا کښې
دغه ژوند دَ دهٔ همه واړه لعنت دے

دې سفر کښې دَ اُلفت هُنر ره کانده
عارف موندے په اُلفت کښې معرفت دے
لږ ساعت له محبّت بغیر تیر نهٔ کړې
هرې چارې لره دا واحد طاقت دے

بې له مینې بل څهٔ ښکارې انسان نهٔ ئې
لکه بُوت دِ هسې جوړ داسې صورت دے
په جوړ نظر ځان اوګوره چې څهٔ ئې
بې هوده دِ اختیار کړے سکونت دے

سکونت دَ یار لټون کښې همه تیر کړه
دا یارې په دواړه کونه لوئ نعمت دے
اسمٰعیل به بل څهٔ کړمه دُنیا کښې
چې راکړے ذوالجلال دا غنیمت دے

---

○

په دُنیا کښې دَ خزان بورا نامیږم
په بهار پسې مدام ژړا نامیږم

زهٔ دَ عشق سوداګری کړمه بېدیا کښې
زهٔ پخپله هم دَ عشق سودا نامیږم

دَ توکل په دولت هجر ځان له اخلم
دَ دیدن دَ پاره داوفا نامیږم

دَ وفا دریا کښې ورو ورو نور ډوبیږم
په دریا کښې دَ وفا دریا نامیږم

په منشا دَ خپل جانان ځمه جانان له
ځکه داسې دَ جانان منشا نامیږم

زهٔ دَ فکر په تال ځانګم بل څهٔ نهٔ کړم
په عالم کښې له عالم تنها نامیږم

تنهائی ما اسمٰعیل غوره کړلې
پس له هجره به تنها خندا نامیږم

---

دَ ارمان وطن کښې ګرځم خوبرویان لټوم زهٔ
دَ جانان دیدن دَ پاره سره ګلان لټوم زهٔ

دَ وفا په بیابان کښې دَ وفا په تیغ حلال شوم
دَ وفا ناری وهمه نور لمر زان لټوم زهٔ

په آفتاب دَ حُب مې وینې دلربا پسې اوچیږی
نقاب پوش ئې عالم بولې داجانان لټوم زهٔ

دَ حیرت په سمندر کښې زهٔ زیرک ملاح نامیږم
ملغلرې مدام دره له دَ سلطان لټوم زهٔ

دَ هجران له طوفانونو سره خورم مدام ډغري
طوفانونو کښې وطن لره سامان لټوم زۀ

دَ سامان انبار مې جوړ کۀ دَ الفت لويه بيړۍ کښې
هم دا چاره به کوم چې عاليشان لټوم زۀ

عاليشان ما اسمٰعيل سره وعده دَ ديدن کړې
ځکه هر وخت دَ زيبا نګار دا شان لټوم زۀ





ډوب شوم په درياب دَ غم نارې وهم رهبر ته
داسې په ضرور کيدۀ چې ځمه دَ يار در ته

دا درياب دَ عشق په بيابان باندِ تير شوے دے
زړۀ مې بيابان دے پرِ بهيږي درياب سر ته

مدام ئې په سيلاب زما ليمه زيلے کيږي
خپله چې درياب شوم له ځان څنګ او ځم بهر ته

په ياد کښې دَ دلبر وهم موجونه په دلبر پسې
چې کله به مې راشي دا حسين نګار نظر ته

چرې قرار نه مومم دَ عشق له زوره درومم زۀ
خپله زۀ حيران يمه دې خپل نا اشنا سفر ته

راک دَ بيلتانۀ له خپل کوکله څخه اورمه
داسې توره شپه کښې انتظار کوم سحر ته

درياب يم له ازله اسمٰعيل هم راته وائي خلق
ځان سره په زوره يمه کړم زور دَ ځان هنر ته



چې زده کړې دِ دَ مینې رواج نهٔ وی
زړهٔ به چرې ستا روښانه سراج نهٔ وی

بې هوده به په تیارهٔ کښې ګرځیدهٔ کړې
برابر به دِ تول عمر مزاج نهٔ وی

په رواج دَ مینې ځان دَ یار اشنا کړه
بې له مینې څوک قابل دَ معراج نهٔ وی

یار دیدن کښې ورکوی شاهی عاشق له
بې له عشقه دَ چا سر له دا تاج نهٔ وی

چې په عشق ترخوږ نځوږ یار پسې نهٔ شي
دې طبیب لره جوګه دَ علاج نهٔ وی

اسمٰعیله څنګه ځان ته انسان وائې
چې مدام دَ یار دَ مینې محتاج نهٔ وی

───── ⁎ ─────



چې نصیب مې ستا په غم دَ فکر تال شهٔ
پرې مې زده دا ستا دَ وصل لوئې کمال شهٔ

په کمال زړې زړې شوم ستا په لاسره
ستا په مینه مې دلبره داسې حال شهٔ

هغه دم به مې زړې شي نړ راتلې
کهٔ دِ لړې له سپین مخه راته شال شهٔ

چې يو وار مې ستا رخسار دلبره او ليد
په جلووئ زړه زما همه شين خال شه
تا د زلفو په هر وَل کښې لما پيوړو
هميشه مې زړه پندې په داسې جال شه
اسمٰعيل دا ستا ديدن له ربه غواړم
که قبول د رب په دړ کښې زما سوال شه





له مودو راسې بيان کوم سلګو کښې
يا دومه خپل آشنا په توړ وشپو کښې
لا تراوسه ئې د بيان جواب رانه کړه
لکه عمر چې زما وی مقبره وکښې
د ديدن ارمان مې زړه دے ټول داغلے
ورته ګورمه د خيال په آئينو کښې
ما تراوسه دا داغونه لا شمار نه کړه
بحث کيږی پر د يار په ميکده وکښې
په ګوګل کښې مې د غم چرې غوړيږی
هير به نه کړمه صنم په دې چرو کښې
که د غم ليدو څوک غواړی ما ته ګوری
له چا جوړ دے داسې غم د يار کوګو کښې
غمزده د خوشحالی طلب کښې ګرځم
وړو په ورو مې غم زيا تيږی په دې تلو کښې

مدام جام غواړم د مهر د شرابو
پسې ګرځمه د زلفو په ورېښمو کښې

په سلګو کښې د ساقي تل منت باریم
څپل ساقي مې تل غریږي په لیمو کښې

د پتنګ په شان ستي کړمه دې شمعې
سرتاپا یې یمه پټ په سرولمبو کښې

همه ژوند د اسمٰعیل داسې تیرېږي
په دُنیا یې نصیب نشته خوشحالو کښې

---

خبر نهٔ یم چې ترڅو به غمخوري کړم
د اُلفت شرابو داسې خماري کړم

غمزه د ساقي د رپسې ګرځېږم
بیلتا نهٔ کښې زهٔ د یار څخه یاري کړم

د عشق چاره مې په برخه رسیدلې
د یار در لره دې چارې هُنري کړم

دا هُنر مې د ژړا په اله زده کهٔ
داسې ځکه دې الې نرهٔ پرهري کړم

د کیمیا یادومې زرهٔ سورے سورے کهٔ
دې یادونو د کیمیا د باب قاري کړم

هرګذار د زړهٔ په سرخوړمه له عشقه
ځکه زهٔ د زړهٔ له بیخه شاعري کړم

اسمٰعیل به دَ عشق اورکښې څنګ ځنډیږم
چې همه عمر هم دا سوداګري کړم





چې دَ چا په مخ پیدا دواړه جهانه
دَ هغه په مخ هغه غواړم لستانه

اے خدایه ته ئې دیدن زما نصیب کړه
تهٔ خبرې دا ارمان لرم سُبحانه

دَ ارمان اور مې په زړهٔ باندِ بلیږی
زر مې خلاص کړه دَ دې هجر له زندانه

اباسین مې پسې جوړ کړلو دَ اوښکو
په حَسین پسې خبر نهٔ یم له ځانه

چپاوونو ئې له ځانه سره یوړم
رسیدلی ئې چپاوونه تر آسمانه

تا شیدا کړم په هغه چې پرِ شیدا ئې
ډیر شاکریم په دا برخه عالیشانه

اسمٰعیل به بې له مینې بل څهٔ نهٔ کړم
په دې مینه هر څهٔ پاتې شوهٔ له مانه



چې نیکئ لره ته څومره بیره ناک شې
خبردار په همره ته له پټ ادراک شې

په سپاکه تیمم مهٔ وهه ناپوهه
پاکه خاوره چرته کوره چې پرې پاک شې

همیشه له بدو خلقو بیرته اوسه
دَ خو خلقو په صحبت به مینه ناک شې

زرغونیږې به هله په دې جهان کښې
چې وروښې لکه دَ تخم په شان خاک شې

په مالیار پسې تارې دَ بلبل زده کړه
چې په دا هنر خبر له ژوند وژواک شې

په خزان کښې ارمانې دَ پسرلي شه
پسرلے به په تا راشي چې دردناک شې

دَ جفا دَ اژدها له خُلې راووځه
تا به ښیر کاندې بې ځایه به هلاک شې

پام کوه چې تکبر درنه اونهٔ شي
دَ یار غیرې له به لاړ شې چې خاشاک شې

اسمٰعیله په یارئ دَ یار زیرک شوې
ملاقي به ته دَ صاحب لولاک شې

○

دَ خپل ژوند په تماشه کښې ستا دَ مخ په تماشه شوم
بل خوا مخ اړوے نهٔ شم ستا په مخ داسې نشه شوم
ستا دَ مينې نشانهٔ شوم هميشه مې دا خوړلې شهٔ
ساقي ستا له ميخانې نه زهٔ پخپله ميخانه شوم
هغه دم مې هر څهٔ هير شوهٔ چې رخسار دِ راعيان کهٔ
ځکه تا پسې دلبره زهٔ له هر څهٔ کناره شوم
په خپل ځان کښې راته ښکارې ډير حيران يمه دې کار ته
هم پخپله تماشبين يم هم پخپله آئينه شوم
زهٔ ژړيږم تهٔ مُسکا کړې داسې ژوند زما نصيب دے
په دې ډير شکر گذار يم ستا دَ مينې افسانه شوم
ستا په حُکم زهٔ ژړيږم دَ مُسکا په انتظار کښې
دَ مُسکا به کله وائې په ژړا خو ديوانه شوم
ستا دَ مخ په پلوشو کښې اسمٰعيل له ځانه پټ يم
ما له مرګ له دې نه ښهٔ دے بيا به ورو‌غ شمع اېره شوم

---

○

دلربا مې زهٔ دَ عشق دَ باب قاري کړم
په دا چاره ئې په زړهٔ ډير پرهرې کړم
په اغزو دَ بيلتانهٔ زخمي زخمي يم
ګلستان کښې دې يار ځکه ماليارې کړم

ما دُنیا دَ یار دَ پاره کړله ترکه
دَ یار عشق کښې به مدام قلندري کړم

ما مونده فقیرۍ کښې لویۍ دولت دے
فقیرۍ کښې پرې زۀ لویه امیري کړم

تل اوسیږمه دَ یار دَ حُسن اور کښې
له خپل یاره څخه زۀ داسې یاري کړم

دَ پتنګ په شان په اور باندې مئین یم
همه عمر به هم دا وفاداري کړم

دَ یار غیږه کښې مرګے له ربه غواړم
صبح وشام زۀ اسمٰعیل هم دا زاري کړم

---

دَ دُنیا دَ کانړو زړونو کښې نروب زړګے لرمه
داسې ګران ژوند په دُنیا کښې دَ هجران زۀ تیرومه

چې وطن ته دَ بریښنا شومه داخل زړۀ مې نروب شۀ
په بریښنا کښې لما ورک شۀ همیشه ئې لټومه

دَ زړۀ چغې مدام اورم چې دَ کانړو زړونه ئې اولی
لوې انبار پرې باندې جوړ دے زۀ ئې ځکه نۀ مومه

هم دا کانړي به نروب شي خو دا وخت به په دوئي تیروي
زۀ ئې دلته نروب غواړم نۀ ژوندے یمه نۀ مرمه

اسمٰعیله ستا زړګے خو دَ عشق اور دے ویلې کړے
ستا زړګي لره بل داسې زړګے راولم له کومه

چې زړه کوې د دې مينې رواج نه وي
زړه به چرې ستا روښانه سراج نه وي

بې هوده به په تيارو کښې ګرځيده کړې
برابر به دې تول عمر مزاج نه وي

په رواج د مينې ځان د يار اشنا کړه
بې له مينې څوک قابل د معراج نه وي

يار ديدن کښې ورکوي شاهي عاشق له
بې له عشقه د چا سر له دا تاج نه وي

چې په عشق ترخوږ نځوريار پسې نه شي
دې طبيب له ره جوګه د علاج نه وي

اسمٰعيله څنګه ځان نه انسان وائې
چې مدام د يار د مينې محتاج نه وي

---

چې نصيب مې ستا په غم د فکر تال شه
پر مې زړه دا ستا د وصل لوئي کمال شه

په کمال زړې شوم ستا په لاسه
ستا په مينه مې دلبره داسې حال شه

هغه دم به مې زړې شي نر را تولې
که د دلرې له سپين مخه را ته شال شه

چې یو وار مې ستا رُخسار دلبره او لید
په جلوو ئې زړه زما همه شین خال شه

تا د زلفو په هر ول کښې لما یوړه و
همیشه مې زړه ېندې په داسې جال شه

اسمٰعیل دا ستا دیدن له ربه غواړم
که قبول د رب په دړ کښې زما سوال شه





له مودو راسې بیان کوم سلکو کښې
یادومه خپل اشنا په تورو شپو کښې

لا تراوسه ئې د بیان جواب رانه که
لکه عمر چې زما وی مقبرو کښې

د دیدن ارمان مې زړه دے ټول داغلے
ورته ګورمه د خیال په آئینو کښې

ما تراوسه دا داغونه لا شمار نه کړه
بحث کیږی پر د یار په میکدو کښې

په ګوګل کښې مې د غم چړې غریږی
هیر به نه کړمه صنم په دې چړو کښې

که د غم لیده څوک غواړی ما ته ګوری
له چاچو ړدے داسې غم د یار کوڅو کښې

غمزده د خوشحالی طلب کښې ګرځم
وړو په ورومې غم زیاتیږی په دې تلو کښې

مدام جام غواړم دَ مهر دَ شرابو
پسې ګرځمه دَ زلفو په وږموکښې
په سلګوکښې دَ ساقي تل منت بارېم
څپل ساقي مې تل غرېږي په ليموکښې
دَ پتنګ په شان ستي کړمه دې شمعې
سرتاپايه يمه پټ په سرولمبوکښې
همه ژوند دَ اسمٰعيل داسې تېرېږي
په دُنيا کې نصيب نشته خوشحالوکښې



خبر نهٔ يم چې ترڅو به غمخوري کړم
دَ اُلفت شرابو داسې خماري کړم
غمزده دَ ساقي دَر پسې ګرځېږم
بيلتا نهٔ کښې زهٔ دَ يار څخه ياري کړم
دَعشق چاره مې په برخه رسيدلې
دَ يار دَ لره دې چارې هُنري کړم
دا هُنر مې دَ ژړا په اُلـه زده کـه
داسې څکه دې اُلې زهٔ پرهـري کړم
دَکيميا يادومې زړهٔ سوړے سوړے کـهٔ
دې يادونو دَ کيميا دَ باب قاري کړم
هرګذار دَ زړهٔ په سرخوږمه له عشقه
څکه زهٔ دَ زړهٔ له بيخه شاعري کړم

اسمٰعیل به دَ عشق اور کښې ښَنک خندیږم

چې همه عمر هم دا سودا کړی کړم





چې دَ چاپه مخ پیدا دواړه جهانه

دَ هغه په مخ هغه غواړم لستانه

اے خدایه ته ئې دیدن زما نصیب کړه

تهٔ خبرئې دا ارمان لرم سُبحانه

دَ ارمان اور مې په زړهٔ باندِ بلیږی

زر مې خلاص کړه دَ دې هجر له زندانه

ابا سین مې پسې جوړ کړلو دَ اوښکو

په حَسین پسې خبر نهٔ یم له ځانه

چپاوونو ئې له ځانه سره یوړم

رسیدلی ئې چپاوونه تر آسمانه

تا شیدا کړم په هغه چې پرِ شیدائې

ډیر شاکر یم په دا برخه عالیشانه

اسمٰعیل به بې له مینې بل څهٔ نهٔ کړم

په دې مینه هر څهٔ پاتې شوهٔ له مانه



چې نیکئ لره ته خومره بیره ناک شې
خبردار په همره ته له پټ ادراک شې
په سپاکه تیمم مه وهه ناپوهه
پاکه خاوره چرته کوره چې پر پاک شې
همیشه له بدو خلقو بیر ته اوسه
دَ خو خلقو په صحبت به مینه ناک شې
زړغونیږې به هله په دې جهان کښې
چې وړومبې لکه دَ تخم په شان خاک شې
په مالیار پسې ناړې دَ بُلبل زده کړه
چې په دا هُنرخبر له ژوند وژواک شې
په خزان کښې ارمانی دَ پسرلی شه
پسرلې به په تاراشي چې دردناک شې
دَ جفا دَ اژدها له خُلې راوُځه
تا به تیر کاندې بې ځایه به هلاک شې
پام کوه چې تکبر دړ نه او نه شې
دَ یار غیرې له به لاړ شې چې خاشاک شې
اسمٰعیله په یارئ دَ یار زیرک شوې
ملاقی به ته دَ صاحبِ لولاک شې

*

دَ خپل ژړوند په تماشه کښې ستا دَ مخ په تماشه شوم
بل خوا مخ اړوے نهٔ شم ستا په مخ داسې نشه شوم
ستا دَ مينې نښانهٔ شوم هميشه مې دا خوړدن شهٔ
ساقي ستا له ميخانې نه زهٔ پخپله ميخانه شوم
هغه دم مې هر څهٔ هير شوهٔ چې رخسار دِ راعيان کهٔ
څکه تا پسې دلبره زهٔ له هر څهٔ کنــاره شوم
په خپل ځان کښې راته ښکارې ډير حيران يمه دې کار ته
هم پخپله تماشبين يم هم پخپله آئينه شوم
زهٔ ژړيږم ته مُسکا کړې داسې ژوند زما نصيب دے
په دې ډير شکر گذار يم ستا دَ مينې افسانه شوم
ستا په حُکم زهٔ ژړيږم دَ مُسکا په انتظار کښې
دَ مُسکا به کله واې په ژړا خو ديوانه شوم
ستا دَ مخ په پلوشو کښې اسمٰعيل له ځانه پټ يم
ماله مرګ له دې نه ښهٔ دے بيا به ورُوغ شمه اِيره شوم



دلربا مې زهٔ دَ عشق دَ باب قارى کړم
په دا چاره ئې په زړهٔ ډير پرهرى کړم
په اغزو دَ بيلتانهٔ زخمى زخمى يم
ګلستان کښې دَ يار څکه ماليارى کړم

ما دُنیا دَ یار دَ پاره کړله ترکه
دَ یار عشق کښې به مدام قلندری کړم
ما موندے فقیریٔ کښې لوئ دولت دے
فقیریٔ کښې پرې زهٔ لویه امیری کړم
تل اوسیږه مه دَ یار دَ حُسن اور کښې
له خپل یاره څخه زهٔ داسې یاری کړم
دَ پتنګ په شان په اور باندې مئین یم
همه عمر به هم دا وفاداری کړم
دَ یار غیږه کښې مرګے له ربه غواړم
صبح وشام زهٔ اسمٰعیل هم دا زاری کړم



دَ دُنیا دَ کانړو زړونو کښې نروب زړګے لرمه
داسې ګران ژوند په دُنیا کښې دَ هجران زهٔ تیرومه
چې وطن ته دَ بریښنا شومه داخل زړهٔ مې نروب شهٔ
په بریښنا کښې لما ورک شهٔ همیشه ئې لټومه
دَ زړهٔ چغې مدام اؤرم چې دَ کانړو زړونه ئې اوبلی
لوئ انبار پرِ باندِ جوړ دے زهٔ ئې څکه نهٔ مومه
هم دا کانړی به نروب شی خو دا وخت به په دوئ تیروی
زهٔ ئې دلته نروب غواړم نهٔ ژوندے یمه نهٔ مرمه
اسمٰعیله ستا زړګے خو دَ عشق اور دے ویلې کړے
ستا زړګی لره بل داسې زړګے راولم له کومه

چې دَ حُسن په تکبیر باندِ حلال شوم
دَ تنک ونې پورې کلک دَ فکر تال شوم
دلربا پسې مدام ځمه په پوره شته
چرې رانغلمه بنکته پدې حال شوم
له فلکه پوره ته اوره سیدم اوره له
هم نشین شومه دَاورځکه کمال شوم
په دا اور به زۀ مدام هم داسې سوزم
بې خودئ کښې زۀ لا پته له خپل خیال شوم
داسې ورک بنهٔ یم دَ خیال دوران مې تیرشهٔ
په خیال څهٔ کړم تماشبین دَبې مثال شوم
پرمختن کښې تماشه دَبې مثال کړم
پرمختن کوُم په دۀ پسې ملال شوم
بې مثال دِما نوره هم بنهٔ کړندے کړی
اسمٰعیل وره ته مدام هم پدې سوال شوم

---

دَ ضیاء محکومیت مې زاره شنه کړه
دَ فراق اغزوئې ماله لمن سره کړه
په صبا پسې په توره شپه کښې کړځم
په دیو زوږمې شپه دَ ځان په تنداره کړه

صبا ؤون توره شمله کښې مخ پټ کړې
په ډیر صبر مې زخمي خپله سینه کړه
ټول زخمونه په مې روغ رمټ شي خلقه
که دلبر لرې له مخ څخه پرده کړه
اسمٰعیل دې انتظار له برمه پرې ایستم
ما دغم له زړه ډکه خزانه کړه





زړه دِ روږدی[1] دې دَ شیطان په اشارې شه
را بیدار شه دَ غفلت په نندارې شه
دَ ظاهر لباس په څا خوشکختو پام کړې
دَ باطن لباس دِ ټول ریغې ریغې شه
په غفلت کښې به تر څو قیام پذیرې
سینه لوښي[2] دِ همه رنګین په دې شه
دَ توبې ریګمال پرِ او مږه چې پاک شي
له یادونو څخه ئې ډک کړه بې اسرې شه
دَ خوبا په مینه دالوښې رنګین کړه
کاش چې ولې ناخبر له میکدې شه
اسمٰعیل به میکده خنکه په هیر کړم
چې مې زړه مدام له ډوب په سرې پیالې شه



[1] روږدی: عادت [2] سینه لوښي: زړه

دواړه لاسه مې اچولي کمترئ ته
زړه مې وائ الوداع هرې سلګئ ته

دَ صنم له دروازې بل خواته نه ځم
تو دیدَ ته نیت لرم پهره دارئ ته

په زړګي مې دَ فانوس په شان اور بل دے
دَ غزل آوازې رسي ککرئ ته

شین لوګي مې دَ سینې سیمه قبضه کړه
دَ آهونو ځي واړوه مرئ ته

دَ صنم په لور مې ټول آهونه درومي
تماشبین یمه دَ یار داسې یارئ ته

له ډېر درده بې ترتیبه زبیرګي کاندم
حق حیران یمه دې خپلې بیمارئ ته

اسمٰعیل په داسې رنځ یمه آوَ وستے
ما یه پرې نه دي نو مرګه قرارئ ته

---

مستفیض له مستفیضه شه دُنیا کښې
تل غرقاب اوسه دَ مینې په دریا کښې

ذوالنّو دَ طریقت کښې عمر تیر کړه
مستفیض نه ګوهر غواړه په ژړا کښې

دی انعام لره دَ هجر په نمر وریت شه
مدام اوسه په طلب دَ خپل خوبا کښې

دَ دُنیا له محبّته مړه خواشه
څو یه اوسې ته په خُلهٔ دَ اژدها کښې

وروستو پاتې په جفا شوې له کاروانه
هم جفا دِ کړه حاصله په جفا کښې

دَ وفا په لار وفا پسې روان شه
ملاقی به دَ اشنا شې په وفا کښې

اسمٰعیل به په دا لاره تل روان یم
یادومه خپل صنم په هره ساه کښې





سترې دَ وفا په ناکردو شومه
کُله ډیر زخمی دِ په اغزو شومه

ځان اوچوم له وینو په شنو پانو زهٔ
داسې ناخبر له خوشحالو شومه

ستا دَ وفا دام کښې زهٔ بندی یمه
تا پسې کډار له هسکو غرو شومه

تهٔ به مې هیر نهٔ شې یوٌ ساعت له هم
څکه داسې شپه ورځ په سلګو شومه

یاره ستا دَ مینې دریاب ډوب کړمه
ډیرې سانیوے په چپو شومه

خورمه کذاروَنه دَ خنجرو زړهٔ
یاره مدام تا ته په ښارو شومه
غواړمه ستا مینه اسمٰعیل مدام
ډیر توتی توتی په کتارو شومه





دَ ریبار په خُلهٔ اشنا یمه سبللے
زړهٔ روان یم خپل اشنا له سَ نیوے
دَ دیدن ادا زده کومه له ریبارہ
په دې زده کړه ریبار ډیر یمه وهلے
دا مزل کومه زړهٔ په سرو لمبو کښې
زړهٔ مدام په دې لمبو یم سوزیدلے
یوُ قدم بیرون ایښوے نهٔ شم له اوره
زړهٔ دلبر په تورو زلفو یم تړلے
دَ یار دَرته ما تړے ریبار بیائی
چې څهٔ وائی پکښې هیڅ نهٔ شم وئیلے
په رضا دَ دلربا زما رضا ده
په سکروتو دَ رضا یمه داغلے
دا سکروتې مې په اوښکو سیوا کیږی
ډیر دَ اوښکو سیلابونو یم رپلے
ارمانی دَ یار دَ دَرِیمه عالمه
په لیمو کښې مې غریږی تل ښا غلے

اور دَ هجر مې دیدن دَ یاره خوښ دے
زهٔ دیدن له یار په اوریمه پالے
اسمٰعیل به داسې شپې صبا کومه
دا روزګار مې دے په برخه رسیدے





په زړګي مې مدام دړومې اوله سترګو مې پناه ئې
په سینه کښې مې دریائې ځکه سترګو له صحرائې
له موجونو دِ خبریږم زما سترګې چې زلې تهٔ
زړهٔ مې ستا غیږ کښې اوسیږي نه ئې داسې رهنمائې
له زړګي نه مې لاړ نهٔ شې دَ مهي په شان به مړ شي
دے په تا باندِ ژوندے دے اے دریا به تهٔ ئې سائې
ستا دَ هجر په چونګارو زخمي کیږي په وصال کښې
ډیر رضا یم په دا برخه اے دریا چې تهٔ رضائې
زهٔ چې ستا شوم تهٔ زما شوې داسې اوګڼه تا بخپله
په دې پوهه شوم مدام له به زهٔ ستا اؤ تهٔ زمائې
کهٔ زهٔ ډیرې نارې اورمه دَ زړهٔ خهٔ کوے نهٔ شم
ګرم ئې هم کنړے نهٔ شم ورسره ئې خوجدائې
عجیبه دَه اسمٰعیله چې نهٔ مړې نهٔ ژوندے ئې
دا په تا باندِ خهٔ اوشوهٔ چې نهٔ دغه ئې نه دائې



د ژړوندون په هر ساعت کښې د خوب په انتظار یم
هیریده ئې لما هیر دی په یادونو ئې خمار یم
د شدید عشق نا کردو یم د دُنیا له چارو ویستے
د غمونو زولنو کښې له پخوا ند کرفتار یم
د بیلتون د خامار خُلهٔ کښې مې زړګے زرې زرې شهٔ
له چیچلونو ئې خلاص نهٔ شهٔ که هر څو مره خوار وزار یم
د آهونو په چاقوانو مې سینه سورې سورې شوه
نور له هر څهٔ مره خوا شومه مرهوته لاچار یم
د طبیب لارې ته ګورم د خزان د باد میلمه یم
رژیدے لاړ کښې زغل کړم تل په طمعه د بهار یم
کهٔ سلګې وهمه ډیرې څوک ئې نهٔ اوري څان ته ژاړم
د صنم مینه کښې داسې شپه او ورځ زهٔ نا قرار یم
اسمعیل به خپل جانان ته انتظار کاندم ترمرګه
بنهٔ محکم به همه عمر زهٔ د مینې په اقرار یم

زهٔ تراوسه له راحته خبر نهٔ شوم
په امان د بیلتانهٔ له خنجر نهٔ شوم
په ناسور د عشق اووختے یم بیدیا کښې
ډیر ر تنګور یمه زهٔ روغ په ځکونهٔ شوم

سوی لوی زړهٔ دَ هجر نمر ته کړی ځم
دَ دیدن په باران نهٔ چرې ترنهٔ شوم

دَ بورا په شان تکتور شومه خزان کښې
په ورېمو دَ پسرلی معطّر نهٔ شوم

دَیادونو سري سکروټې مې خوراک دے
پریښودو لوږه ئې چرې نهر نهٔ شوم

مړیدهٔ په دې خوراک چالوه نشته
ځکه موړ زړهٔ په دا بیکلی هنرنهٔ شوم

اسمٰعیل دَ هجر لویه شپه کښې ژاړم
زړهٔ خبر دَ لوئې شپې له سحر نهٔ شوم





دَ رُخسار په تیرهٔ تیغ مې زړهٔ زخمی دے
زخمی کړے دا رُخسارِ هاشمی دے

پرمِدام دَ انتظار مالګې دُوړومه
سیوا کومه ئې زخمونه فریادی دے

هر ساعت دَ دیدن پښو ته لیوال دے
ګذار شوی دَ هجران په کراهی دے

کراهی کښې غوړ زنګونه مدام کاندی
دَ یار در لره په دې ډیر هنری دے

اسمٰعیل دَ هنر مند استاد شاګردیم
ځکه جوړ مې هر غزل قلندری دے

د یار سترګې مې په زړه کښې تل اوسیږي
په مژګانو ئې رخسار پسې خوږیږي

فریادونه ئې زړه اوړم ورته ژاړم
له فریاده چرې هم نه غلې کیږي

بې خودئ کښې د طبیب لارې ته ګوري
په سلګو طبیب پسې ژړیږي

زنکدن ئې له ښخوا راسې شروع دے
بې له وصله ئې زنکدن نه تمامیږي

اسمعیل ورته د عشق کلمه وایم
دلربا به له دې څنګه په هیریږي



زړه زما د بیلتانه د اور ملمه دے
په خپل زړه کښې ئې ځائے کړے د سوخته دے

د دیدن باران مدام له ربه غواړي
په نمانځه د استسقاء کښې په سجده دے

په سجده کښې دلربا دلربا وائي
بل سبق ئې څکه هیر دے دائې زده دے

په څو وار تر د بیلتون توري سر پریکړه
دے هم هغسې یا رستائے عجیبه دے

اسمٰعیله زړهٔ دِ نهٔ دے سمندر دے
چې دَ داسې طوفانونو اموخته دے



تلهٔ په لاره دَ خپل ښکلی شهنشاه کړم
هر قدم څخه له سوی زړهٔ نه آه کړم
ډیر ریګونه دَ هجران باد پورته کړی
له عالمه یٔ پرېږ زهٔ په دا سراه کړم
خړ ریګونه مې آهونو باندِ تور کړهٔ
لکه سکور یٔ په ضیاء پسې سیاه کړم
قدمونه دَ سلګو په حساب شمارم
دې حساب دَ قدمونو زهٔ تباه کړم
یؤ قدم زهٔ اخستے نهٔ شم په خپله
هر قدم له دَ ربیار ندا اګاه کړم
په ندا پسې سلګو کښې لبیک وایم
دا لبیک به زهٔ ترهغه آرامګاه کړم
اسمٰعیل به ولې فخر په دې نهٔ کړم
چې روان زهٔ دَ درګاه په لور اللّٰه کړم

دا په ما هم ستا اکرام دے بل څۀ نۀ دی
لیک په زړۀ مې ستا کلام دے بل څۀ نۀ دی

ستا دَ حُسن پلوشو ته ننداره کړم
په نصیب مې دَ عشق بام دے بل څۀ نۀ دی

ستا دیدن له ځم له بامه سره پورته
تل په ژبه مې ستا نام دے بل څۀ نۀ دی

بې له عشقه څوک ستا در ته در تلے نۀ شی
صبح وشام مې دا امام دے بل څۀ نۀ دی

دَ فانوس په شان دے اور په ما را پورې
ستا په لورې مې اقدام دے بل څۀ نۀ دی

دَ جانان عکس دِ ما زړۀ پورې نیولے
تا خوږ کړے هم دا دام دے بل څۀ نۀ دی

په دې دام کښې دې په ځان باندِ عاشق کړم
ستا له جامه دَ دۀ جام دے بل څۀ نۀ دی

په دې جام باندِ ساقی یم عادت کړے
نوش کړل ئې زما کام دے بل څۀ نۀ دی

اسمٰعیل په دې شرابو څنګه موړ شم
چې لذت ئې نا تمام دے بل څۀ نۀ دی

په هر ګفت د دلربا داسې یقین کړم
چې هر حرف یې زه بې مثله باریک بین کړم

باریکۍ مې د حیرت وطن کښې زده کړه
په څوارۍ خاکستر په روی زمین کړم

چې ژوندے یم دا به دغسې زده کومه
زه دې چارې ډیر قریب د نازنین کړم

باریک بین به ولې نه یمه عالمه
چې مدام زه ننداره د ډیر حسین کړم

د جلوو په نیرو تورو کړې وارونه
په سر و وینو یې ځکه زه داسې رنګین کړم

بې مجاله یې څه درته په خرپوسو
که په غیبره کښې راپورته ګل ورین کړم

اسمٰعیل په ګل ورین تالا والا شوم
دې عادل زه ورکنداره په تاتوین کړم

―――― ⁕ ――――

له قیصې مې خبردار نه یې ناصحه
سوزیدلے په انکار نه یې ناصحه

نصیحت به دِ په ما څه اثر او کړه
چې زما غوندِ بیمار نه یې ناصحه

روغ عالم دُنیا کښې ویر دے پسې ګرځه
ما دَ پاره دَ هیڅ کار نهٔ یې ناصحه

محبّت سړی له خپله نصیحت دے
تهٔ مېین لا په رخسار نهٔ یې ناصحه

اے ناصحه عاقلانو کښې به شمار شې
بې له عشقه پکښې شمار نهٔ یې ناصحه

اسمٰعیل دِ خټک خبرې ته غوږ کیږدم
چې خبر مې تهٔ له یار تهٔ یې ناصحه



تا دَ حُسن په جلوو باندِ کباب کړم
بیا دِ خپلو مهرویانو کښې حساب کړم

بیلتانهٔ دِ ړاله راک سینه کښې جوړ کهٔ
تا په ځان پسې له وِیره ډک رباب کړم

دَ حکمت شهباز دِ زړهٔ زما زخمی کهٔ
نا خبر دِ څکه زهٔ داسې له خواب کړم

دَ یادونو په ټوکا ځان ټوټې کومه
ستا یادونو زهٔ خپل ځان لره قصاب کړم

سمندر څکه لما تا پسې جوړ شهٔ
چې دَ یؤ وار په کاتهٔ دِ سر دریاب کړم

ستا دَ پاره خپلو اوښکو کښې ډوب اوسم
نا خبره ستا دې مینې له شباب کړم

دَ آفتاب په شان دِ عکس او ښکو کښې وینم
اسمٰعیل داسې داتا دَ عکس خطاب کړم



ستا له غمه په ما هر ساعت قیامت دے
ستا دیدن پسې مې زړهٔ لما رخصت دے
تش کوګل د ړپسې ګرځمه هر لور ته
ستا په مینه راته پېښ دا مصیبت دے
ځائے په ځائے دِ تپوسونه کړم دلبره
را په غاړه دِ روزګار دَ محبّت دے
بې له مینې بله چاره زما نشه زده
بله چاره دِ په مینه کښې خیانت دے
دا روزګار دِ رب مدام زما نصیب کړی
په دارینو د الله تولو لوئې نعمت دے
څهٔ چې وائې پرِ له حده تیر رضا یم
ما منلے ستا دَ مینې عدالت دے
اسمٰعیل دَ مینې بند کښې دیوانه شوم
داسې بنهٔ یم ستا په نیز دا مهارت دے

چې شه بته پوهېږه مه چې نه پوهېږم ستا په قال
هسې به ځان ستړے کړې زړه نه ګيرېږم ستا په جال

داسې جال کښې ګير يمه ناصحه چې نه ئې نه وينې
تا سره په خوا کښې دے خو ډېر ورايه دے ستا له خيال

داچل به در او ښايم که تا راته لږ غوږ کيښود
بيا به تل يادېږې د دلبر په در کښې باکمال

څو پورې چې ګير نه ئې په جال ترهغې چپ اوسه
کله چې بندي شې بيا به تل وايو يؤ بل ته حال

ستا او زما ژبه کښې ډېر فرق دے څنګ پرې پوهه شم
ستا ژبه ده بې غمئ زما ژبه د فکر بتال

ته د بې غمئ د کتاب شپه ورځ ګردانونه کړې
زړه مدام يادومه د جانان رخسار او خط وخال

دا زما سبق دے هميشه به ئې زړه وايمه
دومره نادان نه يم اسمٰعيل چې هېر ؤم جمال

د جمال د پړ رڼه عجيبه جام دے
هم ئې ښکېل غوارمه هم مالره دام دے

که هر څو مره مې که نوش هغې ډک دے
هېڅ کمے پکښې رانغے نا تمام دے

نوش کولو سره ئې لا بنهٔ ترږے کیږم
پرِ کسکر شومه خوښمه ئې ناکام دے

زۀ به چرې په دې جام بانډِ موړ نۀ شم
ډیر حیران یمه افطار کښې مې صیام دے

انتظار زۀ دَ سحر آذان ته کاندم
دې صیام کښې له پخوا په ماماښام دے

زۀ جانان دَ غم ماښام کښې تل میلمه کړم
په سکوت ئې راله ایښے هر اندام دے

ما ترِ داسې میلمستیا په خپله غوښتې
ډیر شاکر یم اسمٰعیل چې دامې کام دے





ریز مریز دَ بیلتانهٔ په آسیا شوم
نندار چې دَ عشق له بامه دَ اشنا شوم

دَ زینت په اور سوزیږمه لوګے شوم
خپلو اوښکو نه په یار پسې دریا شوم

دَ یادونو طوفانونو تول چپې کړم
ځکه دار نکه په شور او واویلا شوم

دَ عالمو په خیال ګُنګ کړمه دې مینې
دَ اشنا په خیال فصیح او بنهٔ دانا شوم

پښتو وایم پښتانهٔ پرِنهٔ پوهیږی
په وطن کښې بې وطنه شوم تباه شوم

دَ خبرو مې څوک نشته چاته ئې اوکړم
قیل وقال پسې تول عمر په شړا شوم
هیڅ خبر له خندا نهٔ یمه چې څنګ دهٔ
دَ عالموله خندا نه هم نا اشنا شوم
له خندا نه به ئې څنګه زهٔ خبر یږم
چې دَ مینې په دستور ترې نه جُدا شوم
اسمٰعیل دَ دستور شپه کښې انتظار کړم
شپه زما اؤ زهٔ دَ شپې په تماشا شوم





دَ بُلبل په شان ناره زما عادت دے
پرهرې مې زړهٔ په تیغ دَ محبّت دے
دَ دلبر دَ تور وسترګو ارمان یم
دَ ژوندون هره ګړئ په ما قیامت دے
دَ ممتاز تصویر مې څخ ته نیو لے
هر ساعت راته ګویا ډیر په حکمت دے
په ادا دَ زیبا دړ ادا راپسائی
په ما کړے خپل مولیٰ دا عنایت دے
له کتابه تل دَ عدل بیان کاندی
قبول کړے مې دَ مینې عدالت دے
عدالت کښې ئې بندی کړے یم تر عُمره
همیشه مې دَ دهٔ خوا کښې سکونت دے

اسمٰعیل به بله چاره څنګه اوکړم
چې مې چاره همیشه دا سماعت دے



نهٔ دایم نهٔ دایم سِندایم
نِدا دَ آقایم په دې مشغولا یم
څنګه اووایم چې دایم چې سنهٔ یم
چې نهٔ یم نو بنهٔ یم فنا کښې فنا یم
دایؤخوزهٔ نهٔ یم دا بل زهٔ پخوا ووم
معلوم یم فنا کښې زهٔ دایم زهٔ دایم
دے زهٔ اوزهٔ دے یم بیل نهٔ یم یؤځائے یم
دے دے اوزهٔ زهٔ یم وفا کښې وفا یم
اعلیٰ ډیر اعلیٰ دے زهٔ ئې ځان کښې اعلیٰ کړم
اعلیٰ کښې اعلیٰ یم اعلیٰ نه آدنیٰ یم
هم دهٔ کښې فنا یم هم دهٔ کښې جُدا یم
له څهٔ نا اشنا یم له څهٔ نه اشنا یم
نا اشنا یم له ډیره اشنا یم له لبزه
په لبز باندِ هم زهٔ خو واره فدا یم
ځان به فدا کړم نا اشنا پسې ډیر واړ
زهٔ اسمٰعیل هم داغوارم ګدا یم



چې روان څوک په صراطِ مستقیم شي
عاقبت به د لربا سره مقیم شي

ډېر حیران له ورایه ګوري دلربا ته
په دا لاره دَ ده مَل بادِ نسیم شي

دَ فهیم ګفتار له ورایه څخه اوري
دې ګفتار بانډ دیدن لره فهیم شي

تل دَ مینې کډا کاندي په دا لاره
په دا چاره هم دې چارې ته تسلیم شي

سر و مال ئې همیشه له یاره زار وي
دَ خپل یار په محبّت ئې زړهٔ سلیم شي

دَ اُلفت په اور کښې دروي دَ یار در ته
بیا پرې اور لکه پښان دَ ابراهیم شي

اسمٰعیل هم په دې اور کښې سوخته دروم
داسې تلۀ به مې قبول دَ خپل کریم شي



چې سینه مې شوه رحل زړهٔ مې کتاب شهٔ
صبح و شام راته ګویا لکه رباب شهٔ

دَ سوز ساز راته غوبږې ورته ژړام
ځان مې ځان لره په یار پسې قصاب شهٔ

د زبیر کوصحرا کښې تول عمر اوسیږم
په ما قحط د ساقي له جام آب شه
جام يې ډک راته نیوے ست يې نه کړي
ست به اوکړي که زبان مي لاجواب شه
یو یو څاڅکے ترې زما خُلې ته رالویږي
ساقي ما سره دُنیا کښې په حساب شه
د حساب په څښلو لا بنه تږے کیږم
په دریاب د تندې زړه زما غرقاب شه
اسمٰعیل هم داسې تږے دلته بنه یم
ډیر عالَم داسې له دې جام سیراب شه





په شفا يسې کرځیږم شفا کوم ده
ډیر ږنځور یمه د لبو مُسکا کوم ده
چې د حُسن د وطن حکومت کاندي
دا بې مثله ناتمامه رڼا کوم ده
چې د زیب د ویش مالک دے هغه کوم
کدا کریم ماله بله کدا کوم ده
د روښان په مخ شیدا یم ځکه ژاړم
په دُنیا له دې نه لویه سزا کوم ده
په زړګي کښې مې د هجر خنجر ښخ دے
د دیدن د بارانونو فضا کوم ده

له جاوید ه جاوید وصل جاوید غواړم
د جاوید وصل ما ترې د اشنا کوم ده
د اشنا سیمه لټول زما روزګار دے
اسمٰعیل له بله داسې ادا کوم ده



د نار ښار کښې مې د دار په سر روزګار دے
دا را ښودے ما ته خپله شهر یار دے
له دې کاره به زه چرې اوږ ګار نه شم
که ګریوان پرې زما هر څو تار په تار دے
د حاضر سمیع بصیر په نګرانۍ کښې
خپل جانان ته زما هر وخت انتظار دے
انتظار دُنیا کښې پټه خزانه ده
منتظر ځکه له خلقو پټ مالدار دے
د آهونو په محل کښې تل اوسیږم
په ما شوے د زینت د توري وار دے
له دې واره په څو واره زه شهید شوم
دا منشور غفور جوړ کړے پُر اسرار دے
اسمٰعیله په دې نه هُم پُر اسرار شه
د اسرار په باغیچه کښې کورے یار دے

دَ حاضر تلاش کښې کړځم پریشان زهٔ
لوړ په لوړ پسې ګوُم میزان زهٔ

په کاش کاش لمانه لاش تلاش کښې جوړشهٔ
مقبره کښې یم دفن دَ ارمان زهٔ

نش ګوګل زهٔ دَ صاحب په اذن درومم
رهنما لرمه دیر عالیشان زهٔ

عالیشان دَ عالی شان شان ماته ښائی
لیدے نهٔ شم همه شان دَ سلطان زهٔ

دَ برداشت شمشیر مې هر وخت سینه تراشي
دَ شاباش به ندامست یم هرآن زهٔ

همیشه مې دې ندا ته غوږ ایښودے
دَ ندا دَ کشش نهٔ لرم توان زهٔ

دَ کوشش په ناتمامه بیابان کښې
اسمٰعیله په څوواړ شوم قربان زهٔ



چې قاصد مې دَ قائد پیغام بیان کهٔ
په ماهسې نهم خزان ووبنهٔ ئې خزان کهٔ

په موضوع دَ انتظارئ بیان اوکهٔ
راپه غاړه ئې دَ غمونو ډک داستان کهٔ

دَ فرقت مقراض ئې زړهٔ مالره غوڅ کۀ
ورکډارئې په لمبوکښې دَ هجران کۀ

عمر قيدمې دَ قاسم په خوښه خوښ کۀ
په قربت پسې ئې مدام زما ارمان کۀ

دَ شفقت اورچې مې تن نه شفيق ورکۀ
په تحقيق دَ حقيقت مې بنه پريشان کۀ

پريشانوَل ئې قدير ماله مقرر کۀ
دَ قرار په مينه ئې اور په ماجهان کۀ

اسمٰعيل دَ قرار مينې ناقرار کۀ
ترمو اوښکو ورله وروست ځکه ګريوان کۀ





شاه په ځان پسې ګدا کړم تنها کړم
پسرلے غوا ړم خزان کښې رسوا کړم

دَ آهونو په لوګو باندِ تنګ تور شوم
دَ هجران دريا ب کښې ډوب يم تباه کړم

دَ فراق زولنوپښې کړې زما ماتې
په ډير زور[1] دَ الفت په امسا کړم

دَ يادونو په چړو زهٔ ځان وهمه
رنګ په وينو په طلب دَ اشنا کړم

جان نثار خطاب ئې راکهٔ په فرقت کښې
په دې شپه کښې به نثار ترصبا کړم

[1] زور، کړاؤ

صبا ورون پورې به ډېر وار ځان نثار کړم
زه به داسې په رضا د خوبا کړم
اسمٰعیل به د خوبا مینه سپر نسېږدم
په سکروټو به مدام د وفا کړم



له بلبله مې بلل د مالیار زده که
سوزیده مې د بیلتون په انکار زده که
له عالمو نه پټ تله کړمه دلبرله
ما د غم په لاره داسې رفتار زده که
پرنالې به مې د سترګو اوچې نه شي
ما په مینه ګښې د هجر روزګار زده که
د بیلتون له غرو پناه یارپسې درومم
ما ئې وصل لره دلته سنګار زده که
د جلیل جلال جل بل کړم ځکه ژاړم
بې خودۍ ګښې مې د مینې خمار زده که
اسمٰعیل به له خماره صبر نه شم
عزرائیل ته مې په دې انتظار زده که

زۀ دَ حُسن په نمر سوزم دَ حَسین لید و دَ پاره
ګران ژوندون تیروم دُنیا کښې دَ عقبٰی مزو دَ پاره

سوزیدۀ مې عَبث نۀ دی خو ډیر ګران دی ځکه ژاړم
سوزیدۀ زما میراث دے دَ دیدن او بو دَ پاره

دَ سلګو په سبب ورو ورو نزدې کیږمه دلبر ته
دا سبب مینې را ښودے په پوښتو دَ پاره

دَ خزان دَ بیابان داخر ریګونه مې ډیر خوښ دی
په آهوئې په ځان نولم پسرلی وږمو دَ پاره

دَ حاکم حکمت نه ګورم حیرانتیا ده بل څۀ نۀ دی
دَ حیرت دریاب کښې اوسم دَ حیرت چپو دَ پاره

په دریاب کښې به لټون کړم جواهر بل ځائے کښې نشته
زۀ خو دلته جوهري شوم شهنشاه له تلو دَ پاره

چې ګدا شومه نو شاه شوم چې ګدا نۀ ووم هیڅ نۀ ووم
ګدائی مې کړه قبوله بادشاهۍ خستو دَ پاره

اسمٰعیل په ګدا کاندم نو رمې هر څۀ له دې زار کۀ
پتنګ ځان په لمبو سیزی هم دَ دې لمبو دَ پاره

---

۲۵۵

په تحقیق دَ حقیقت دَ غم داستان شوم
په دې کړو دَ یار په حکم بندیوان شوم

په ګردن مې دَغم بوج پروت دے څځۀ اوکړم
همیشه په رهائۀ پسې روان شوم
په بیان دَ حقیقت مې پابندي ده
پېټ په زړۀ کښې ځکه ځان نه په بیان شوم
کلک برغوے ئې زما په خُلۀ ایښودے
دَ رون پوخ لکه دَ دیګ زۀ په نیران شوم
رهائۍ پورې به زۀ داسې پخیږم
چې مئین په ښکلي مخ زۀ دَ جانان شوم
کوهِ طور چې ځنګ دې اور دے سوزولے
داسې زۀ هم یئ یا دکار په دې جهان شوم
اسمٰعیل به یادګار ولې نۀ یم خلقه
چې له اوره شومه اور ځکه عیان شوم





دَ موجود معبود لمتون کښې ګرځنده یم
بل مقصود مې په زړۀ نشته فریفته یم
په رمنده سینه ځم دَ مقصود درته
زۀ دَ اوښکو په دریاب کښې سفینه یم
سرتاپا یه له ګوهر ویم بار شوے
څوک خبر نۀ دی لمانه خزانه یم
دَ یادونو طوفانونه مې جائېداد دے
زۀ دَ هجر دَ وارونو اموخته یم

له فریاده مې فلاح چیرته او نهٔ مونده
دَ فلاح په لوړی ځم دَ غم قیصه یم

دَ موجونو په څپېړو مدام لګم
هسې ښکاره مه ژوندے خوزهٔ مړه یم

مرده ځان مې هم پرې نبنو دهٔ موجونو
اسمٰعیل به ترساحله نشانه یم





دَ شفیق په طریق ځمه شفقت کوم
دَ صدیق رفیق بې مثله زینت کوم

دَ لیاقت دَ لید وهر ساعت مشتاق یم
په فرقت کښې قیامګاه دَ قربت کوم

په دقیق نظر کاتهٔ زما قسمت دے
په دقیق طریق زیبا حقیقت کوم

له بعیده مې قریب قیادت کاندی
دې صحبت کښې دا صاحب دَ طاقت کوم

چې مې تن مدام دَ غم په آره ریبی
دا حسین شمس وقمر دَ راحت کوم

چې یوه وار مې بِسۡمِ اللّٰه په مینه اوکړه
ترمرګی پورې به دا سعادت کوم

اسمٰعیل به په دې کړو سعادتمند شم
لوړ په لوړ ځکه دَ مینې دولت کوم

دَ لطیف دَ الفت لُطف خفی سیزل کړي
په څو واره له عالمه پټ وژل کړي
اسفندیار خو داسې نار دے تل تازه دے
مقناطیس غوندې دا نار ځان ته راخکل کړي
عاشقان ئې کلک په ځان پورې نیولي
هم په دغه پسې مدام له ژړیدل کړي
دَ نار کار ته فدایان حیرت زده دي
همیشه دَ فکر تال باندِ ځانګل کړي
دَ وفا په رسی خیژي دائې کار دے
تل دَ یادو په دریا کښې اوسیدل کړي
دَ فرقان تشریح ئې زړه باندِ لیکے شي
په زمان ئې بیا عالمونه ویل کړي
اسمٰعیل ته دَ شعر فن دړوف ور ښائې
په ډیر شوق سره ئې ځکه دے لیکل کړي



په خنجر دَ مینې ځان دلته دردناک کړه
له کاواکو نه مدام له څله په واک کړه
لکه هاچې له ویښتو څخه ده پاکه
زړه دې داسې له حسده څخه پاک کړه

کمینوُ نه مدام له ډېره ګانده
دا تعلق دي ګوره زړ سپر دِ خاک کړه

خامخا اوکړه یارې دَ مېړه ویانو
خپلې مینې له پیدا دَ مینې چاک کړه

تل دَ مینې سودا اوکړه بل څهٔ مهٔ کړه
روح اوُتن دواړه په دې اور باندِ راک کړه

دَ اشنا دَ لاس نګین جبین له ئې خال شه
مینه ناک لره ته هم ځان مینه ناک کړه

اسمٰعیل دَ یار دَ سپین جبین شین خال شوم
ځان زما په شان دَ صاحبِ لولاک کړه





سیاحت له دَ رئیس دره ته روان یم
زړهٔ زپلے طوفانونو دَ هجران یم

خارستان کښې ګلستان لره ورځمه
ډیر زخمي یم دَ مرهمو په ارمان یم

هر ساعت نور زخمي کیږمه ناتوان شوم
دَ طبیب په لور کاتهٔ کړمه پریشان یم

خارستان کښې مې دریاب دَ اوښکو جوړ کهٔ
خپلو اوښکو کښې ډوب شوے یم حیران یم

دَ خندا چل به مې څنګ زده شي دې حال کښې
خپل ګریوان له خپلو ستر ګو نه باران یم

له سينې نه مې دَ غم سمندر جوړ دے
آئينه ځان لره زۀ دَ کهکشان يم
دَ سيّاح سيّاح به کله شم خدايه
اسمٰعيل به څو په دې بند بنديوان يم



تمام عمر به ستون نۀ شم ستاله دره
که هر څومره پرهر جلے يم دلبره
دَ اقبال په زنځير ونو يم ترے
ستا ديدن لره درځم دَ حُسن نمره
ما دَ هجر په قُتکانړ وعشق ړاکاګ
دَ تن غوښې مې توکې لختِ جګره
ستا جناب کښې به زخمی زخمی حاضر شم
او مې نۀ باسې طبيبه له نظره
دَ بيلتون له عظيم درده فريادی يم
په فرياد کښې فن دَ مينې زده کوم غوره
ستا دَ مينې غوره فن دَ فکر تال کړم
څنګ به ځانګم په بل تال بې له اختره
اسمٰعيله چې هم داسې روژه دار ئې
دَ اختر مياشت به په تاکاندې له بره

په طبیب پسې رنځور یم طبیب ما لره دوا ده
رنځور کړے یم دۀ خپله عجیبه دَ دۀ وفا ده

دَ وفا هم دا قاعده ده هیڅ و ئیلے پکښې نۀ شم
دَ قائد رضا کومه په رضائې زما رضا ده

همیشه به په دُنیا کښې دَ رضا په لمبو سوزم
په زړګی کښې مې ځائے شوې دَ یار مینه له پخوا ده

چې دلبر مې خپل زړګی سره زړګے زما انړول کۀ
زړې حل کړۀ سره دواړۀ ځکه زده مې دا ادا ده

په ادا ادا زده کومه دا ادا ده تا تمامه
ځکه مل هرې سلګۍ سره زما دا هره سا ده

دیوانه به مدام ګرځم چې دیدن دَ اشنا غواړم
خوښه کړې هم دا چاره په ډېر سود ما له اشنا ده

اسمٰعیل په له دې غمه خوشحالی څنګه اوکاندم
رسیدلې مې په برخه دَ هجران لویه صحرا ده



دَ هجران په اغزو ځان سوړے سوړے کړه
تن دِ دلته ګوځنده زړۀ دِ اوړے[۱] کړه

تل په ولو ګرځوه خړ وار دَ مینې
په ځان سود اوکړه زړ پورته داوړے کړه

۱ اوړے : هلته

بې ورې گرځېدهٔ پرېږده تباه کېږي

بېړه او کانده معلوم لوړې بړې کړه

دَ خپل ځان په لمنون اوځه دې صحرا ته

دَ یار مینې له مدام ځان تور یالے کړه

دَ عشق اور مدام په ځان باندِ بل کانده

څو عاشق نهٔ ئې سرے نهٔ ئې ځان سرے کړه

له بلبله دَ هجران ترانې زده کړه

دَ عالمو په نظر ځان لیونے کړه

تش په خُلهٔ همیشه ځان پښتورے بولې

اسمٰعیل غونډِ رښتیا ځان پښتورے کړه





دَ ګلاب په غوټے ځان له رنګین کړه

په دې چاره ځان نزدو دَ ګل ورین کړه

چې په وینو دِ لمن سره کړې نهٔ وی

دَ یار در لره تلهٔ ګران دی ځان غمګین کړه

بیابان کښې مدام اُرغږه په غنو

سند ځان لره وصول دَ آفرین کړه

تل دَ اوښکو جرګې بیایه دَ یار در ته

دا جرګې دی ستا قبولې بنهٔ یقین کړه

ستا تر اوسه ګریوان ولې ریځې نهٔ دے

خپل چشمان دِ خپل ګریوان ته تماشبین کړه

ښتک ځوان مرد دې چې هر څه نه حیران نه دي
هر ساعت له حیرانتیا په روی زمین کړه

اسمعیل خو حیرانتیا ته ډیر حیران دے
ربه ته دې دا حیرت نور هم برین کړه





بنه شوه چې مې تا ته انتظار اوموندهٔ
دا مې په دنیا کښې لوئ روزګار اوموندهٔ

دهٔ پسې له ډیرې مودې راسې ګرځېدمه زهٔ
ما خپلو ورتولو له انکار اوموندهٔ

زما په ورتولو خوشحالیږې بنه پوهیږمه
ستا خوشحالولو له مې دار اوموندهٔ

زهٔ دَ دار په سر باندې ورتیرمه هم نالهوم
ما خپلو چشمانو له سنګسار اوموندهٔ

ښکلیه ورته اوګوره چې حال دَ اسمعیل څهٔ دے
ستا په عاشقۍ کښې ئې خمار اوموندهٔ





دَ کتمیرو ښکارې راشه خپله ښکار شه
زړه داخل دَ خوبرویانو په دربار شه

ے کتمیرو : ګوګوشتکے

په چړو دَ خوبرويانو ځان حلال کړه
کهٔ ژوندے ئې په مردګانو باندِ شمار شه
تهٔ له کومې ئې راغلے کوم خوا درومې
په دې پوهه شه نو بيا بنهٔ په رفتار شه
هسې نهٔ ئې تهٔ راغلے دې دُنيا ته
له قانونه بنهٔ خبر دَ شهر يار شه
دَ الفت چاره کړه خپله بل څهٔ مهٔ کړه
په دې چاره مړ نے ليل النهار شه
هر څهٔ مينې له پاک رب دې پيدا کړي
له عالمو نه په دې پسې کنار شه
بې له مينې ئې څهٔ نهٔ زده په دُنيا کښې
اسمٰعيل غوندې په دې دولت مالدار شه





تل له شمعې په چورلک پتنګان څهٔ شوهٔ
په چمن کښې هغه ښکلی ګلان څهٔ شوهٔ
چې دَ زلفو په ګوړ سوړی ئې دمه اوکړه
په لباس دَ ګدائۍ کښې شاهان څهٔ شوهٔ
اژدها دَ بيلت نهٔ وو لوار تير کړې
ډير چمتو هغه زمونږ بزرګان څهٔ شوهٔ
ويسه ويسه ډير څهٔ ويسه تش لاړ نهٔ شې
ستا په مثل ناخبر احمقان څهٔ شوهٔ

دُنیا ځائے دَ کروندې دے ډیره اوکړه
ډیرې زختې[1] کروندې له شوقیان ځهٔ شوهٔ
چې يې زړونه دَ بیلتون په تیکه رنګ وو
پسې ژاړم په خوار شهیدان ځهٔ شوهٔ
اسمٰعیله پسې دړومه ګذار نهٔ شي
دړنه لاړ نهٔ شي یاران دَ کاروان ځهٔ شوهٔ





ورځې شپې په دُنیا هسې ستیرَ وې
چې دلبر به پکښې کله یادَ وې
دَ یاد تیلو کښې تل ځان پکوړه ګانده
ایسې راسې ترې ځان ولې پټوې
خو دَ مینې دې منګور خوړے نهٔ ئې
ځان بې ځایه هسې ولې کړوې
بدړکه مدام دَ مینې ځان ټخه کړه
ولې لوښے تهٔ حسد له ویرکوې
دې ظالم عالم تباه کهٔ ځان کړه پوهه
په پېچوړې[2] عبث ځان ستړے کوې
مړنے شه دَ اُلفت تلاش کښې اوځه
خونه ولې دَ هجران ویرانوې

---

[1] زختې: ډیره زیاته [2] پېچومې: برمخنګ (چراټ)

اسمٰعیله هجران لویه خزانه ده
باغبانی به په هجران پسې کوي



یو نمر زما په زړه کښې دے بل نمر دے په آسمان
دَ زړه په نمر خوړېږمه ناخبریم له جهان
اشعار چې مې بړاس ته جوړېږي ګا خلق حیران وو
حیران ورته زړه خپله یم بړاس مې دے افغان
هم جنګ دے او هم پلن دے تل ئې هم نه معلومېږي
بس نښې ورته ګورم زړه ئې ډېر کړمه ناتوان
دَ چا کوڅه کښې ګرځم هیڅ له ځانه خبر نه یم
یو واری چې زړه راغلمه کوڅې ته دَ جانان
په دې زړه بنه پوهېږمه چې سنون به چری نه شم
که خوری مې دې کوڅه کښې همیشه لړمانان
بنه شوه چې مې خوړې چې دَ مو لوله دَ مکر راشي
دمکر مې نښې ته لری زما خوا ته امکان
چې راشي اسمٰعیله تړنه ته هم دمکری زده کړه
چې دغسې بیا ته هم دَ موی ډېر مریضان

ما چې ځان په دجله تا پسې ګذار کړ
دا مې تا پسې له خلقو ځان کنار کړ

چې مې څو غرقابوې ته مې یادېږې
ستا هجران مې زړه مدام لړه داکار کړ

د دیدن خواږه دې هر وخت له رب غواړم
که دې زړه زما په دې دار وقرار کړ

په غوپو غوپو مې زړه تا پسې اووت
زړه مې ډېر واره ځان تا پسې سنګار کړ

نور هم ځان سنګاره وې کله صبرېږې
یاره تا پسې ئې ځان ګل د انار کړ

غوپ ئې ځان سره اوړمه ستا درګاه ته
که منظور دې دا بې څوکه طمعه دار کړ

اسمٰعیل به همه عمر طمعه دار یم
څکه جوړ مې دا خواږه خواږه اشعار کړ

---

د چیختن[1] په رضا ولې رضا نه ئې
په سرو ګلو پسې ولې بورا نه ئې

بس مدام له په شوکره[2] پسې کړځې
د چمن په اغزو ته په غوغا نه ئې

[1] چیختن: مالک [2] شوکره: ښکاري مرغه

کلک ملا بند دَ بیلتانهٔ اوتره ژړ که
جنګ دَ مینې ته لا ولې پخلا نهٔ یې

دَ زعفران غوندې په مینه ځان زیړ کانده
اوچه دَمره په جانان پسې لا نهٔ یې

چې هر رګ دې په بیا بیا نهٔوې سنا سیلے
تا اشنا اشنا نهٔ بولی اشنا نهٔ یې

بې له مینې تا اشنا اشنا نهٔ بولی
لا تراوسه ولې مردِ خدا نهٔ یې

اسمٰعیل وائی کهٔ زړ مردِ خدا شوې
بیا به داسې تهٔ سپیرهٔ په دُنیا نهٔ یې





چې ځونه دِ لکه زیړه دَ زعفران شی
زړهٔ به ستا عمر له خونه دَ باغبان شی

ګرندے شه ځان زعفران کړه بل څهٔ مهٔ کړه
لاس به مروړې عزرائیل کهٔ در روان شی

دَ سینې ډیوډۍ مدام له سانته پاکه
داکړه پاکه چې دِ پاک مدام زبان شی

بر برکت به په دار ینوځهٔ رنګ موم
په هر حرف در نه خفه شیرِ یزدان شی

له مالیاره مالیاری زده کړه دنیا کښې
په خندا چې در نه هر ساعت ځلان شی

بندوبست د عمر وسئ ځان لره اوکړه
چي ګلان دِ تل په غاړه اویزان شي
اسمٰعیل غاړه کښې ډیر ګلان اچولي
ملاقي به ډ رنګ ساعت له د جانان شي





ما د عشق د اور لمبي سیزي مدام
تیښت ترنهٔ کړم نهٔ یم زهٔ نمکحرام
زهٔ له عشقه زده کړه کاندم د سیزلو
منتظر یم خپل اشنا ته لاس په نام
د سیزلو زده کړه ځان باندي زده کاندم
زر خیزئ نه مدام شمارمه ایّام
یوه ورځ به زهٔ زر خیز شمه له عشقه
اوریدلے مي له یاره دے پیغام
هغه وخت پوري به زهٔ داسي سوزیږم
په سر سترګو مي منلے دے دا کام
زهٔ کنهیر تل د شیرین د یاره خوږمه
خلقه نهٔ کوم بل کار سحر ماښام
اسمٰعیله د دیدن سحر به راشي
پس له هغې به دِ بنهٔ کاندي انجام





ځله په اغزو دِ ډير زخمي شومه
ستا په بيلتانهٔ ستړي ستړي شومه

اوږي مې زبيرکي تپوس مې نهٔ کوي
هسې بيابان کښې فريادي شومه

ستا د لوري څخه اړوے نهٔ شم زړهٔ
ستا په لور کانهٔ سره پټي شومه

زړهٔ کښې مې د مينې اور پخوا نه دے
راشه راشه راشه خماري شومه

ستا د ميکدې شراب مدام غواړم
ستا شوم چې لټانه شرابي شومه

زړهٔ مې د غلبيل په څير سوري شهٔ ټول
بل خوا ترِ ليدے شي جوهري شومه

تا پسې به ټول عمر ژړيږمه
ياره اسمٰعيل هم ستا سوالي شومه





زهٔ د خوږ دلبر په خوږ نوم ئۓ مړيږم
چې ئې اخلمه نو لا بنهٔ اوګے ګيږم
د ديدن ور وغتون لټومه پسې ګرځم
بې ديد نه چرې هم زهٔ نهٔ رغيږم

په یادونو مې مدام زړه کې خوږیږي
بیلتانه کښې بیلتانه نه ډیر ویریږم

په هیزوې اموخته یمه او نشته
خورم هکوي پسې تول عمر کړیږم

د هجران ماله مې تن باندې تیریږي
ترې نه مخکښې په هجران زړه یوې کیږم

للمه مزکه دې هجران کړه لما جوړه
په باران به د دیدن زړه زړ غوښیږم

اسمعیل تل د ویرځې محتاج اوسم
ورته وایمه باران اوکړه سوزیږم





ستا د مینې په دریاب کښې مې شه عمر
اوړید وته د خطاب کښې مې شه عمر

تلوسونه چرې ما خلاصې اونه موند
خپلو اوښکو د سیلاب کښې مې شه عمر

له زیبا مخه دِ مخ جاړ ایستنے نه شم
چې یو وارې ستا جناب کښې مې شه عمر

زما عمر به تول ستا جناب کښې تیرشي
ډیر عظیم ګل رنګ ثواب کښې مې شه عمر

د ثواب په آس ثواب پسې سور کړم
ډسک له مزکې په آفتاب کښې مې شه عمر

الے کشفش صیوه

بې لتانه په زړه هسې عمر څه کړم

پټ له خلقو په نقاب کښې مې شه عمر

ستا يارئ له اسمٰعيل دَ عمر غوښته

کوم هر وخت په دې باب کښې مې شه عمر



دَ احسن حُسن رښتونې خوښ دے

دَ زړه وينې څښى په دې کښې مړه دے

دَ زړه وينو لره چاق رب پيدا کړے

په عالمو کښې له ټولو پخوانے دے

سپين دندان ئې په زړه کې راله خخ کړى

داسې نه چې اموخته پرې ننے دے

له پخوا راسې ئې تول دے په خُله کړے

خپلې چغې دَ زړه اوړمه نرے دے

هسې نه چې ترې خُلهٔ لوګړې بيا په مړشم

زما زړه خوهم دَ دهٔ خلهٔ کښې ژوندے دے

خبر نهٔ يمه چې څهٔ راباندې کاندى

په دې حال کښې مې بيا هم زړه سيلانے دے

په خبرو ئې تاسو نهٔ پوهيږئ خلقه

ځکه وائے اسمٰعيل جوړ ليونے دے

زما ستر کو دریاب جوړ کړ لوپه مزکه
خبر نهٔ یم چې جانان راسره څهٔ که

شین یاقوت مې له زړه کې څخه جوړ شوے
جوهري نه ورایه اوسم ژاړم ځکه

په نارو کښې جوهري ځکه تل ستا یم
د هجران وارو نه صبر ماته نهٔ که

په ځغنه د هجران سوړے سوړے شوم
هم ګویا یم چې جانان مې داسې بنهٔ که

مهر دِل زړهٔ مهر دِل کړم مهر غواړم
دنیا مانه مهر دِل پسې ده وړ که

د توکل په سوړلئ سور یم پسې کړ ځم
هم وښلے یمه دهٔ پسې له ډمه که

اسمٰعیل په رښتیا مینه د جانان کړم
تیبښته نهٔ کړم د هجران له هره شر که



هر قدم مې په قدم د مقدّم دے
زړهٔ مې ځکه پدا کار قلم قلم دے

مقدّم مې لکوی په زړهٔ چونکارې
ورته ژاړی صبح وشام زما قسم دے

یو گذار سره يې پر زوړے له پخوا دے
په ما جوړ ځکه په دغه پسې ماتم دے

بې گذاره يې تر اوسه پريښے نه دے
هر گذار يې ما دَ ياره زيروبم دے

بريخ مې هر وخت له سينې خيژي عالمه
خاموخا به داسې کيږي غنچه فم دے

غنچه فم پسې به تول عمر ژړيږم
له اغه له مې په برخه داسې غم دے

اسمٰعيل به په داغم باندې ترهغه
يم ککړ خلقه هم داسې څو مې دم دے



اے ديياره هغه ښکلے شيرين څۀ شۀ
دَ خوبانو شهنشاه ما جبين څۀ شۀ

پسې گرځمه ډير ستړے شوم له حده
ما دَ ياره بې مثاله تسکين څۀ شۀ

څۀ شۀ څۀ شۀ بې ديدنه پاتې نۀ شم
په عالم کښې محترم نازنين څۀ شۀ

دَ ماتم تيغ مې دَ زړۀ په سرکښې خخ کړے
دې تيرې لره مې هغه تک سپين څۀ شۀ

دَ سپين سپين په ندا هر ساعت گويا يم
مرمه مرمه خنده رويه برين څۀ شۀ

زۀ به څو داسې جدا کړم له يـاره
پخته داد ماله په دې روئې زمين څۀ شـۀ
اسمٰعيله تۀ به څۀ کړې چې يار نۀ وي
هر ساعت له دِ راحت اوّلين څۀ شـۀ





اندرون د ړله هجران نۀ دے سيزے
بيابان دې لا دَ غم نۀ دے ليدے
دَ دُنيا په غم ککړه بس کړه راشه
زړۀ دې ولې پدې غم نۀ دے خوړے
دَ فرقت پانه په زړۀ کښې ښخه کانده
لا تراوسه پوره هير دے ستا بناغلے
دَ بناغلى په لور د ړومه بل خوامۀ زه
تن دې ولې بيلتانۀ نۀ دے زپلے
همه ځان دَ بيلتانۀ په خلۀ کښې ورکړه
احمقانو ځان دې ځلې نه دے ساتلے
اسمٰعيل دې بيلتانۀ زړې زړې کۀ
ترمرګى به ټې وى ځان ورته نيوے



لہ تا یارہ پسې لا خواب تبنلے نۀ دے
بیلتانۀ دِلا زړګے داغلے نۀ دے
لہ چشمانو دِ ابشارہ پہ مزکہ تل کړہ
تا دَ مینې پہ اور ځان سیزے نۀ دے
ولې داسې لہ خوبرویہ وړایہ کړې
پہ الفت دِ ولې ځان خوږ سے نۀ دے
دَ دُنیا پہ مینہ مستنہ مستي پرېږدہ
پہ رښتیا دِلا جانان لید سے نۀ دے
لہ خپل ځانہ دَ جانان پہ تکل اوځہ
پہ جانان پسې دِ ځان وستلے نۀ دے
چې دِ ځان وژلے نۀ وی دا مې واوړہ
دَ یارہ ښنګ کښې دِلا ځائے موندے نۀ دے
اسمٰعیل دَ یارہ لہ ښنګہ نارې کاندم
راشہ راشہ یارہ مې ښوک شړلے نۀ دے



دَ هجران پہ قینچی غُس دَ زړۀ پہ سر شوم
پہ خوبانو پسې ډیر وارہ خاکستر شوم
بې لہ غمہ مې څۀ او نۀ موندۀ دُنیا کښې
دَ غم ډاکہ کښې راحت پسې زۀ سر شوم

تماشه دَ خپل ریخي ریخي ګریوان کړم
په دلبر پسې زهٔ داسې قلندر شوم

په زړګی کښې مې تول نول دے بل څهٔ نشته
زهٔ مدام لره دَ دې نُول سوداګر شوم

زهٔ به څو داسې اوسیږم بې دیده نه
زهٔ دَ هجر نر کښې حل شوم خپله نر شوم

زهٔ به هله رایهږ شم چې سحر شي
بنهٔ پوهیږ مه ترهغې دې په در شوم

اسمٰعیل به دَ سحر په طمعه ګړځم
تر سحره دَ بیلتون دَ شپې نوکر شوم





زهٔ اغز نو باغیچو نه ویره نهٔ کړم
دَ فرقت دې سرو لمبو نه ویره نهٔ کړم

دَ ژوندون په هر ساعت کښې دلبر ستایم
دَ دریاب له دې چپو نه ویره نهٔ کړم

یاد دَ یار کښې په څلکو څلکو ژړیږم
زهٔ مدام لره څلکو نه ویره نهٔ کړم

ما جهاد دے شروع کړے له پخوانه
خپلو چارو پخوانو نه ویره نهٔ کړم

په څو واره زهٔ شهید شومه جهاد کښې
زهٔ له غشو اوُچو نه ویره نهٔ کړم

په چړو زړه ځان وهمه یار د پاره
ځکه داسې حادثو نه ویره نهٔ کړم
اسمٰعیل له حادثو څخه بلد یم
رقیبو له شوګیرو نه ویره نهٔ کړم



آوازونه مې یار نهٔ اورې بې مجال شوم
زهٔ مدام لره د یار عشو ته ډال شوم
د قسمت په بند بندی یم په دُنیا کښې
د غمونو شهنشاه یمه ملال شوم
د بکانړې پښان تور شومه سور نمر ته
په څو واره زهٔ د عشق په تیغ حلال شوم
د هجران په توپک لګمه صحرا کښې
زهٔ په یار پسې مدام په داسې حال شوم
پریمانؑ غانیؑ مې له تن اوځې غلبیل یم
کیر اشنا نه د اشنا د عشق په جال شوم
د زړهٔ خُونه مې ویرانه شوه په چغو
مدام ځان سره په داسې قیل وقال شوم
اسمٰعیل په رښتیا مینه دیوانه شوم
پیدا چاره زخت نزدو د ذوالجلال شوم

---

ؑ پریمان: ډیرؑ غانې: کارتوس

دَ زړهٔ ستنې مې دَ يار په لور کږې دي
دَ تن غوښې مې په اور باندِ ورتې دي
دَ وصال مرهم يې غواړم له خدايه
تول هډونه مې په غم زړې زړې دي

دَ جانان خمار و سترګو ديوانه کړم
رسيدلې مې په برخه شوکېرې دي
په ژړندون دَ خاورو خلے په ما جوړ شهٔ
پرِ ولاړې دَ يار دونو شنې خازې دي
اسمٰعيل به ولې نهٔ ژاړم عالمه
چې ليدلې مې دَ يار دَ مخ جلوې دي



ستا بشر پسې زما زړه کے ملال دے
هيرول يې ما دَ پاره لوئ وبال دے
زما فکر به چار نهٔ اوځي ستا دَ لوري
په نصيب کښې مې هم دا دَ فکر تال دے
له ازله پيدا شوے غمنته ده يم
همه تن مې په دې غم باندِ پائمال دے
ستا په مينه مې روح تن کښې بنديوان شهٔ
اے دلبره ستا راتلو پورې اتال دے

رهائی مې ستا دیدن دے جلوه دار ه
داسې قید راته اوّر وے ذوالجلال دے

پدې قید باندې له حده تیر راغئ یم
ما زده کړے پدې قید کښې لوئ کمال دے

همه زړهٔ مې ستا په یادو داسې شین شهٔ
لکه ښنک چې دِ جبین باندِ شین خال دے

اسمٰعیل نه خو تهٔ ځکه پتنګ وائ
همیشه دِ وړته بل دَ مخ مشال دے





ستا په عشق کښې زهٔ وړ تیر له سر و مال یم
سر ببرے دیوانه یمه ملال یم

میکتون مې له تن جوړ دے ځکه ژاړم
نړیدلے په وړو وړو لکه دیوال یم

له پخوانه دِ دلبره لاړې څارم
جل وهلے یمه ډیر دړته لنیوال یم

ماله هغې خوشحالی لیدلې نهٔ ده
چې دِ کله زهٔ ښکار کړے پدې جال یم

غم زپلے دِ په جال کښې تل ژړیږم
حیران کړے پدې غم کښې ستا جمال یم

اسمٰعیل دِ دیدن غواړم له خدایه
زهٔ په تا باندِ شیدا ډیر بې مثال یم

پہ ما پورې سرې لمبې نۀ دی نوښۀ دی
دا يې پہ ما کړې کانې نۀ دی نوښۀ دی

همه عمر مې تيرېږی سر و لمبو کښې
چارې دا دَ پروانې نۀ دی نوښۀ دی

چې بادونه يې اُوړي له ځانه وړاندې
دا زما دَ تن ايرې نۀ دی نوښۀ دی

چې بيلتون داهسې چارې پہ ما کاندی
پہ لښون دَ ميکدې نۀ دی نوښۀ دی

دَ ساقی دَ جام طلب کښې ديوانه يم
شوکيرې زما پہ دې نۀ دی نوښۀ دی

کۀ ليدۀ دَ اسمٰعيل دَ اير و غوا ړې
پہ گفتار کښې يې پرتې نۀ دی نوښۀ دی



چې راځې پہ کله يار ه نا خبر يم
انتظار کښې دِ ولاړ شام و سحر يم

بيلتانه مې وينې او چې کړې پہ تن کښې
ستی شونے دِ دَ مينې پہ سوو نمر يم

يادوم دِ فرياد و نو کيښې دلبره
لګيدلے پہ زړګی بنۀ برابر يم

لکه پاڼه چې خزان وي رژولې
دا سې ایستې زه له برمه ستا تښریم

حیران ګورم په هر لوري نه پوهیږم
ستا په عشق کښې دېوانه اوبې هنریم

څه له سترګو نه مې اوښکې نه اودریږي
تماشبین د خپلو اوښکو د ښکر یم

تولوم پکښې ستا مینه له پخوانه
اسمٰعیل کچکول په غاړه قلندریم





په همه جهان نورتم دے که په ما
نه پوهیږم چې دا څه دي په دُنیا

زه په داسې لاعلاجه مرض پروت یم
چې علاج مې کوے نه شي حکماء

د بیلتون دلاسه زه زړې زړې یم
چې نرخو به له دلبره یم جُدا

تیرول د عمر ګران دي په دُنیا کښې
ورځ په ورځ مې نور غمونه شي سیوا

په ارمان د یار د در زه په اور سوزم
پدې اور کښې ستې پروت یم له پخوا

اسمٰعیل به په دُنیا کښې په ځان څه کړم
چې د عشق په جوار بې بایللے ما

تا په دې دُنیا کښې زۀ حیران کړم الله ډیر حیران
کړے دِ په ما بانْدِ احسان دے الله لوئې احسان

چرې به پوره نۀ کړم ستا شکر اے کریمه زۀ
زۀ کۀ ادا کومه شب و روز شکریه هر یو آن

ستا دیدار لتا غواړم په روئې دَ محمّد نبیؐ
رابه کړې تۀ خامخا هغه دے ستا ډیر خوږ جانان

تا دَ جانان ځځ نه قربان کړی دی دارین الله
تا دے پیدا کړے په مخلوق کښې ډیر عظیم الشان

ماله دَ حیرت تحفه دَ دۀ په مخ تا را کړله
نۀ مې نور نصیب کړه دا زیبا عظیم درّ و مرجان

ستا دَ پاک حبیب دیدن هم غواړمه لتا نه زۀ
ربه تۀ مې وینې چې ئې مینې کړمه ډیر ناتوان

وومه ناخبر اسمٰعیل ربه تا خبر کړمه
نور مې هم خبر کړه دا مې سوال دے تا ته هر زمان

زړۀ مې دَ غمونو بیابان شۀ کۀ رائې
تا پسې مې سترګو نه باران شۀ کۀ رائې

تا پسې مې سر کښې له ورېځو کړزار خیژی
عقل مې پدې بانْدِ حیران شۀ کۀ رائې

تهٔ به مې هېر نهٔ شې چې ترڅو پورې ژوندے یمه
کوم دے بهار کوم دے اوړ د خزان شهٔ که راځي

ستا په دې یارۍ کښې مې تن ورېت شولو چې څهٔ به کړم
نور هم لا ورتېږي ژوند مې ګران شهٔ که راځې

ستا مینې ته مې کلکه ملا تړلې ده دلداره
جوړ په مالوئې څلے دارمان شهٔ که راځې

ځان څخه ګنړیمه خبرې لما هیرې شوې
تا ته انتظار مې هر زمان شهٔ که راځې

زهٔ اسمٰعیل ستا په لوری کوم بل څهٔ نهٔ کوم
زړهٔ مې ستا لید و پسې ویران شهٔ که راځې



زړهٔ دِ ډک دے له کینې څخه زړهٔ پاک کړه
څلهٔ دِ څکه ده بې واکه څلهٔ په واک کړه

لکه کیشے دِ کینه زړهٔ پورې نښتې
بنهٔ دانائې خیال دِ زر په الفت راک کړه

دالفت په راک دِ زړهٔ زر زر ودان کړه
ترِ نه لرې همه عمر له خاشاک کړه

پښیمان په حسد راوړه حسد ناکه
دور له ځانه دا ملکرے خطرناک کړه

تکبر کښې غرقاب اوسې تباه شویه
کوړے تل له تکبره څخه باک کړه

دیر حیران یمه تراوسه میخوار نهٔ شوې
میخانه پسې دِ ځان سپردِ خاک کړه
اسمٰعیل داسې څوار سپردِ خاک شهٔ
ورشه دګّ نه زده دَ مینې ژوندژواک کړه

---

په تسخیر دَ محبت یمه اووختے
په بې مثله عنایت یمه اووختے
شاه له ځان څخه زهٔ شاه کړمه شاهي کړم
زهٔ په داسې سلطنت یمه اووختے
ما تختې کښې دَ الفت سلطنت کاندم
دَ یادونو په دولت یمه اووختے
سلطنت کښې دَ غمونو سمندر شوم
په هجران کښې په قربت یمه اووختے
سرو لمبو کښې داشاهي زما نصیب ده
زهٔ دَ اور په لوئي طاقت یمه اووختے
حمایت مې دلربا له پخوا کاندی
دَ دلبر په حمایت یمه اووختے
اسمٰعیل یه څنګ حیران نهٔ یم تسخیرته
چې په داسې ذهانت یمه اووختے

---

په وېلو د داستان زړې زړې یم
دست په دست دا بند و بست جانان راکړې

ستغ هجران مې د جانان دې قبول کړې
په انعام کښې ئې راله دا لړزان راکړې

د تودو اوښکو نهر ونه مې بهېږي
د غمونو ئې راله لوئې بیابان راکړې

ډېرې شپې مې په جانان پسې کړې روڼې
ترمرګې پورې ئې دا زندان راکړې

اسمٰعیل په پښتو ژبه شهنشاه یم
ځکه ماله ئې شهنشاه دیوان راکړې

———※———



لوئې داستان کړم په نګار پسې یادونو
شمار کومه بیابان کښې د ړیړونو

ما ریړونه د نګار له رویه سپ کړه
لائې سپومه د دیدن په امیدونو

په سپولو مې اتکې دې زنکدن کښې
ډېر ژړلې یم دلبر پسې آهونو

د آهونو سلسله به مې جارې وی
په ټلکو ټلکو به ځم په تورو غرونو

د جانان درته چې اورسم بیګوارې
بیا به خلاص شمه مدام له له غمونو



دَ دلبر په غشو لړم دَ دلبر خوانه مدام
دَ هجران په تورو شپو کښې مې ناکام دے ناکام
ناکام به ولې نهٔ کوم دلبر مې ډیر حسین دے
معلوم به چرې نهٔ کړی دَ دې حُسن څوک انجام
انجام به ئې څنګک معلوم کړی چې ئې حسن ناتمام دے
څکه پسې ژاړمه عالمه صبح وشام
ژړامې په ژړا باندِ ډیریږی داسې بنهٔ یمه
زړهٔ به مې تور نهٔ شی چرې هم له دې انعام
زړهٔ به مې څنګک تور شی چې مې سپین بشر په زړهٔ کښې دے
هر ساعت ئې اوړمه دَ سرو لمبو پیغام
پیغام مې په زړګی باندِ مدام لیکلے کیږی
زړهٔ مې لوئې تفسیر دے دَ خُوبا په دې نظام
نظام ته په حیرت کښې اسمٰعیل شپه اؤورځ ګورمه
جوړ کړے دے ډیر ښکلے ذوالجلال والاکرام



په نصیب کښې مې دَ اوښکو لوئې بحیر دے
دا لیکلے قدیر ماله په تقدیر دے
دَ قدیر په پرزَونه ډیر مشکور یم
دهٔ جوړ کړے مې له شکر نه خمبیر دے

دَ رضا په بنا ره په کښې مې وير زده کړه
دَ ديدن دَ پاره خوښ زما دا وير دے

له انګره په پلک خوره مه کړه ژړا رونه
روح او تن مې هم خوشحال دے هم زهير دے

دَ بلبل پشان فرياد کوم صبح وشام زه
ترمې اوښکې توېوم دا مې ضمير دے

ترمې اوښکې په مدام زه توېومه
پيدا چاره مې رضا يدره منير دے

په عوض کښې په خندا مدام له ورکړې
اسمٰعيل ته خوبا کړے دا تقدير دے





دَ شاهۍ تاج مې په سر دے په غربت کښې
خپل اشنا راته په سر کړه محبّت کښې

محبّت دُنيا کښې لوے په بادشاهي ده
دا نشه مې ده موندلې په صحبت کښې

په صحبت کښې هم ګدا شومه هم شاه شوم
خلق حيران يمه مدام پدې نعمت کښې

هم شراب يم هم کباب يم شراب غواړم
دَ کنډول څښل مې لا نشته په طاقت کښې

په دنيا دا ټول کنډول څوک څښلے نهٔ شي
پس له مرګه به يې ټول څښمه جنّت کښې

اوس ترې څاڅکې څاڅکې څبنمه بهه نشم
څاڅکې څاڅکې ترنه غوارم صداقت کښې
اسمٰعیل به ترِ نه شنډې لرې نهٔ کړم
بس په مورګه یه ئې لرمه هر ساعت کښې





اے دلبره دَ زړهٔ سره راشه راشه
کورے مرمه منوّره راشه راشه

دَ زیبا مخ دَ لیدو دِ ارمانې یم
خوبرویانو کښې بهتره راشه راشه

ستا یادونه مې په برخه رسیدلی
هم اوّل اؤهم آخره راشه راشه

دَ آهونو بیابان کښې دِ لتومه
خوږه صاحبِ کوثره راشه راشه

ټول جهان په ما تورتم دے نازنینه
معظّمه معطّره راشه راشه

په نصیب کښې مې دَ هجر تورې شپې دې
خوب صورت ګلندره نمره راشه راشه

ستا دَ در غلامې غوارم ځکه ژاړم
نهٔ صبریږم ستاله دره راشه راشه

دَ فریاد دریاب مې ستاپه لورې دروې
اے دَ برو نه ډیربره راشه راشه

اسمٰعیل دَ ستا یارئ کښې مستغرق یم
زما ښکلیه پیغمبره راشه راشه





یار راکړې ماله توره حیدری ده
وینا ځکه مې همه قلندری ده

دَ جلوو په پټ پټانړی کښې غزا کړم
داسې چاره ئې راکړې هنری ده

دَ پنډ وس په شان مې یوځوا بل خوا اولی
دَ سولئ په سر مې دا بهادری ده

دَ سولئ نه به دَ مرګ په ورځې خلاص شم
ترهغې پورې زما دا نوکری ده

چشتي نظامیې په بند بندئ یم
مامنلې دَ خپل پیر ښکلې پیری ده

خپل مرشد په زنځیرونو یم تړلے
دا سزائې راته اوړولې تقدیری ده

دَ تقدیر قدر مدام لره کومه
شاعری مې ځکه دا رنګ له جاری ده

اسمٰعیل دې شاعرئ ته مدام ګورم
ډیر حیران یم ورته توله خماری ده



په خزان پسې بهار وي له بهاره خبر نهٔ شوم
پسې ژاړم نهٔ صبرېږم له دلداره خبر نهٔ شوم
پسرلے په کله راشي په امید کښې ئې اوسېږم
دَ بالا په انتظار شام وسحاره خبر نهٔ شوم
زړهٔ مې ورچنه[1] دلبر پسې سيني نه راوتلے
پسې کړم زهٔ ئې تراوسه له مزاره خبر نهٔ شوم
چې دَ شمعې رڼا وُکښم وايم دغه جوړ مزار دے
زهٔ به ولې داسې نهٔ يم له اسراره خبر نهٔ شوم
له اسراره خبردار يم خوله تُوله خبر نهٔ يم
اسمٰعيل په دې خفه يم له قراره خبر نهٔ شوم

---

محبّت دَ يار دَ پاره کثير اوکړه
بندوبست ځان له دَ داسې بحير اوکړه
په کثرت سره له سترګو اوښکې تويُ کړه
زړه کوني له ئې بيعت له يوُ پير اوکړه
دَ هجران له پيښو تبېنه ولې کاندې
ښهٔ په خوښه دِ سرور کانده وِير اوکړه

---

[1] ورچنه : بهر

دَ یار دی دِلا دَ کسوٌ نه یږ دور دی
دغه دید لره پاکې دَ ضمیر اوکړه
دَ بد خیال سیلۍ دوږ کړی ئې له اشنا نه
ځان له بند زر دَ توبې دَ زنځیر اوکړه
بو ګنیدهٔ دي لا تراوسه ولې نهٔ زده
په زړګی له ډیرې ویرې لکیر اوکړه
اسمٰعیله بې غمخویه چرې نهٔ شې
هر ساعت کښې غم دَ ید رِمنیر اوکړه





سفینه یم سفینه یم راشه راشه سفینه یم
کوم خوالاهې بل خوا مهٔ زه مستانه یم مستانه یم
داچې خوږم داهوا ده له حجازه په مالږی
رانزدوشه چې شې پوهه میخانه یم میخانه یم
دَ هوا په چپو دړومم دَ خوبا دَ دړ په لوری
ولې بل خوا له ماکوږې نشانه یم نشانه یم
ملګرتیا نه دِ لیوال یم ملګرتیا راځنه اوکړه
خوبرویانو پسې هر وخت دایونه یم دیوانه یم
زهٔ خونا هر وخت یادومه چې داولې دِ په هیریم
نوره تیبښته لمامهٔ کړه جانانه یم جانانه یم
نهٔ به ما ځنه خوشحال ئې نهٔ خبر نهٔ ئې له انه
ای کښې استرګې ... روښانه شه دلبره پروانه یم پروانه یم

اسمٰعیل رښتیا وئیل کړم هر یو لفظ مې دُر مرجان دے
زۀ بیناؤ ته لیدے شم خزانه یم خزانه یم





زۀ دَ یار دَ نور و سترګو ارمانی یم
خماری یم ځکه ژاړم خماری یم
دَ ننګار مخ مې لیدے شي په هر لوری
دَ هر لوري ښار نه کومه فریادی یم
سپین سپیږے مخ به جړي زۀ هیر نۀ کړم
اے عالمه په دې کار کښې حضری یم
بې له مینې مې څۀ نۀ زده دا مې کار دے
سپاهی یم زۀ دَ مینې سپاهی یم
دَ عشق نمر ته مې نهول تن مدام ورتیږی
هم دا غواړمه ملنګ قلندری یم
دَ جاوید عمر دَ پاره داسې کاندم
پدې برخه ډیر مشکور زۀ دَ هادی یم
اسمٰعیل نور هدایت له هادی غواړم
په درګاه کښې ئې زۀ هر ساعت سوالی یم



د مالیار په باغیچه کښې په اغزو باندې زخمي یم
له ګلانو نه صبریږم د بورا پشان پټي یم

د دیدن سره اوبو ته له پښوا راسي لیوال یم
څنګه کښې هم داغوارم بل څه څه کړم ارماني یم

خپلو اوښکو کښې لاهو یم د دستور په بیابان کښې
نه ژوندے یمه نه مرمه انتظار کښې د مرګي یم

د جانان په ګنړو غشو مدام ګکم فریاد کاندم
توري سترګې ئې تور غشي وړوي پرې خماري یم

د هجران په توره شپه کښې د دیدن رڼا لټومه
پدا چاره بنه پوهیږم څکه داسې جوهري یم

د جانان د در په لوري بیړندے دروم
پدې تړ کښې بخیل نه یم د جانان په قول سخي یم

سخاوت د دنیا کښې کاندم اسمٰعیل به بخیل نه شم
د خوبانو په منشور کښې حیدري یم حیدري یم

---

زه په کوټ کښې د یار اوسم د مرګي په انتظار کښې
له بهاره ناخبر یم هم مې ژوند دے په بهار کښې

ننګیالے راته یار وائي بې له ننګه بل څه نه کړم
ما ته ځان هر وخت لیدے شي د جانان په سپین رخسار کښې

دا ائين الله راکړے دے دَځان ليدو دَ پاره
له مودو نه پکښې کوم ډير حيران يمه دې کار کښې

نور مژګان ئې دې خخ کړې زما زړۀ کښې ډير په مينه
دا سزا زما نصيب ده له تقديره دَ عشق لار کښې

زۀ دَ دار په سر ماتم کړم دَ جانان رُخسار يادومه
بې ماتمه به زۀ څۀ اوکړمه نور په سر دَ دار کښې

دَ جناب په نوکرۍ کښې مې کړيوان ټول تار په تار دے
ارمانونه پوره نښتې دې رازونه په هر تار کښې

دَ فکرونو بيابان ما اسمٰعيل په خون خړ وب کړۀ
نور به ئې هم داسې خړوب کړم دَ جانان څنګه اقرار کښې



هر ساعت زۀ دَ يارۍ په طلب ګرځم
په حکمت کښې په لټون دَ مکتب ګرځم

ويريا کته دَ دلبر په طفيل کاندم
هميشه به زۀ په داسې سبب ګرځم

دَ رښتيا وُ لار ئې ماته راښودلې
ترمرګه به پر زۀ ډير په ادب ګرځم

کوټ[1] ښکارونه به ځان مدام ساتمه
په کُندن[2] پسې په فضل دَ رب ګرځم

بې ديدنه مې زړۀ وار نۀ کړي خفه يم
ځکه داسې وار خطا روز و شب ګرځم

[1] کوټ ښکاره ګه سرۀ

[2] کندن: خالص سرۀ

تودې اوښکې به زما ښنکه اوداړې[1]
په عجب پسې زړه چودے عجب کړځم
دَ ژړا شیوه مې خوښه ده ترعمره
اسمٰعیل به ورځخه په جلب کوځم





کړځنده یم همیشه بهار پسې
په خمار کښې یم لیوال خمار پسې
دَ هجران سترګې[2] ماته مدام کیږي
دې رهبر سره به ځم دلدار پسې
له مودو نه دَ هجران شپیلکې اوړم
ساعت کومه دیر اوږدے یار پسې
بصیرت کښې بصیرت له بصیر غواړم
تل روان یم پدالاړ اسرار پسې
یوقدم به بیګانه چرې وانه خلم
په خرپوسو به زه ځم دیار پسې
دَ سحر اذان چې واوړمه په غوږو
بیا به اونه ژاړم زه سحار پسې
اسمٰعیل دَ اذان طمع تول لوګے کړم
پورته دروم په ورو ورو ګلزار پسې



[1] اوداړې : اودریږی [2] سترګې : اشارې

دَ اقدس رُخسار ستی کړم دَ غمونو په صحرا کښې
بې یاره ئې ژړوندون به څۀ کړم هم داغوارم په دُنیا کښې

زۀ مهجور[۱] به ژړا کاندم دا ئې راکړې دۀ له ځایه
دې ژړا کوشه نشین کړم تل اوسیږم په ژړا کښې

درویغجو به چرې نۀ شم دَ یار مینه به پالمه
خندا نۀ کړم چا موندلی گوهر نۀ دی په خندا کښې

دا ژړا به مې باغبان کړی دَ حکمت په باغستان کښې
باغستان ځکه یادومه هر ساعت په هر ساه کښې

په ما مینې مسترد کړۀ دَ دنیا ههه کارونه
یوُ دَ مینې کار کوُمه بنۀ په ناز اوُ په ادا کښې

دَ مقصود په لاره دروممَ دا مقام به خدائے راکړی
دے کچکول زما په غاړه وفا غوارم په وفا کښې

اسمٰعیل وفا وفا یم له جفا نه وړایه اوسم
ځکه داسې دیوانه یم ژړوند تیرومه واویلا کښې

---

دَ خوبا په لوړی دروممَ دَ هجران په بیان کښې
دَ زینت په واړ پرَهر یم تیرَوُم عمر زندان کښې

بیلتانۀ زړې زړې کړم دَ وصال کیګدے لټومه
ما په شان لیواله نشته بل هیڅوک پدې جهان کښې

۱ مهجور: جدا

دَ غمونو لوئ اشر مې زړهٔ غوبلئ نګار دَ پاره
دَ سینې دړهٔ مَن مې جوړ دے دلربا پسې نیران ګنبې
په ذیشان پسې کړیږم دَ ګړون په سمندر ګنبې
راته ښکاری ځان له وړایه له پخوا راسې ذیشان ګنبې
دَ اُلفت اُصول مې زده دی دلربا څخه یارئ ګنبې
نور اُلفت له ربه غواړم همیشه یم په ارمان ګنبې
له باسطه مدام سوال کړم وایم راکړه دلبر راکړه
کهٔ مې سوال باسط قبول کهٔ دَ غمونو دې طوفان ګنبې
اسمٰعیل به دهړې وړې داسې پروت یم دَ یار دړ ګنبې
اشارې ورته کوُمه توان مې نشته نور په ځان ګنبې





په شیدا باندِ شیدا یم کوځے[1] اوسم په دُنیا ګنبې
له وفا څخه وفا کړم مړنے یم په وفـــا ګنبې
زهٔ دَ مینې تېل کنار کړم په دُنیا ګنبې له دُنیا نه
دَ طاهر ارمان لاهو کړم دَ غمونو په دریا ګنبې
دَ هجران غمبسې[2] ماله راکوی مدام ستکونه
دَ فریاد آواز مې ځکه اورېدے شی په سما ګنبې
دَ دم کوی لار نه کوړم نور مې هر څهٔ دی هېر شوی
انتظار زما نصیب دے تیر وُمه ژوند ژړا ګنبې

[1] کوځې : یواځې [2] غمبسې : مچئ

دَ فیاض مینې صادر کړم دَ فیاض مینې دَ پاره
څوک به ځان له خلقو پټ کړي همه عمر په غوغا کښې

دَ جرس په شان شرنګیږم دَ دلبر په لور روان یم
بې له یاره نهٔ یادومه چرې بل څوک په ندا کښې

اسمٰعیل ندا ندا یم قلار نهٔ شوم له ندا نه
ندا ځکه مدام کاندم غمزده یمه ادا کښې





عندلیب یمه په تا پسې نګاره
محترمه را څرګند شه رب دَ یاره

په زړګي باندې مې اور تا پسې بل دے
نور مې خلاص کانده دَ هجر له دې ناره

دَ سینې جونګړه نوله زما اسوره
راحتونه تر نول لاړهٔ ستا په لاره

تا چې کله دَ رخسار په اور خرید کړم
تیر مې نهٔ کهٔ یؤ ساعت بیا په قلاره

همه تن مې دَ فرقت په اور کښې سوزي
دَ وصال تارې وهمه شهر یاره

دَ یقین واګې قابو دي ما نیولې
وایم رالښې یؤ وارې ځلګعزاره

اسمٰعیل به تا ته هر وخت انتظار کړم
په دُنیا ده ربّ راکړې راسې چاره

دَ ضیاء مخ په لیدو بانډِ تراب یم
زهٔ مهجور یم ځکه داسې لاجواب یم
په ضیاء پسې زما ځکه ژبهٔ ده
لا هو شوے دَ غمونو په دریاب یم
له میثاقه دَ غمونو په تال ځانګم
همیشه ځان ته پخپله په خطاب یم
قدسیان مدام خطاب کښې یادومه
په طریق دَ قدسیانو دَ جناب یم
دا طریق به چرې پرې نږدم ترمرګه
صبح وشام پرې زهٔ روان بنهٔ په حساب یم
دَ حکمت امساله لا سه نهٔ لرکومه
بنهٔ سیزے په دلبر پسې افتاب یم
تروصاله به مې داسې آفتاب سیزی
دیر خوشحاله اسمٰعیل په دا ثواب یم



دَ یادونو په دریاب کښې لا هو شوے له پخوا یم
له آهونو ښمنه مخ یم مئین شوے په زیبا یم
ښکنک به یار زما په هیرشي چې مدام ئې زوتومه
داسې یار هم زوتوی ما په شیدا بانډِ شیدا یم

پہ هر لوري مدام کسم چې له کوم لوري به راشي
زۀ دې چارې له همه عمر له خلقو نه جُدا يم

هر ساعت دَ تودو اوښکو نواتې وړ لېږمه
په نکار پسې ژړېږم بل څۀ نۀ کوم ژړا يم

دَ بادام پشان مې زړۀ سوري سوري دے له ډېر غمه
لے په لے پسې کړځېږم طلبګار دَ مسيحا يم

دَ دُنيا په مسيحانو مې ښيګړه چېرته کېږي
زۀ په څنګه په دوئې روغ شم چې زړۀ چودے له دُنيا يم

اسمٰعيل په هله روغ شم چې اشنا مې راځرګند شي
ترهغې به زۀ رنځور يم اشنا وائي زۀ دوا يم





دَ هجران په تورہ هر ساعت ژوبلېږم
په درياب کښې غوپ په يار پسې ګرځېږم

دَ فولادو نيښې شپه اؤ ورځ چيچم
دَ بيلتون په کړاهي کښې تلتليږم

له عطاره به مې زړۀ بل خواته نۀ اؤړي
ورو په ورو زۀ په داچاره سنګارېږم

دَ فرقت رباب مدام راته غږيږي
په سينه کښې ورسره زۀ هم غږيږم

تمول رګوته مې طبيب پسې فريادکړي
په طبيب پسې مدام څکه ژړيږم

دَ لوئ غم خنجر مې څخ دے په زړگی کښې
خبر نۀ یم چې به څو داسې کړیږم

اسمٰعیل به له کړونه هلۀ خلاص شم
چې دَ یار غاړه کښې هار شمه زنګیږم





دَ جواد په تیغ پرهر یم ځکه داسې واویلا کړم
دَ خوبانو په تپ خوړین یم زۀ ئې مینې وارخطا کړم
تل روان یمه په ځوپ کښې دَ جانان په لوری دروم
زۀ مئین به څو کړیږم چې ترڅو به دا ادا کړم
زۀ په ژوند کور کښې اوسیږم دَ جانان لیدو دَ پاره
دَ یار مینې له دُنیا نه همه عمر له جدا کړم
دَ فرقت په غشو لګم صداقت زړې زړې کړم
دَ هجران په توره شپه کښې ارمانونه دَ صبا کړم
ما ته هجر ډیر قهریږی په څواره هر ساعت کښې
زۀ به صبر مدام کاندم چې دَ مینې دا سودا کړم
ننګ به تل داسې کومه چې دَ مینې کاروبار کړم
عبث وخت به زۀ تیر نۀ کړم نیکیا ئے دَ عشق سزا کړم
اسمٰعیل ګوشه نشین یم دَ یار مینې داسې کړمه
کۀ زۀ ډیر داسې کړیږم زۀ به مینه خاڅا کړم



ستا په مینه کښې به څو داسې ګرېږم
بیابان کښې د ریدی په شان رژیږم
نرګسی سترګې راواړه وه دلبره
تناره کښې به د هجر څو سوزیږم
زړه مې هر وخت هجر مروړی تول زخمی دے
ځکه هر وخت فریاد ونه کړم ژړیږم
زړه په تا پسې مدام اسویلې کاندم
شپې پتا پسې رونړومه نه صبریږم
ستا یارۍ کښې د بیلتون په غاتهولکم
له ډیر دړ ده همیشه ځان نه وسیږم
زړه د هجر تاخانه کښې ستا د یاره
ژوند تیرومه خوشحالونه نه خبریږم
مؤذن چې د وصال آذان اوکاندی
اسمٰعیل به تل لتا څخه اوسیږم



را په غاړه د هجران اغزنه لاړ ده
د اورغلې ګلستان نه د ماليار ده
یار د غنو کیړ تاوګوړے دے له ځانه
لمن ځکه پرِ زما تو له تار تار ده

ے وئیږم : ضبرې کوم

چُست پرِ دی وم ځکه داسې پرهری یم
سینه ډکه مې دَ مینې دَ انګار ده

دَ سینې کوټې مې اور یار پسې واخست
جوړه شوې دا کوټه په سر دَ دار ده

ډک کنډول زهٔ دَ دیدن دَ اوبو غواړم
دَ غمونو دُنیا تموله بیمار ده

دې غمونو کاڼده کړمه یار ته له
داسې چاره ډیره خوښه دَ دلدار ده

دَ هجران وارونو تول زخمي کړم
ماله دا ادا هم شپه اؤورځ پکار ده

ترڅ دیدنه به ځان داسې زخمي کاندی
اسمٰعیل ته داوینا کړې ریبار ده

---

دی غلم دی ځمه په خپو سو ستا په لور
چیرته حصار یږم ستا دَ مینې دے پیر زور

غنومې تول تن سوی سوی که پدا لاړه
ځان به زخمي کومه ستا دَ پاره پدې نور

مینه دِ جانانه راته والے دهٔ دهٔ دهٔ ره

مینې مې سینه کښې جوړ پتا پسې کهٔ شور
ستا دَ مینې قاف نه زهٔ ستا مینې پسې واوړیدم
دَ ګیکمهٔ له ویرې ما په ژوندا ولیدهٔ ګور

ل دوه رادګوړ راشته ځ دګکمه ا زیږم

په زړه مې ستا د درد پلکه نقش شوې ده دلبره
زړه مې ځکه هر وخت دے پتا پسې نسکور

ټلکل[1] د غماز ما باندِ اثر نهٔ کړی پوهيږم
کسې مې سينه کښې مدام ستا د مينې اور

چرې به تير نهٔ کړم يو ساعت بغير له مينې
ولې به دُنيا کښې ګرځيدهٔ کړمه تش تور

زهٔ د يار ديدن لره ما هر استاد ياديږم
ځکه شهٔ آواز زما د مينې هرخوا خور

ما اسمٰعيل ډيره ګټه اوکړه پدې کارکښې
مدام له رانه پاتې کهٔ دې ښکتې کلے کور



زړه مې پتا پسې ژړيږی مدام
خمارې سترګې ئې ياديږی مدام

دا کيفيت ئې شهٔ نصيب د مينې
لکه د پانړې ډير ريپيږی مدام

ستا په ياد دونو باندِ وخت تيرومه
زما په مخ اوښکې بهيږی مدام

زهٔ چې پوهيږمه له خپل زړهٔ اوکړم ستا
واړهٔ زخمونه مې ډيريږی مدام

په تسلۍ مې زړهٔ قلار نهٔ شولو
ستا په سپين مخ پسې وښيږی مدام

[1] بلکل: لمسون

په فریاد ونو ئې زیرک شومه ډیر
نور فریاد ونه ئې زده کیږي مدام

خانه بدوش کړمه ستا میني یاره
په ما دَغم عمر تیریږي مدام

ما اسمٰعیل میني له غاړه وړکړه
ځکه په ما دا اور بلیږي مدام





لا تراوسه نهٔ غلام دَ سلطان نهٔ شوي
دَ درګاه په لوړي ولې روان نهٔ شوي

همیشه دَخپل سلطان په لیاره درومه
پوهه ولې ته په کته تاوان نهٔ شوي

ناراستي به دِ کړنګ ته وړ کذارکه
شا به چاق شه هیڅ ضبرله بوستان نهٔ شوي

بنهٔ راست من شه له جانانه څخه زارشه
شنکے خال په سپین جبین دَجانان نهٔ شوي

کیفیت دَ میني اوغواړه له ربه
ته مالک ولې دَ میني دَتوان نهٔ شوي

جواني کښي به تپ تپ ترکومه ګرځي
تل مزولره خیرانره جوان نهٔ شوي

اسمٰعیل دِ خیرانری له ربه غواړم
خیرانزیٔ لره څوواره قربان نهٔ شوي

زهٔ له یاره څخه یارې کړم خوش نصیب یم
ځان ته ګوره حیران یمه عجیب یم
په کامران پسې مې کړې اقتداء ده
زهٔ په دهٔ پسې روان بنهٔ په ترتیب یم
دَ غمونو شپول مې زړهٔ نه دے چاپیره
په ناروځکه په شان دَ عندلیب یم
له سرکاره تل دَ مهر شراب غواړم
پداغو بنته له سرکاره څخه قریب یم
ما دَ حب لونګې په سرکړه حُب به کاندم
زهٔ دَ حب له وجې داسې لوئې ادیب یم
دَ صراط په پُول روان یم دَ یار درته
دې سفر کښې زهٔ خپل ځان لره خطیب یم
دَ یار در به مې نصیب شی دا باور کړم
اسمٰعیل رنځور طلب کښې دَ طبیب یم

---

ملاقی زهٔ لا تراوسه دَ یار نهٔ شوم
یؤ ساعت هم له غمونو اوزګار نهٔ شوم
دَ زړهٔ سر به زما کله را نما شی
زهٔ لا هغسې ساده یم هوښیار نهٔ شوم

د دیدن په ورځ به زهٔ پوره هوښیار شم
داخل ځکه د دلدار په ګلزار نهٔ شوم

د دیدن باران ته تل لیواله اوسم
تل خزان دے هیڅ خبر له بهار نهٔ شوم

سپین رُخسار ئې راته مخکښې مخکښې کیږي
یؤ لمحه زهٔ په سنته له اقرار نهٔ شوم

د اقرار چنګارو زړهٔ زما زخمي کهٔ
غافل ځکه زهٔ له دې انتظار نهٔ شوم

د وفا اره مې تل د تن رسیل کهٔ
اسمٰعیل خبر له لیل النّهار نهٔ شوم





حکمران مې په زړګي کښې تل ډیره دے
هر ساعت مې د زړهٔ وینې څخي ډُلمه[1] دے

هر ساعت راته د غم قیصې دے یائ
زهٔ د دهٔ اؤ دے زما په ننداره دے

په سینه کښې مې دسترخوان ورته خوړ کړے
د سینې بُلبل مې هر وخت په سناره دے

په ناره کښې د ډُلمه اسم تل ستائی
بل به څهٔ اؤکړي هم دے چې ئې اسره دے

د رازونو په تمغوئې ؤنما نڅلم
هر یؤ راز ته چې ئې ګورم عجیبه دے

[1] ډُلمه : میلمه

دلربا مې ډېر بې مثله پاک دامن دے
هر ګفتار ئې څکه ډاسې پاکیزه دے
اسمٰعیل ئې هر ګفتار په ځان قبول که
عجیبه ده بیلتانه کښې ور سره دے





میْن شوے په احسن یارِ حجاز یم
هر ساعت ئې زړه دیدن ته ډیر مُمتاز یم
بِسمِ الله چې مې په مینه باندِ اوکړه
له هغې راسې حساب زړه په جانباز یم
صبح و شام د یار په لورې سیخ روان یم
روان کړے ئې پدې لورې په ناز یم
جان نثار به ولې نه یمه عالمه
چې شیدا په والضحیٰ مخ د ممتاز یم
تاتره[1] زړه مې د یار مینې اوبه کړه
تش ګوګل د یار لټون کړمه یوازیم
زیبا مینې مې له زړه ته رباب جوړ که
په زیبا پسې غږیږمه پټ ساز یم
له ازله مې آغاز د مینې شوے
اسمٰعیل ډیرو مینو له اعزاز یم



[1] تاتره: د خیبر د یوغر نوم

د جمیل مینې دُنیا نه کناره کړم
په لمبوئې په صحرا کښې غرغره کړم

د دُنیا کاروته واړه ما منسوخ کړه
د دلبر تیرې اړې اړه اړه کړم

د هجران له کتارومې خلاص نشته
تر دیدنه به پرځان زړه زړه کړم

د غم غشو تل په ما دے خوند اخستے
د غمونو لوئې کاروان له ئې اداره کړم

له بې ترخه کذارو تو څخه مخ یم
هر کذار زړۀ په خوار ایره ایره کړم

دیر زړۀ سترے یم دمه نۀ شومه چرې
عشق په یار پسې مدام له یوناره کړم

اسمٰعیل په دعشق فن هر وخت زده کومه
هر یو کار به زړۀ دعشق په اشاره کړم



اے زما ماهِ تابانه السّلام
اے گل رنګه عالیشانه السّلام
ستا راتلو ته مشتقمند[۱] یم د زړۀ سره
زما ښکلیه خوبِ جانانه السّلام

۱ مشتقمند: خواهشند ۔ مشتاق

هر ساعت کښې ستا دیدن له ربه غواړم
خوب صورته قدر دانه السلام
هر ساعت کښې زما تُند انتظار خوښ دے
زړه مې موړ دے له دُنیا نه السلام

رنړې اوښکې مې پښا پسې بهیږی
په دارینو کښې کامرانه السلام
ما په تا پسې څو واره ځان خنې خنې کړه
پدا بېچ شومه له زیانه السلام
اسمعیل دَ سُودمندئ په لاره درومم
ځم به داسې ترمکانه السلام





په هجران مې شونډې توری شوې بیابان کښې
سرې به نهٔ شي چرې بیا پدې جهان کښې
په رښتیا په یار مئین یم ځکه ژاړم
جواری دَ عشق کوُمه هر میدان کښې
سر او مال مې په یار دَوُ کړه دَ عشق لار کښې
کټه ور شومه بې شانه دې تاوان کښې
پریشان کړځمه دَ هسکو غرو په سُوکو
شین لوګے یمه په یار پسې هر آن کښې
دَ غمونو لوئ سیزن پهما تیریږی
همه عمر تیروُمه په زندان کښې

کنډ کچکول مې شوه نصیب دَ یار په مینه
روان ځکه یم په یار پسې کاروان کښې

اسمٰعیل به دَ واعظ د رټنه تل دروم
نور په هیڅ چرې زده نه کړم پاکستان کښې



په دُنیا کښې زه مدام په انتظار دَ مسیحا یم
بې له دهٔ کله رغیږم رنځور شوے زه ناآشنا یم

دَ دارو پیاله زه ځکه مدام غواړم دا مې سوال دے
نورې هر څهٔ لما هیر کړه په پیاله باندِ شیدا یم

دَ کوشش سیمه کښې اوسم دَ مسیح لیدو دَ پاره
دې مقصود پسې دُنیا کښې زه مدام لره ګدا یم

دَ هجران مچغنې ما بې دریغه اولې دا مې ژوند دے
دَ دلدار رضا دَ پاره زه پدې باندِ رضا یم

دَ اُلفت چارې اُلفت لره زه داسې ډیر شوقي کړم
چې بل هیڅ نهٔ شم کولے بس الفت لره ادا یم

دَ نواز په یارانه کښې مې تن ټول په لمبو اوسوه
اموخته له مودو راسې زه دَ هجر دَ سزا یم

ځان مې ټول په مچو اوخوړ ګګ مې جوړ دے په سینه کښې
نور به هم ما داسې اوخوري چې مئین په دلربا یم

په خوار به اسمٰعیل ځان قربا نومه له جانانه
دَ آفتاب رخسار دلاسه زه بنهٔ روګدے په وفا یم

د جمال جلال د خيال په تال کړم بره
او به نهٔ کړم چرې تيښته له دې نمره

د يار د رپسې مدام تلالی کاندم
ما زده کړی تلالی يار پسې غوره

له ډير غمه مې د اوښکو تالاب جوړ کهٔ
کيله من نهٔ شومه چرې له دلبره

د يار مينې ته له حده ډير ليوال يم
ورو په ورو د خوبا دره ته ځم په ييره

کهٔ صنم مې والضحیٰ مخ راسرګند کهٔ
بيا به ئې لار نهٔ شمه زه چرې له دره

د يقين په اَس سوړلی کړم تيز ترغل کړم
رب به ما ساتی مدام له هر خطره

اسمٰعيل به د وفا رسی پرېښې دم
کهٔ مې وينې په دې ښاڅی له جګره

ماهِ جبين ماهِ تمام زما دلبر دے
ما زده کړے د دهٔ مينه کښې هنر دے

سپين رُخسار ئې شغلې کاندی پرِستی شوم
پسې درومه زما ښکلے رهبر دے

ا؎ تالی کاندم: نارے وهم

دَ خوږې مینې په لاره تل روان یم
رهنما مې په خوبانو کښې بهتر دے
دَ ګلاب یاسمین خوشبو به دِ په هیر شي
دلربا زما بې مثله معطّر دے
مشکبو زلفې يې تور پړق وهي له ځایه
دا جانان مې محمدﷺ خیر البشر دے
له دُنیا نه مې زړه تور کۀ دَ دۀ مینې
پکښې ډوب او سم دا مینه سمندر دے
اسمٰعیل چې په خپل یار باندې مئین شوم
له هغې راسې مې هر لفظ بنۀ جوړ دے





ما هجران په کانړو اولی په صحرا کښې
خوشحالی مې چرې او نۀ کړه دُنیا کښې
تور خامار مې غوښې خوري زۀ ورته زارم
چې ترڅو به دا سې او سمه سزا کښې
په څوار دَ سپیلنۍ په شان لوګے شوم
قرار نۀ مومم په ارض او په سماء کښې
وفادار دَ وفا چل ماته راښائی
همه عمر به تېرومه په وفا کښې
دَ ژوندون هره کړے په ما قیامت دے
چې به او وینمه یار کله مُسکا کښې

په لمنون کښې مې ګرېوان ټول تار په تار شهٔ
خوږ اٰشنا تل لټوُمه په اشنا کښې
اسمٰعیل په تیرهٔ توره ټول ټوک ټوک شوم
لکه اوسم چې میدانِ کربلا کښې



دَ حیرت په بیابان کښې اوُتر ګرځم
سانیولے په ارمان دَ دلبر ګرځم
دَ فرقت غلوزې تل په ما پسې دی
تول ئې اوخوړم دَ مینې په نمر ګرځم
بشارت ته انتظار کړم بیابان کښې
دَ زیبا په مینه هر وخت کسکر ګرځم
دَ محبوب دَ حُسن اور مې په تن بل دے
په لمبو کښې ځکه ډیر په هُنر ګرځم
چې یوُ وارې کړمه مسحه دَ یار مینې
زړه له هغې هر ساعت درپه در ګرځم
هر ساعت کښې ملاقات له ربه غواړم
پسې ځکه هر ساعت کښې بهتر ګرځم
دا ادا راته پخوا مینې رابنودی
اسمٰعیل په همیشه لروبر ګرځم

بې اختیاره مې ناړې خېژي له فمه
راشه راشه په خوبانو مقدمه

په عالم کښې دِ سیال کوچیرته هم نشته
په څو واره بهترینه له عالمه

بې دیدنه به مې اوښکې اونهٔ دارې
دا وعده مې ده له تا څخه محکمه

سیخ به ستا په لور روان یمه ترمرګه
یوٴ ساعت له به هم نهٔ شمه بې غمه

هره ورځ مې دَ هجر په اور سوزي
زهٔ دَ صبر پېڅې هر وخت په ځان بړدمه

دَ فراق جور کړنګ کښې تل اوسیږم
ستا په مینه شومه تا پسې بې دمه

اسمٰعیل په هله دم واخلم دلبره
په آخر وار چې په تا پسې زهٔ مرمه



دَ حیرت په زولنو کښې بندیوان یم
په جانان پسې مدام په هائے سوران یم

دَ زینت په اور څو واره بنهاره شوم
شین لوګے شومه دَ سپین مخ په ارمان یم

محبت مې ذوالجلال ته ښهٔ منظور دے
ځکه هغسې زړهٔ نهٔ يم په بل شان يم

بې پروا به چرې نهٔ شم په دُنيا کښې
ډير مشتاق دَ هغه عمرِ جاوِدان يم

له سينې مې غلبيل جوړ کهٔ دَ يار مينې
ځکه يار پسې زړهٔ تور ے له جهان يم

دَ فرقت ميچنې څو واره اوړهٔ کړم
چيلخانه کښې بندی کړے خپل سلطان يم

اسمٰعيل شيرِ يزدان له برمه پرې ايستم
ډير مئين په نازنين ګلِ خندان يم





دَ جانان په تورو سترګو مئين شوے له پخوا يم
دَ زينت په لمبو سوزم دَ احسن دَ دَر ګدا يم

مدنی دے قريشی دے زما زړهٔ ئې ځان ته وړے
ځې له سترګو مې رودونه بل څهٔ نهٔ يمه ژړا يم

هر ساعت مې ځنکدن دے دَ جانان ارمان کومه
زهٔ طالب دَ دې مطلوب يم له دُنيا ځکه جُدا يم

زهٔ دَ غم ځانګو کښې ناست يمه دَ غم تالی وهمه
دَ کوشش په غشو لګم ځکه داسې وار خطا يم

له بُلبله مې دَ هجر چل زده کړے برابر دے
ځکه داسې په اشنا پسې مدام زهٔ په غوغا يم

ایلم[1] زړه مې د یار مینې تول زړې زړې کړه خلقه
د جانان رضا د یاره په دې برخه هیر رضا یم
اسمعیل به په دُنیا کښې داسې ولې پریشان نهٔ یم
چې جُدا له مودو راسې زړهٔ له ښکلی دلربا یم

—— ✲ ——



موده اوشوه چې مې یار لیدلے نهٔ دے
بیا مې هغسې بهار لیدلے نهٔ دے
چې یو وارې مخ را اوښود بیا ئې پناه کړه
مالا بیا هغه رخسار لیدلے نهٔ دے
تور زلفان ئې وو په ډلو خوارهٔ کړې
ما تر اوسه بیا سنګار لیدلے نهٔ دے
د وارهٔ لاسه چې ئې زما مخ باندِ را ښکهٔ
بیا مې هغه خوشبودار لیدلے نهٔ دے
اسمعیل ورپسې هر وخت ماتم کاندم
مالا هغسې چمکار لیدلے نهٔ دے

—— ✲ ——



زړهٔ مې ور[2] چنه په یار پسې وتلے
هائے افسوس دے کهٔ یو وارې وے موندے

[1] ایلم : د یو غر نوم [2] ورچنه : بهرا

سر کړ دانه پسې کوځې بیابان کښې
په نقاب کښې تړ پټ شوے دے بناغلے

ورته هر وخت هم داوایم شابه دوکړه
ځکه هر وخت پسې یون کړي ساینوے

له نسرینه به دے چرې صبر نهٔ شي
دَلاله په شان دَ یار مینې داغلے

په برین اشنامئین دے ځکه ژاړي
داسې بل زړهٔ چرې نهٔ دے ژړیدے

کوم طبیب له چې دے دړومې په تورپونو
دې طبیب په سر و لمبو دے سوزوے

اسمٰعیل نه کهٔ غمازځو یائے وېله
دَ یار مینه چرې نهٔ شي پرېښودے





په عالمو کښې له تولو نه بهتره
لتا زار شمهٔ زیبا شمس و قمره

همه تن مې ستا دَ مینې لمبو اوسوهٔ
راشه راشه اے زما لخت جگره

زهٔ به ځو داسې غمژن په دُنیا اوسم
ستا دَ پاره مې دُنیا پرېښې دلبره

ستا دَ وَصل خوارهٔ غوارم له خدایه
مدام تیریمه په تا له مال و سره

زړه به څنګه بې غم خویه شم دُنیا کښې
چې ستا سترګې مې دی تیرې له نظره

همیشه به غمزده تا پسې ګرځم
وابه نهٔ وړمه دَ مینې له هنره

اسمٰعیل دِ په فرقت کښې هنرمند شوم
ریبا ځکه پیغام ماله راوړی غوره





یار به راشی پرِ زما پوره یقین دے
کهٔ ډیر دوړ دے زما زړهٔ کښې همنشین دے

پسې هروخت یم په منړه بل څهٔ نهٔ کړم
تسکین نشته ماله دغه یوٴ تسکین دے

په یوٴ وار جلوه ئې لما کوه طوړ جوړ کړه
اَرمانی ډیر دَ هغهٔ یم چې تک سپین دے

په خزان کښې دَ بهار په طمع ګرځم
زړهٔ بوړا هغه زما ګل نسرین دے

په وفا بانډِ عادت یم جفا نهٔ کړم
دلربا مې خوبرویانو کښې حَسین دے

سرهٔ ګلان چې ئې مقتدیان دی داسې ګل دے
هر یوٴ ګل ئې هر ساعت کښې تماشبین دے

اسمٰعیل به په زړګی ولې شین نهٔ یم
چې شین خال مې اَشنا اَیښے په جبین دے

د برین حسین په مینه همه غم شوم
حیران ځکه په هر دم اؤ په قدم شوم

زړه مې یار پسې وتلې هر ځائې ګوری
په دُنیا کښې زړه ګذار په جهنّم شوم

د یار مینې ډیر دانا کړم کمکے نهٔ یم
په لټون ځکه زړه هر وخت د صنم شوم

د علیؓ شیر یزدان په دُعا رنګ یم
ځکه یار پسې په زړهٔ قلم قلم شوم

د زیبا له هجره هر وخت وهل خورمه
په داچاره ئې په دې کښې محترم شوم

د کاهلؔ لوئې طوفان ځنځه عادت یم
له ډیر غمه زړه ګویا په ترنّم شوم

ماته هر ساعت په ځان کښې دلبر ښکاری
زهٔ خپل ځان لره په مثل جامِ جم شوم

اسمٰعیل به همیشه یار پسې ژاړم
د بورا په شان خزان کښې په ماتم شوم

---

کوم ساعت چې مې دیدن د یار کولو
دې ساعت کښې فراق ورا وتکولو

له ناکامه مې وَر لرې کړهٔ فراق ته
دواړهٔ ورغلو ښهٔ سخت په پړ ړولو

لا کښتي زموتړهٔ هغسې جاړی ده
په څو واره ئې زهٔ مړ کړم په وهلو

چې مې مړ کاندی کښتهٔ له بیا را پاسم
او به نهٔ کړم چرې نیت دَ تختیدلو

ترمرګې به ډیر مرکونه په ما تیر که
راکوی سزا دَ یوٶ وار دَ کتلو

دَ جناب یادو مې زړهٔ همه پولے کهٔ
تن مې او سیزهٔ همه دَ زړهٔ سیزلو

اسمٰعیل دَ مسیحا په لوړ کاتهٔ کړم
مسیحا پسې مې تک زړهٔ او چودلو





دَ زیرک ملّاح بیړۍ کښې سفر کاندم
بل څهٔ نهٔ کوم رضا دَ اکبر کاندم

ډ رنګ ساعت له به ساحل باندِ اوداړی
ترهغې به انتظار دَ دلبر کاندم

په دلبر پسې مې زړهٔ شهٔ تول تنراکې
پسې ځکه زهٔ زبیرګې په هنر کاندم

په نمکین مخ ئې مئین یم ځکه ژاړم
صفتونه به دَ ښکلی بشر کاندم

تسلسل به چرې پرېنږدم دَ يادو
زهٔ به داسې غلامي دَ سرور کاندم
کهٔ زهٔ هر څو دَ فرقت په غشو لګم
دَ يار مينه به زهٔ شام و سحر کاندم
اسمٰعيل په محبّت کښې مړ نے يم
ځکه داسې تنداري لر و بر کاندم





پيښ شوم دَ هجران په نور خمار بانډِ عالمه
ستي شومه په اور دَ انتظار بانډِ عالمه
چيرته به عناب[1] شنډې بيا اوکسم چې سپ[2] يې کړم
تن مې تول کباب شهٔ دې روزګار بانډِ عالمه
کله به را اُووځم دَ بيلتون له کنډې ور چنه
څو به داسې ايښے يم انکار بانډِ عالمه
د رنګ دَ خوشحالۍ مې چيرته اونهٔ ليد خفه يمه
شيدا يمه دَ ګل په شان رخسار بانډِ عالمه
درد دَ اسمٰعيل دَ زړهٔ ډېر ډېر ورو په ورو پسې
له حده تير عاشق دے په خپل يار بانډِ عالمه



۱ عناب: مړ خنړے ۲ سپ کول: ښکلول

بنهٔ پوهیږمه په مینه ماشوم نهٔ یم
زهٔ عاشق په دلربا تش په نوم نهٔ یم
مینې ځان په ماله وخته پېژندلے
زهٔ غافله یوٗ ساعت له قیوٗم نهٔ یم
تورې زلفې به مې چرې هېرې نهٔ شي
هېرٔونکے زهٔ دَ داسې هجوم نهٔ یم
مینې لږ لږ زهٔ عالموته سرګند کړم
په دې پوهه یم پوره لا معلوم نهٔ یم
اسمٰعیل دَ مینې کار ښې سخا کاندم
په دې شکر دے چې مینه کښې شوم نهٔ یم



ذوالجلاله دا دُعا مې کړه منظوره
نجات راکانده دَ هجر له ناسوره
همیشه دَ یار دیدن زما نصیب کړه
رحم کانده په ما هر ساعت غفوره
هر ساعت مې ربه مینه سیوا کیږي
آئینه کښې راته ښکاري یار له دوره
همیشه به په آئین کښې دهٔ ته ګورم
زړهٔ زما کله صبرېږي له دې نوره

اسمٰعیل ځکه مدام هجران یادومه
کړه هجران په ما ویرانه اکبرپوره





د وفا په سمندر کښې د وفا په لوړ روان یم
د وفا بیړۍ کښې ناست یم ارماني د خپل جانان یم
د هجران له طوفانونو څخه هیڅ کوله نه شم
بیړۍ اوزپلم خلقه ځکه داسې په لړزان یم
ما به د عشق زړې چې مې څو وصل شوے نه وي
زه به ولې داسې نه یم چې مئین په عالیشان یم
زه د غم غزلې ځکه داسې لیکم دې سفر کښې
چې زه خپله له اړ له د غمونو بیابان یم
هر ساعت مې د غمونو شکوړ بنه ډک مخې ته پروت وي
په تمیز ترِ نه خوړ دن کړم همیشه په داسې شان یم
په غمونو مې حلق تریخ دے خواږه غواړم له خدایه
که خواږه د دیدن راکړي بیا به هر وخت کښې خندان یم
اسمٰعیل ژړا کومه چې خندا راله رب راکړي
خامخا یه مې نصیب شي په رښتیا په هائے سوران یم



څوبه داسې بې پرواله دلبر کړې
ډېر خفه يمه په تا چې اُوتر کړې
دَ فلاح بېړۍ کښې کېنه يار له درومه
بېله بوټه[١] به ترڅو در په در کړې
دَ ملاح څخه يارى کړه يار دَ پاره
بل څۀ مۀ کړه چې دَ مزکې په سر کړې
سرۀ ګلان دِ دَ بوستان ولې په هېر دى
چې به کله په لټون دَ صد بر کړې
دَ جانان مينه کښې توړۍ[٢] شه په هجر
صبح وشام به بيا تۀ ډېر په هنر کړې
دَ دُنيا په مينه مستنه غمزده شه
په دُنيا کښې به دَ هجر په نمر کړې
اسمٰعيل دِ په داچاره غمزده يم
داخو تۀ ئې چې لما نا خبر کړې

---

بې خودۍ کښې مې پرې نۀ خودۀ ستانام
هر ساعت ئې زوتوم په احترام

---

١ بيله بوټه: يک يواځې ٢ توړۍ: رانجه

وِرد دَ بل څهٔ به اونهٔ کړم چې ژوندے یم
اے آقا تا به یادومه صبح وشام

یوُخپو کے مې زړهٔ بل خوا نهٔ جاړ اوځي
مشرّف یم له پخوا پدا انعام

زړهٔ مې تا ته دَ اُلفت په سجده پروت دے
نهٔ جلسه کړي نهٔ قعده اوُ نهٔ قیام

سرئې چود دے ځکه سر هسکوے نهٔ شي
دائې حال شهٔ چې یوُ واړ دې شهٔ غلام

په ځلکو ځلکو سجده کښې ژړا کاندي
بل څهٔ نهٔ کوي هم دا دے دَ دهٔ کام

اسمٰعیل کوُکې وهمه زړهٔ دلاسه
چې به څو یم نا خبره له انجام

—— ✻ ——



دَ هجران په بیابان کښې دَ حُرمت بازار لټومه
غرض نهٔ لرم په بل څهٔ پکښې ځان له یار لټومه

زړهٔ په یار پسې رنځوړ یم یار دَوا ده ما دَ پاره
توره شپه کښې پسې ګرځمه تک سپین سحار لټومه

لوند ګریوان به مې اوچ نهٔ شي چې مې وَصل شوے نهٔ وي
دَ بورا په شان خزان کښې همیشه بهار لټومه

خبر نهٔ یم چې مې اوچ ولے کښې رب لیکلی څهٔ دي
زړهٔ به څو داسې کلاتو پسې سوړ انګار لټومه

دَ دلبر وَصل دَ پاره زهٔ فراق یم کاټره کړے
دَ بلبل په شان چغیږم حسین ګلیار لټومه

زهٔ دَ عشق په کار بندی یمه دَغم په جیلخانه کښې
جیلخانه کښې هم له غمه زهٔ دَ غم دا کار لټومه

اسمٰعیل به دَ نګار درګښې رګ[1] وروغ شمه عالمه
ځکه هر وخت زهٔ خپل رنځ لره زیبا نګار لټومه





چې مئین زهٔ په زیبا ګل صدبر شوم
زر ګذار بیا دَ فراق په سمندر شوم

حیران کړ کرشمه بجر کښې جور زهٔ
بنهٔ پوهیږم په دا چاره قلندر شوم

غنټه مار لاموږن ځکه زهٔ بیا دیږم
چې کوږ بجر ته دَ غم په لوئي ګودر شوم

دَ آفتاب مهتاب ساۓ پکښې لیدے شي
پسې پور ته کله تلے شم بے هنر شوم

زهٔ په بجر کښې متاز دَ وَصل اوسم
همیشه دیرار مانی دَ خپل دلبر شوم

عزرائیل ته انتظار زما ژبۓ کړه
ځکه داسې دَ دُنیا نه لاس په سر شوم

[1] رګ: جک جوړ

اسمٰعیل به دُنیا څهٔ کړم چې یار نشته
زهٔ په یار پسې له حده تیر کسکر شوم





دَ رخسار ګذار مې زړهٔ زرې زرې کهٔ
بیا ئې ځان پسې بیرون زر له سینې کهٔ
سمدستی ئې پرِ اور پورې کهٔ صحرا کښې
همه عمر ئې دَ اور په حوالې کهٔ
په اور سوزی دَ فهیم دلبر دلاسه
پسې درومی بنهٔ ئې عادت په اشارې کهٔ
دَ دلبر دَ در په لوری تل روان دے
هر ساعت ئې دَ بنګلا په ننداری کهٔ
ننداره له ورایه کاندی پسې ژاړی
بنهٔ پرِ پوهه یم بهړ ئې له خطرې کهٔ
دَ غماز لمسون ئې هیڅ کوٓلے نهٔ شی
یار بلد داسې په خپلې میکدې کهٔ
داسې زړهٔ به دَ جانان ولې خوښ نهٔ وی
اسمٰعیل چې ئې ګذار له ټاترې کهٔ



له عظیم اوره مې زړه باندِ اور بل دے
کسکو شوے پرِ زما دَ زړهٔ رِحَل دے

دَ فراق تاؤ مې زړګے همه پوخ کړے
دَ یار وَصل له رِحَل پورې انډوَل دے

بیلتانهٔ مې همه تن ټکوسترے کړهٔ
دهٔ تیر کړے په څو وار په ما اَجل دے

لا مې هغسې وژل که صبر نهٔ شهٔ
بندوبست ئې راته کړے مکمّل دے

دَ یار مینه چې څوک کاندی دا به ئې حال وی
لکه څنګ چې پرِستی زما ټکوکل دے

تل تر تله به دَ یار مینه زهٔ کاندم
کهٔ هر څو مې هر یوُ هډ پرِ باندِ دَل دے

اسمٰعیل دَ اَشنا مینې دیوانه کړم
په لیار سیخ څمه اَشنا له رب مې مل دے

---

دَ هجران په کوتل خیژم سا نیولے
دَ دیبار په څلهٔ اشنا یمه سېلے
زهٔ څېل ورایه دلبر زړهٔ کبنې درون کسم
همه تن ئې په جلوو راله سیزلے

زۀ دَ عشق دَ قانون هر ساعت ما تحت یم
ما مدام لره په رونړ تندي منلے

دَ بیلتون زو زان مې هر وخت زخمي کاندي
داسې غم مې چرې بل نهٔ دے لیدلے

دَ اشنا په لوړ به شپه اؤ ورځ روان یم
دَ وفا په رسو کلک یمه تړلے

احترام به مې دلاسه چرې نهٔ اوځي
ډېر په فخر یادومه خپل ښاغلے

اسمٰعیل دَ محترم یاړے پتې کړم
په څو واره مې پرِ سر اؤ مال بائیلے





ستا مژګان زما په زړهٔ کښې دی پیللي
ډېر عالم دِ پداچل ځان ته بللي

دَ وفا هم دا قاعده ده وفا داره
فریادونه مې په سر ستر کومنلي

له فریاده به خلاص نهٔ شمه ترمرګه
کهٔ هډوته مې هر څو دی سوزیدلي

اے دلبره تا په چرې زړهٔ هیر نهٔ کړم
ستا له رویه مې شراب دَ مهر څښلي

دَ همؤ مهرویانو دَ سر تاج ـه
ډېر عشاق په تور وغړو تا پسې تللي

مهر ویان دِ ښول دَ حُسن صفت کاندي
ښول په تا پسې کړیږي نازولي

اسمٰعیل دَ دار په سر تا پسې ژاړم
په دې وخت کښې ما په شان څوک ژړیدلي





ستا رخسار مې له مودو راسې پسند دے
زخمي زړګه مې پوړې هر ساعت پیوند دے

په نقاب کښې را ته ننه مدام ښکاري
توره شپه کښې دَ مهتاب په شان سرګند دے

توري سترګې به دِ چرې هېرې نۀ کړم
له پخوا راسې مې کړے دا سوګند دے

سلطنت دِ له الله ج ښائسته در کړے
هر عاشق دِ په هر وَل دَ زلفو بند دے

ستا له مینې به عشّاق څنګه جار اوځي
ترخلې شوے چې ئې ستا دَ مینې خوند دے

په فراق پسې دَ وَصل انعام آخلي
قبول کړے څکه دوئي دَ فراق ژوند دے

اسمٰعیل دَ فراق غشو ښول زخمي کړۀ
مسیحا ته څکه شپه ورځ مشتقمند دے



زه به څو ستا په رخسار پسې ګرېږم
اے دلبره لتا چرې نه صبرېږم
د فرقت ځانګو کښې ناست یم تا یادومه
خبر نه یم چې ترکومه به ژړېږم
شان شوکت به دِ لما چرې هیر نه شي
ستا په مینه به همه عمر سوزېږم
ستا په باغ کښې باغبانی له ربه غواړم
دَ فراق په اغزو ځکه زخمي کېږم
دَ عشق چارې کړه خدا لما نه هیره
بې له وَصله به زه چرې نه خندېږم
دَ هجران په ژرنده ډیر کوَنه دَل شوم
خدائے زده چې زه به څو داسې دلیږم
اسمٰعیل به دِ غزلو کښې تل ستا یم
ستا دَ حُسن په صفت کله مړېږم



په نصیب مې دَ غمونو ترانې دي
ما زده کړې ستا دَ حُسن افسانې دي
هر یوځل مې افسانې خپل ځان نه یادئ
سیوا شوې زما ځکه اندېښنې دي

دَ هجران په زوُلنو مې غوښې شينې شوې
رسيدلې مې په برخه زوُلنې دي
ستا دَ عشق سرطان مې زړهٔ همه قبضه کهٔ
ما چيچلې دَ هجران ترخې نيشې دي
اسمٰعيل دِ ديدن ځکه له رب غواړم
دا هم تا کړې په ما داسې کانې دي





چې گذار دِ څوک دَ عشق په تنارهٔ دي
همه عمر ئې ستا لاړې ته کاتهٔ دي
هميشه هم ستا دَ حُسن صفت کاندي
دَ بُلبل پشان سوړې سوړې په زړهٔ دي
ستا يارې کښې پاک دامن شوهٔ ستا له رويه
سوزيدلې په انکار دَ بيلتانهٔ دي
ستا له رويه ستا په روئ پسې ژړيږي
ستا له رويه ئې هير شوې خنديدهٔ دي
تول عشاق دِ ډير ليواله دي ديدن ته
له دُنيا نهٔ ځکه هر ساعت ماړهٔ دي
اسمٰعيل ستا دَ ديدن په طلب ګرځم
په نصيب کې ئې ځکه داسې ژړيدهٔ دي



دلربا مې خوبرويانو کښې سردار دے
روان ځکه مې له سترګو نه آبشار دے

درست جهان مې پسې لټ په لټ کۀ خلقه
ځان پټ کړے په نقاب کښې لما يار دے

هرساعت پسې ګرځيږم بل څۀ نۀ کړم
مقرّر راله ځايه دا رفتار دے

په خنجر مې همه تن پوټې پوټې شۀ
اثر ما ئيلے ئې خنجر په ما بار بار دے

د تقدير په زولنو کښې بنديوان يم
صبح وشام سلطان يادومه دا مې کار دے

له هجران څخه يارے زړې زړې کړم
هر ويختۀ مې له غمونو خبردار دے

اسمعيل د غم په تال جوتې وهمه
په نصيب کښې مې د فکرلوئې انبار دے



په سينه کښې مې د مينې اور بليږي
د تن غوښې مې پرې ورو په ورو ورتيږي

خوشحالي مې چرته اونۀ ليده خلقه
د هجران تندرونه هر وخت په ما لويږي

ټول زړګے مې په لمبو دننړي پولے شهٔ
چې به څو داسې په یار پسې ژړېږي

دړون انبار دَ غم زما په ولو پروت دے
ورځ په ورځ په دلربا پسې دړندېږي

ما دَ اوښکو سترتالاب له غمه جوړکړهٔ
اصطرلاب[1] کښې پکښې یار راته ښکارېږي

دَ یار مِهر کړم ماهر مِهر دَ پاره
صبح وشام مې سپین رُخسار څکه یادېږي

اسمٰعیل دَ دلبر مینې مستانه کړم
ماله دا مستي دې مینه کښې ښائېږي

---

لږ ساعت له دِ هم نهٔ شم هېرَ وے
په زړګي باندِ دې داسې یم داغلے

ستا دَ مینې سرمایه لرمه زړهٔ کښې
په مژګانو دِ په زړهٔ یمه ویشتلے

دَ فرقت زنځیر دِ زر زر لما ووړت[2] کړه
په دیدن پسې دِ خواب لما تښتلے

خوشحالي به څنګه اوکړمه دُنیا کښې
هر اندام چې مې دَ غم منګوړ خوړلے

---

[1] اصطرلاب: یو آله چې پرې دَ نمر او ستورو بلندي او مقام معلومیږي.

[2] ووړت کړه: پرانځه

همه تن می دَ یا داشت دریاب کښي وروست شهٔ
له پخوانه دَ فراق رمبې توکلے

له دُنیا نه نا خبر کړځم دُنیا کښې
زهٔ په عشق یمه دَ عشق بام ته ختلے

اسمٰعیل دَ عشق له بامه سوړے کاندم
په سوړو مې سوړے زړهٔ دے راوتلے





ستا دَ حُسن ننداره کړم ځکه داسې ډیر سوخته شوم
زهٔ به ولې داسې نهٔ یم چې عادت په میکده شوم

له ازله مې په برخه سوختګي ده رسیدلې
ستا دَ هجر په لمبو کښې یوه پټه خزانه شوم

ستا یادونه مې خوردن دے په دې پاڼمه دُنیا کښې
ستا دَ یادوله کبله زهٔ په مزکه ستاره شوم

ستا دَ زلفو په کوړ سوړې پسې ګرځم دَ عشق نمر ته
زهٔ مدام تا پسې ژاړم بل څهٔ نهٔ کړم دیوانه شوم

هر ساعت دِ توري سترګې یادومه په ژړا کښې
افسانه دِ زده کومه پرېښوله افسانه شوم

دَ بلبل ناري مې زده دي په زړګي باندِ غلبیل یم
اے مالیاره تا به ستا یم ستا دَ غشو نشانه شوم

لوټي انبار دَ بیلتانهٔ مې په سر ایښے دے ستا مینې
اسمٰعیل دِ په دیدن پسې څو وار زړه زړه شوم

ستا په مینه زما ټول هډونه دل شوه
ستا دَ در په لار مې ډیر غمونه مل شوه

دَ هجران پکړو[۱] تن زما ستې کړه
هر ساعت مې په نصیب کښې سوزیدل شوه

ستا دَ مینې کاروبار نه ډیر حیران یم
ډیر عشاق ګوته په خلهٔ در ته لل کل[۲] شوه

توري زلفې دِ په مخ خوري وري دي
مئین زړونه پرې بندي په هر یو ول شوه

محبوبا تا به یادومه چې ژوندے یم
په دنیا کښې زما کار هم یادول شوه

ستا په عشق کښې په غمونو کړکړ ځم
هم په تا پسې مې هر وخت ګرځیدل شوه

اسمٰعیل به خټک ستا مینه پټه کاندم
چې ښکاره زما حالونه په غزل شوه



زړه مې چود دے زهٔ دَ سپین مخ په ارمان یم
مئین شوے په ډیر ښکلی عالیشان یم

۱ پکړه: اَشر ۲ لل کل: حیران

زهٔ دَ همې طوفانونو يم نه يرې
لا زړې مې څکه ډير په هائے سوران يم
له نا ترسه ګذارونو څخه مخ يم
په کوتل په پوره ته خيژمه ناتوان يم
آرام ګاه ته په يوه واري ضرور رسم
دَ معشوق په شاباشي پوره ته روان يم
دَ شاباش ندا په غوږ وهر وخت اورم
زهٔ مست کړے په ندا باندِ جانان يم
دَ ممتاز ديدن ته هر ساعت ليوال يم
په هر دم اوه په قدم ترِنه قربان يم
اسمٰعيل په داسې بيا بيا قربانيږم
زهٔ پيدا دې قربانو له په جهان يم



دَ تسکين په ګلستان پسې مدام پورته روان يم
يوه بې مثله فضا وينم پکښې خپل ځان ته حيران يم
زهٔ دَ مينې په زور درومم بې له دې نهٔ شمه تلے زهٔ
مئين شوے له پخوا راسې په ډير بشکلي جانان يم
زه په اورسم وخت لږ دے خو دا لږ راته اوږد شوے
دَ ميئنوهم دا حال وي لکه زهٔ چې په لړزان يم
ورو په ورو په داسې حال کښې نزګيږمه دلبر ته
رسيدلے له پخوا ته دَ غمونو تر آسمان يم

چې په کومه ورځ آسمان ته راختمه زۀ له کیۀ[۱]
هم له هغې راپه دیخوا دَ کلونو په ارمان یم
دَ آسمان حد کښې روان یم ترمرګي به پکښې یون کړم
زۀ دې غم له غمه خلاص کړمه مرید دَ پهلوان یم
دَ وفا پرې مې سترې دی په دې شکر ګذار یم
اسمٰعیل دَ یار په مینه مړه خوا له دې جهان یم



په طلب دَ مسیحا له پخوا کرځم
په خندا پسې مدام په ژړا کرځم
دَ هجران انګښ مې څو وار ورمیږ غس کۀ
تو رلا شپه کښې پسې زۀ په یوسا کرځم
قوانین دَ دیدن سخت دی تول زخمي شوم
څوک مې نۀ کسی زخمونه تنها کرځم
په جانان پسې له ځان څخه کوریږم
ځکه داسې په دُنیا کښې دانا کرځم
خوږ اَشنا پسې مې هر وخت زړۀ خوږیږی
خبر نۀ یم چې به څو په صحرا کرځم
حقیقت مې هر یو هر زرې زرې کۀ
صبح وشام زۀ دَ حکمت په امسا کرځم

[۱] له کیه : له بنکته

اسمٰعیل لکه پتنګ شمعه لټوومه
چې ترڅو به په ارمان د رڼا ګرځم

په خپل رب باندې پوره پوره یقین کړه
د اتور زړه د د وفا په سیکون سپین کړه

یو ساعت هم قدردان محبوب هیر نه کړې
پوره ته درومه ځان محبوب ته بنده برین کړه

له سینې د کینه لرګانده په مینه
هر څه پوره ته ګنړه ځان ورته زمین کړه

په رښتیا عبد سبحان شه دروېغ پرېږده
په دا چاره ځان رښتونې ته حسین کړه

لکه برق به پرق وهې په ګلستان کښې
له دې ځایه ځان د یار د لاس نګین کړه

له تریخ خویه زر تر زره ځان فارغ کړه
په شیرین پسې دې خوئ دلته شیرین کړه

له غلیم څخه مدام مشت وګریوان شه
اسمعیله د نیکئ هر وخت تلقین کړه

له ښخوا يمه مړ شوے په څو واره بيا بيا مړ شوم
لاش مې هر وخت ګرځيندۀ دے له زمينه ترسماء
اسمٰعيل دَ ستا په مينه سوګند کاندمه دلبره
چې مدام لره به تا څخه کومه نۀ وفا

---

دَ هجران په ګټو لوټو دې سنګسار کړم
دَ يار مينې له دِ زړۀ په دې مالدار کړم
نور مې هم سنګسار وې داد عادت دے
په څو واره دِ دلدارېنې په دار کړم
په دلدارېنې مدام ګوشه نشين يم
ترمرګي پورې به داسې يم اقرار کړم
په سکروټو مې داغې ديدن دَ پاره
په فرياد کښې ارمانونه دَ ماليار کړم
دَ زيبا دَ مخ ارمان به ولې نۀ کړم
چې دَ يؤ وار په کاتۀ څخه ئې خمار کړم
چې مې زړۀ دَ چا په غشوټول سوړے دے
دَ هغۀ په مخ به نور هم ځان نثار کړم
اسمٰعيل دَ هجر توان لرلے نۀ شم
ستا په فضل زړۀ دا مينه دَ نګار کړم

---



د یقین په ستر محل کښې تل اوسیږم
د بلبل په شان ناري وهم ژړیږم
د رفیق د یار اړې ټوټې ټوټې کړم
نور مې هم ټوټې کوی ځکه بوکښیږم
د یقین محل نه ورځنه زړهٔ نهٔ ځم
همیشه د فکر تال بانډې ځانګیږم
د یار مینې دیوانه کړم په فکرونو
ځکه هر ساعت له ځان څخه وتیږم
نوراني ماهِ تابان له یرمه پرې الیستم
خبر نهٔ یم چې په څو پسې کړیږم
د ژوندون هره لمحه په ما قیامت دے
نهٔ ژوندے یمه دې حال کښې نهٔ مړکیږم
اسمٰعیل د عشق لمبو همه ستې کړم
تردید نه په زړهٔ داسې ستې کیږم

---



لاهو شوے یم د حُسن په دریا کښې
ډوب اوسیږمه طلب د مسیحا کښې
د ورو غنتون په لور روان یم فریاد کاندم
داسې ګران ژوند تیرومه په دُنیا کښې

دَ فراق په اغزو ټول زخمي زخمي یم
یاد ووم صنم مدام په هره ساکښې

دَ زیبا نګار په مینه بانډیا یم
لټومه تل رضا دَ یار رضا کښې

دَ یار مینې زړه دَ زړګي په ټول اخته کړم
یار مې راکړه ماله ډیر څه دې ادا کښې

دَ مجنون په شان جانان پسې ژړیږم
سپین رخسار له ورایه ګسم په ژړا کښې

اسمٰعیل به له نزده دیدن او کاندم
دا تحریر لولم دَ هجر په قلا کښې

---

دَ صنم دَ نور و سترګو په ارمان یم
ګرځینده پسې مدام په بیابان یم

ټول ګریوان مې په ټوټو او شکولوند خوشتګه
خدائے زده چې په ترخو زړه په لړزان یم

بیرندے بیرندے دروم دَ یار دړته
ډیر زړه چودے له پخواله دې جهان یم

دَ یار دړته په رمنهه سینه دروم
ارماني دَ هغه عمر جاودان یم

خارستان کښې په هنر بدم قدمونه
زه بلبل دَ هغه ښکلې ګلستان یم

همه عمر مې خزان زړې بهار له
دلربا پسې مدام ځیرې ګریوان یم
اسمعیل په خندیدۀ څنګه اوکاندم
چې د یار د تیر و غشو زۀ نښان یم

---

په نصیب مې ډېر غمونه رسیدلي
په لټون همیشه ګرځم د بناغلي
جُدائې مې په زړګي کړې ګیندې تیرې
راحتونه ئې تر همه واړه شړلي
د غمونو طائفې مې زړۀ کښې اوسي
نور غمونه ئې هم ځان ته رابللي
د سنګین فرقت د لاسه خوار و زار شوم
ځائے په ځائے شوۀ جوړ په ما د خاوړو غلي
مئین شوے زۀ د حُسن په بادشاه یم
په دې اور باندې ډېر خلق دي سوزیدلي
تول ژړګے مې بیلتانۀ سورے سورے کۀ
داسې ژړونو ته ویلے شي با ښلي
اسمعیله د عُشّاقو هم دا حال وي
ارمانونه ئې پس له مرګه رژیدلي

ستا په مينه د يادونو سمندر شوم
د ارمان په طوفانونو در په در شوم
لکه وريږې د هجران د اوره کښې پروت يم
لاس را اوږد کانده پتا پسې کسکر شوم
خوشحالي د زما زړه نه ده تروړلې
څکه داسې ډېر زخمي د زړه په سر شوم
په پوکومې ځان پخپله شين نو کے کړه
اسويلي مدام کومه بې هنر شوم
په استازي مې يقين دے زر به راشې
زړه بنه پوهه اوس د مينې په منتر شوم
ستا رخسار مې په چشمانو کښې غريږي
څکه تا پسې له حده تير اوتر شوم
اسمعيل چې د نا سا په ديدن اوکړم
بيا به تا سره مدام يمه خبر شوم

---

په چراغ د عشق مې زړه سوزي مدام
تا را کړے دے دا اور ماله انعام
ذوالجناح نه يم چې والوزم دلبره
چې د در ته شم داخل په احترام

زیب دَ یار به مې هیر نهٔ شي زندګے کښې
بې له عشقه نه اوسیږم دُنیاګے کښې
چې وربښي مې ترخووني په دُنیا کښې
یا دُومه به اَحسن هره سلګے کښې
روغه سته مې دَ یار مینې کړه خاوړې
راحت ځکه ما اونهٔ لیدیو کړے کښې
دَ لالي دَ سپین رُخسار ډیر ارماني یم
دیدن غواړمه مدام ډیره تُندے کښې
په مطلوب پسې مې خلقه زاړه شنه شوه
لټومه ئې صبح وشام دَ زړهٔ وادے کښې
هیڅ طاقت مې دَ دیدن نشته چې ئې اوکړم
دا په فضل دَ مولی کیږي خوارے کښې
اسمٰعیل به ګلدسته جانان ته پیش کړم
دا مې ایښې ده دَ زړهٔ په الماړے کښې

---

له نقابه چې دِ مخ راته سرګند کهٔ
زما زړهٔ دِ په خپل زړهٔ پورې پیوند کهٔ
سمدستي دِ بیا له ځانه څخه بېوړو
همه عمر دِ دَ هجر بند کښې بند کهٔ

اسمعیل له به ساقي شراب دَ مهر په جار ورکړي
ورله اوس هم یؤیؤ څاڅکے ورکوي خو په پرده کښې

٭

ځان څخه زیبا دلبر زړهٔ کښې ګرځوه

روز وشب دَ عشق هنر زړهٔ کښې ګرځوه

تش زړهٔ ګورے مهٔ درومه په تش زړګی به ځه اوکړې

توښه دَ هغه ښکلي دِ زړهٔ کښې ګرځوه

بد چا څخه مهٔ کوه ښهٔ کوه چې ښکلے شې

تل دَ جهنم خطر زړهٔ کښې ګرځوه

مهٔ ګرځه نا اشنا له یاره اشنا کړه ځان له یار څخه

دې رشتې له بحر و بر زړهٔ کښې ګرځوه

ژاړه دَ بلبل په شان په چغو چغو صبح وشام

غم دَ بیلتانهٔ خنجر زړهٔ کښې ګرځوه

دلته دَ یار مینه کښې ټول عمر مشغول اوسه

دا دَ کمال ډک زیور زړهٔ کښې ګرځوه

دا یؤ نصیحت مې ته واوره اسمعیله ته

خیال دَ دلربا جوړ زړهٔ کښې ګرځوه

چې کیده په ما دَ مینې ابتداء
دَ زړهٔ سر یاندِ سوړے کړم مقتداء
کاکُلے زلفو کښې ئې زړه زړه بندیوان کړم
په څو وارئ کړمه دَل په آسیا
آئنده به مې څهٔ حال وی نهٔ پوهیږم
په دې پوهه یم چې تل به کړم ژړا
نهٔ په سُکر کښې خندیږم نهٔ صحو کښې
په دُنیا کښې به مدام یم په غوغا
هم په قبض زهٔ راضی یم هم په بسط
بسط غواړم صبح وشام له خپل مولیٰ
په خپل مل مې بنهٔ یقین دے پسې دړوم
راکوی په لاره نښې دَ آشنا
اسمٰعیل کهٔ په یاړے کښې ډیر څهٔ زده کړهٔ
خو ډیر کم دې دا دیدن له دَ خوبا

چې دَ عشق شراب مې نوش کړهٔ په سکو شوم
نښانه زهٔ دَ فراق دَ توغندو شوم
پس منظر دَ قیصې نهٔ شم بیانولے
دَ یار مینې کړمه کونګ سر په میرو شوم

د الفت چارې زه داسې سنجیده کړم
خړ ریګونه شوه زما زړه د هغو شوم

رب دې ما د یار له مینې کنار نه که
زه عادت د تورو زلفو په وږمو شوم

ګوخې نه یم هر ساعت کښې مې رب مل دے
ورنه کوګې هر وخت کاندم په زارو شوم

بندي کړے ئې د بیلتون په زولنو یم
شین ګوشین زه د الفت په ناکردو شوم

اسمٰعیل متوکلِ یمه هر آن کښې
خبر ځکه د خوبا له علامو شوم





هر یو رګ مې همیشه وائی یار یار
له سینې مې مرکز جوړ دے د خمار

وظیفه مې بې له یاره بله نشته
ماله یاره ښخه کړے دا اقرار

په څو وار مې د عشق لار کښې مرګ اولید
همه عمر به اونه کاندم بل کار

بې له ربه مې ډار نشته له بل چانه
اوزګار به مه زه کله له دې ډار

د چمن په لوړی تله کړم یار د پاره
د فرقان په رڼا ځمه بیه دا لار

ستا دَ مینې په درون یل چوړې چوړې شوم
ځکه داسې دِ په عشق کښې هُنري شوم
یل دَ مینې مسلسل په ما ګردش که
ستا دیدن پسې بې مثله پرهړې شوم
زبرجد مې له کوکارو څخه جوړ شوګه
ډیر حیران یمه چې څنګه جوهرې شوم
دَ وفا په وَسله ما جفا مړه کړې
بنهٔ ویشتونکے دَ وفا دَ توغندې شوم
ستا دیدن پسې مې هر خوا دنیا کچ کړه
دَ فرقت په اور دِ هر ځائے کښې ستې شوم
باغستان کښې مالیارې له ربه غواړم
کهٔ صنمه ستا له رویه بنهٔ مالې شوم
اسمعیل به هر ساعت ستا مینه کاندم
ستا په مینه کښې خدائے ګو کمالې شوم

---

رسید لیږې مې په برخه انتظار دے
دا راکړے په انعام کښې شهریار دے
دَ هجران ملاتړ زما زړهٔ ته نوَتے
همیشه ئې ژړه وی هم دا ئې کار دے

لیې لیې اوښکې هر وخت تویومه
تول ګریوان مې په یا دونو تار په تار دے

دیرې سرېکې مې مدام له سینې خیژي
رانه دور له مودو راسي بشکلے یار دے

بیابان کښې په خپل یار پسې ورتیږم
په ماهر وخت دَ هجران نمر نیزه وار دے

لے په لے دَ دلربا ور پسې ځم
محبّت مې څهٔ لږ نهٔ دے بنهٔ بسیار دے

دَ دیدن سرې اوبهٔ له مودو غوارم
له پښخوا راسي مې پټ رانه مالیار دے

کپرے کښې مې ماغزهٔ له تاوه خورین شوهٔ
اچولے ئې ترلاندِ سور انګار دے

اسمٰعیله دُنیا ځائے دَ ژړیدو دے
ژړیدو پسې مدام دَ خندا وار دے

---

سینه مې ده پرویزه په مژګانو دَ خوبا
دَل یمه څو واره دَ بیلتون په اسیا

زړهٔ کښې مې شمشیر له مودو راسې ننوتے
لوار یمه تیر کړے دَ هجران نورې بلا

زړهٔ مې له ډیر ده ده دَ عقیق غوندِ شین شوے
ځکه شنهٔ لوګې مې له خلې ورومې تر سماء

ما باندِ سوکړه دَه دَ دیدن باران دَ یاره
کومه له مودو راسې زهٔ نمونځ دَ استسقاء

زهٔ په دې باران پسې باران کوم له سترګو
داسې دَ غم عمر تېروُمه په دُنیا

برخه دَ غمونو ئې اسمٰعیل لره وَرکړې
ځکه خوشحالی غواړي مدام له خپل مولیٰ

※

دَ زړهٔ سرمې په دلبر پسې چودے
په شنه لخته دَ فرقت ئې ډېر وَهلے

شینې تغمې دې پرې ولاړې ژړاکاندی
دَ آشنا په لورې دړومې سانیوے

ټکانه ئې دَ یار دړ دے نهٔ او داړې
له ځوګله پسې وړچنه وَستلے

بیابان کښې سفر کاندی دَ یار دړ ته
لاړ موندهٔ دے بل خوانهٔ ئې یار بللے

دَ دلبر په غم کښې هر وخت ناقرار دے
دَ یادونو طوفانونو دے زپلے

اسمٰعیله ولې داسې اوُتر ځورې
ماته پته دهٔ چې زړهٔ دې دے بائیللے

※

ستا په مینه کښې به مَست اوسم ترعمره
ستا په مینه مستانه ځکه یا دیږم

ستا دَ زلفو ورېږمې هر وخت په مالګې
په هر وَل پسې ئې له ورایه ډېر کرېږم

انتظار دې دیوانه کړمه دلبره
مدام ځان ځخه په تا پسې وشیږم

اسمٰعیل هم داسې بنه یمه دُنیا کښې
په عقبیٰ کښې چې بیا تا ځخه اوسیږم

---

زۀ له یار ځخه په زړۀ کښې همنشین یم
سپین رُخسار ته ئې زۀ کورم تماشبین یم

دَ زړګي آئین مې پاک دے پکښې ښکاري
ښکے خال ئې له مودو نه په جبین یم

دَ حیرت ځانګو کښې ناست یم جوتې خورمه
دلربا پسې عالمه ډیر غمګین یم

همه عمر مې دَ یار غم کښې تیریږي
زۀ خو ځکه دَ خپل یار دَ لاس نګین یم

په مژګانو ئې زما زړۀ ډیر زخمي کیږي
کذار شوے پسې زۀ په تا ترین یم

ترمې اوښکې مې په مخ باندې بهیږي
له پخوا راسې دَ اوښکو ابا سین یم

اسمٰعیل دَ عشق دلاسه سودائی شوم
ډیر مئین په رحمت اللعالمین یم

ستا په سپین رُخسار پسې دلبره ډیر ګرځیږم
ستا دَ بیلتانهٔ په اور زړهٔ هر ساعت سوځیږم

مُسکا دې مقدّمه ده چې کله به دې اُووینم
څوچې مې لیدے نهٔ یې ترهغې به ژړیږم

زړهٔ مې دَ بادام په شان سُوړے دے تول په تا پسې
ستاله ښکلی مخه به زړهٔ چرې نهٔ صبریږم

دشت کښې دَ دهشت تودهٔ بادونه په ما لګي
څکه دَ ریدی په شان په تا پسې رژیږم

خوږه ستا فراق مې خوب ته نهٔ پریږدی دُنیا کښې
تل به ستا دَ یادو په دُنیا کښې زړهٔ اوسیږم

ماله پسرے په دُنیا نشته راته پته ده
تهٔ مې پسرلے یې څکه تا پسې وسیږم

زړهٔ دَ اسمٰعیل کهٔ چا په خپلو سترګو اولیدهٔ
خپله به کویا شی چې په دې خونهٔ پوهیږم

ستا د حُسن صفت خوان یم بل څهٔ نهٔ کړم
همیشه دې په ارمان یم بل څهٔ نهٔ کړم
په زړګي مې د ستر غم بخې ستیرېږي
ځکه زهٔ په هائے سوران یم بل څهٔ نهٔ کړم
له سینې څخه مې جوړه ده پرویزهٔ
ځکه ځان ته حق حیران یم بل څهٔ نهٔ کړم
تاله مانه جوړه کړې ده پښتولهٔ
ګرځېنده پاس په اسمان یم بل څهٔ نهٔ کړم
د هجران قسمت پونړۍ مې راوتلې
له هجرانه زهٔ هجران یم بل څهٔ نهٔ کړم
نور چلونه په دنیا کښې څنګه زده کړم
چې د اوښکو اوربد باران یم بل څهٔ نهٔ کړم
اسمٰعیل به هم ستا مینه کړم دُنیا کښې
بس دیدن ته دې ارمان یم بل څهٔ نهٔ کړم

---

د عشق دیګ کښې ئې زړګے راله بشهٔ خوړین کهٔ
ارزو مندئ هر ساعت کښې د نسرین کهٔ
په تادے تادے مې اوښکې له مخ څاڅي
عالیشان تالاب مې جوړ په روئ زمین کهٔ

دَ زړهٔ سرمې دَ هجران په سيخ سوړے دے
په سرو وينو مې ځکر يوان ځکه رنګين کۀ
دَ اَستازي انتظار راله ژبے کړه
زما زړهٔ ئې بنهٔ په يار پسې غمګين کۀ
اسمعيل دَ عشق له چارې څنګه بس کړي
په دا چاره ئې کلام ورله شيرين کۀ

---

زۀ په بند کښې بنديوان دَ پاک جليل يم
بند دے ماله عدالت پکښې وکيل يم
دَ فراق له برندو سترګو ډيرو ډيرېږم
تور وغرونو څنګه ځکه داسې ليلے يم
دلربا پسې مدام لړه ژړېږم
له پخوانه پسې زۀ دريائے نيل يم
په چپو چپو دَ يار په لوړې ډوبېږم
دَ فراق په رنګ رنګ شوے يم جميل يم
دَ چپو غرمبا مې رسي تر آسمانه
ډير خوشحاله په راتلو دَ عزرائيل يم
عشق مې کار دے بل يو کار په چړې نۀ کړم
دَ عشق کار کښې خپله ځان لره ذليل يم
اسمعيل به لاس له عشق څخه وا نخلم
زۀ په دۀ باندِ دُنيا کښې اسمعيل يم

رب دې نور هم په ما ډرون کړي کار زما
کړي له برقه دې ښه تيز رفتار زما

د يار مينه کښې زړه شان وقفه نه کړم
ډېر خوشحاله پيدا کار دے يار زما

د ذيشان شان بيا نو مه په څوشانه
په زړګي پروت دے د يادو بار زما

په حيواد د زړه مې راج دلربا کاندي
د غم کاڼړو کړو بدن سنګسار زما

د صنم د اګووَل زلفو ارمان کړم
په دې زلفوځ دے کړے ښکار زما

لکه وړے په دومه کښې غل ورتيږم
له عالمو نه دے پټ دانار زما

اسمٰعيل په شاعرے زړه سورے کومه
خوښه وى څکه عالم اشعار زما

---

سنا د هجر تنبرکو[1] ډېر زخمي کړم
اے طبيبه څکه تاته تلالى[2] کړم
د غمونو په اور زه کوتره کيږم
د عشق چارو دې زه داسې فرياد کړم

---

[1] تنبرک: تيندک [2] تلالى: نارې

ته ئې فخرِ موجودات زما دلـــبره
ځکه داسې ستا دې مينې کمالې کړم

دَ فراقْ لړه چې لرې شي له مينځه
پس له هغې به مدام دَ ستا ياري کړم

دَ فراق لړه کښې تامدام لټــوم ــه
په ديدان پسې دې هرساعت خواري کړم

اے حسينه ستا ديدن له ربه غواړم
صبح وشام ورته ګکيا يمه زاري کړم

اسمٰعيل چې ستا په مينه شومه روږدے
زۀ له هغې ستا ديدن له تيارې کړم





ستا په عشق کښې دَ عالمو ننداره شوم
دَ هجران په ميچن څو واره چوره شوم

دَ عشق اور را باندِ بل دے ستا له رويه
په دې اور باندِ په تا پسې اِيره شوم

په ما هر وخت دَ عشق هاړدے ستا يارکښې
ځکه داسې دَ غمونو مقبره شوم

دَ زړا چاره مې زده ده ځکه ژاړم
ستا په مخ پسې دَ اوښکو فواره شوم

ستا دَ عشق باب مې په زړۀ باندِ ليکلے
په دا باب دَ عشق عالم له اِداره شوم

دَ عشق چاره له هَمَوُ چارو ده کړاته
بنهٔ شوه تا اووې چې زهٔ دې سهاره شوم

اسمٰعیل به دې یا دونه هر وخت کاندم
له غمونو به شم خلاص کهٔ دې سره شوم





دَ زړهٔ وَرمې لړکړے شهر یار ته
غوږې ایښے دے زما دَغم ګفتار ته

زهٔ دَ غم په غرکو هر ساعت ژوبلیږم
لکه ډال یمه ولاړ هر یوٗ ګذار ته

دَ حیرت په تال آشنا پسې برین یم
خیژولے دَ دهٔ مینې یم دې دار ته

دَ یار اُنس[1] دَ تبنښې په شان تک تور کړم
بنهٔ به سپین شم چې داخل شم دَ زیب بنار ته

دَ آشنا مینې دَ ستر همت خاوند کړم
څکه هر وخت تماشبین دے زما کار ته

دَ وفا دَ ګلستان ماهر مالیار یم
خپلې اوښکې وَرَوُمه لاله زار ته

اسمٰعیل دَ حُب اغز و څخه بلد یم
مدام خپله لمن خا یمه ریبار ته



[1] اُنس : محبت

د ارمان په اور سوزیږم له پخوا
دلبر با پسې ژړیږم له پخوا
د دیدن حرص اخستې یم عالمه
تورو غرو نه پسې لویږم له پخوا
له ساقي نه جام د مهر معمور غواړم
هر ساعت داسې وځیږم له پخوا
له پخوا نه مې له سترګو باران وورې
نهٔ او داړې بنهٔ پوهیږم له پخوا
له آفتابه په حسین جانان مئین یم
زهٔ په دهٔ پسې کړیږم له پخوا
صبح و شام ئې دیدن غواړم له خدایه
له سپین مخه ئې نهٔ صبریږم له پخوا
همه عمر به له یاره صبر نه شم
هر ساعت ترې نه زاریږم له پخوا
اے خدایه اسمٰعیل پوې نور مئین کړه
ستا په در کښې زهٔ لوغړیږم له پخوا

---

مولانا صیب د جانان د لاس نګین دے
څکه داسې په جانان پسې غمګین دے

هر گفتار يې له نباتو څخه خوږ دے
پرې مئين ځکه امام المرسلين دے

د باباصيبؒ په جمات کښې پيش امام دے
څوک خير نۀ دي له دۀ نه نازنين دے

د باباصيبؒ د اور بل يؤ تازه ګل دے
د زړۀ سترګو باندې اووينه حسين دے

دے د صبر عظيم ګنج دے ترې خبر شه
خپل مرشدؒ باندې له حده تير يقين دے

له مرشدهؒ له پښوا راسي فيضاب دے
په دُعائې دے رنګ شوے ډير برين دے

لوئې احسان الحق باندِ حق کړے
رب ته کلے بنګلے شخص په روئے زمين دے

اسمٰعيل يې صفت ځکه هر وخت کاندم
چې په پاک رب العزّتؒ باندِ شيرين دے





د غمونو بيابان زما ځيواد دے
رب په ما پسې نيکلے دا جائيداد دے

د غمونو په چوب هر ساعت ژوبليږم
يار په ما باندِ دا سود کاندې جواد دے

په جواد پسې مدام چغې وهمه
ما نيولے له پښوا زړۀ کښې مراد دے

زهٔ به څو دَ انتظار په کتو لګم
همه تن زما په دې کتو برباد دے
دَ فراق په چاړهٔ هر وخت حلالیږم
په دې حال کښې ښهٔ زما دلربا یاد دے
دلربا به له ما چرې په هیر نهٔ شي
دا په ځان زما پوره پوخ اعتماد دے
اے جانانه اسمٰعیل درپسې ژاړي
ستا په خلهٔ ځکه هر وخت پاشده باد دے





چې به کله رانما شي دل آرام
را وریبوی مې په زړهٔ ډیر ګل اندام
په زړګي راله غمونو کړې راخکې
تودې وینې ترې نه څاڅي صبح وشام
انتظار راله دَ تن غوښې ورَتې کړې
هیر به نهٔ کړمه زهٔ چرې ماهٔ تمام
هر ساعت ئې سر تیټیے کومه در کښې
کهٔ دا چاره مې قبوله کړه ګل فام
زهٔ به داسې شجاعت عمر له کاندم
کهٔ تیرومهٔ دلته هر څنګه ایّام
شجاعت به مې نیستي یؤوار کړي غسه
شهنشاه به شم دَ مینې په دا بام

اسمٰعیله چې مئین ئې نوګوم نهٔ ئې
وار خطا نهٔ شي ساقي نه غواړه جام





اے دلبره ستا په مینه کښې زهیر یم
هر ساعت په ننداره ستا دَ تصویر یم
ستا په لوړی کړندے ځکه نوندے دروم
ترمنزله به په تا پسې په وِیر یم
ستا په خواکښې به دمه مومه یاره
سترے کوے ډیر په تا پسې قدیر یم
ستا په مینه به موړ نهٔ شمه دلبره
دا دولت لرم په دې بانِدِ اَمیر یم
دَ بیلتون منګورے[1] چجه کړې ویلاړ دے
لاهو شوے دَ دې زهرو په بحیر یم
له بیلتونه ډېره نهٔ کاندم دُنیا کښې
زهٔ په دهٔ بانِدِ مدام روشن ضمیر یم
اسمٰعیل دُنیا ته شاه یم راغلے
هسې نهٔ اوسم دُنیا کښې زهٔ سفیر یم



[1] منګور: مار

پہ برین زیبا شیدا یم لہ پخوا
ځکہ لیږ هُم غلے نۂ یم لـہ ژړا

پہ دلبر پسې ژړا زما میراث دے
همہ عمر بہ کُومہ دا ادا

تول زړگے راټخنہ مینې قبضہ کړے
پہ مغزو کښې مې لہ غمہ دہ کړزا

دَ مضبوطې مینې مخ راپسې شوے
لما پاتې ځکہ داسې دہ دُنیا

دَ جانان مینې زۀ بنۀ ډیر دانشورکړم
ځکہ شوہ زمونږ دَ دواړویۀ رضا

سترگی غلې راله دَ اوښکو سیلاب خوږکړۀ
هرساعت لاړې څارم دَ مسیحا

زۀ دَ مینې آمدن باندِ پوهیږم
اسمٰعیل بہ مدام کاندم دا سودا



چې دِ نۂ وینم نو څنگہ پہ قرار شم
زۀ بہ تا پسې زړې بار بار شم
خوش نصیب یمہ چې ستا پہ بند بندی یم
بنۂ ستی بہ زۀ پہ اور دَ انتظار شم

په دُنیا کښې به هم دې اور باندِ سوزم
چې عقبیٰ کښې بیا دَ ستا دَ غاړې هار شم
درندې مینې دې هسې ونه زما مات کړه
په څوواره به په تا باندِ نثار شم
په شرابو دې مدام خمار کښې ګرځم
نور به هم داسې په تا پسې خمار شم
ستا په لوړی در روان یم دمه نهٔ کړم
په لیدلو به دې خلاص له دې رفتار شم
دَ محمّد اسمٰعیل دَ زړګې سره
ستا په مینه کښې به زهٔ ښهٔ پراسرار شم





په دلبر پسې له حده تېر نځور یم
سوزیدلے زهٔ په شان دَ کوهِ طور یم
خوشحالے پسې زهٔ هر ساعت ژړیږم
مێین شوے زهٔ په بې مثله حضور یم
په زړګي مې دَ اُلفت شرے راخښے
ژړم ځکه له طبیّبه ښخه دور یم
له ډیر غمه مې تالو کښې نمرے نخلې
په دې حال باندِ راضی له پاک غفور یم
زهٔ ولاړ یمه عشّاقو ښخه صف کښې
ګذار شوے دَ عظیم اور په تنور یم

تول عشّاق مې ننګیالے بولي عالمه
ځکه هر ساعت دَ پاک الله مشکور یم
اسمٰعیل چې له مرګي پورې عاشق شم
زَهٔ به هله دَ جانان په در منظور یم



سنا دَ مینې اور ستي کړمه نګاره
شپه اؤ ورځ ځکه سوزې کاندم بې واره
همه عمر به هم سنا محبّت کاندم
دا نارې وهم په تا پسې له داره
دَ فرقت په چپینک¹ پوتي پوتي شوم
سنا په مینه مې دا حال شهٔ شهر یاره
اقتداء مې کړې تا پسې امامه
چې شم پیچ دَ جهنّم له سور انګاره
دَ ملّاح په ښنک کینې ناست یم فلاح غواړم
اشارې هم داسې کانده له کناره
سنا دَ بنګلو اشارو نندارہ کاندم
بې له تا ځهٔ په جهان دَ زړهٔ قراره
سنا دَ زلفو په کوړ سورې پسې ګرځم
اسمٰعیل ور پسې ژاړمه دلداره

¹ چپینک : نوک تراش

○

په ما کړې ذوالجلال لوئ عنایت دے
چې راکړې ئې راله بنهٔ ډیر محبّت دے
دَ زړهٔ کور مې جدائ کهٔ لوټي لوټي
په دلبر پسې په ما باندِ قیامت دے
دَ جانان کوڅه کښې درې ورې پروت یم
مینه نهٔ پریږدمه دا مې جِبلّت[1] دے
دَ ساقي دَ جام شراب به مې نصیب شي
له پخوا مې قبول کړے دا دعوت دے
ساقي جام پسې دَ ډیرو زړونه رنګ کړهٔ
دا رنګون دَ دهٔ دَ مینې بنهٔ عادت دے
زهٔ ئې دَ فکر په تاال کینولم ترعمره
اختیار کړے مې په دې تاال سکونت دے
له مرګي پورې به زهٔ هم داسې زانګم
ما دَ پاره دا دُنیا کښې لوئ نعمت دے
دَ جانان منشور مې زړهٔ باندِ مسئلے
اسمٰعیله ولې نهٔ ډیر خوبصورت دے

---

○

زهٔ دَ عشق دَ لوئ پنګې خزانچي یم
ما منطق ونهٔ ویلے نهٔ دے منطقي یم

[1] جِبلّت: عادت

سر و مال مې تول له دې منطقه زار شه
همه عمر په زړه داسې سبقي يم

رب دې ما ته همه عمر دا رابښائي
هم دا غواړمه له رب څخه سوالي يم

دې سبق مې نور اسباق له زړه شړلي
هم دا وايمه په دې زړه کمالي يم

زما زړه ته دې سبق ژړا ښودلې
اے عالمه ژړه غونے ازلي يم

له ښخوانه د بيلتون په لمبو سر يم
له ښخوا راسې په يک يؤ تلالي يم

هر ساعت زړه جانان ستايم بل څه نه کړم
اسمٰعيل د خپل جانان د باغ مالي يم





د فراق شپه کښې لتومه تل خوبا
چې به کله شي په ما باندِ صبا

د غمونو په درياب کښې زما ژوند دے
لاهو شوے پکښې يمه له پخوا

لوئ طوفان مې زلې هر وخت په درياب کښې
ځکه هر وخت مدد غواړم له مولی

له ازله زړه غمونو له نا مزد يم
خلاص به نه شم له غمونو په دُنيا

ے تلالے : نا رہ

له دهشته زما هر اندام رپیږي
یَروے یم دَ حُب توري بَلا

کهٔ هر څو مې دَل کوي دَ غم په ژرنده
څوک به چرې زهٔ اونهٔ کړم له زیبا

اسمٰعیله زړهٔ دې پاک کانده له غیری
ځنکې چې پاکه له ویختو څخه ده ها





چې دې اُووَهٔ تیلے زما سینې ته
زهٔ له هغې راسې کورم آئینې ته

زړهٔ مې هر وخت ستا په لوري کړي توپونه
له مودو راسې روان دے میخانې ته

دَ هجران پیتې پرې دَ زړون ایخودے شوے
خیژوي يې دَ دیدن بالا خانې ته

کهٔ کُمک ورځخه نهٔ وے ستا دَ مینې
گذار شوے به وو ستري نا خانې ته

اسمٰعیل ته دَ هجران پیتې زر لر کړه
چې دَ زړون شي دَ اُلفت مهمان خانې ته



زنګين زړه دې په وفا بانډ رنګين کړه
دعالم د پاره ئې هر وخت اباسين کړه

په تول تن کانده د هجر بجے تيرې
تل ياد ونه د ډير ښکلى ماه جبين کړه

تول ګوګل دې د جفا په لوګو تور دے
اے تک توره هغه سپين لره ځان سپين کړه

د يار مينه کښې تول ځان نيکې تيکې کړه
تل د زړه په تخت مهمان هغه حسين کړه

زړه دې ورکانده بيائې مه غواړه تر عمره
برين يار نه روح وتن زير زمين کړه

د دلبر لټون کښې هر وخت مشغول اوسه
يوه ورځ به ملاقي شې دا يقين کړه

اسمٰعيل نورې خبرې چرې نه اورې
هميشه ورته خبرې د ياسمين کړه



د بيلتون په کانړو هر وخت سنګسار يږم
خبر نه يمه چې څو به زړه کړيږم

چې زينت څوک خوشبوي نو دابه ئې حال وى
لکه څنګه چې زړه يار پسې ژړيږم

په ژړا کښې د نګار ترانې وایم
د وفا چمتو کښې هر وخت چکنې کیږم

د لیمو چینې مې هر ساعت جارې وې
د جانان په لوړې دږومم ته اوږیږم

له آفتابه زکه په ډیر شکلې مٹین یم
څکه داسې صبح وشام پرې ډیر سوزیږم

له جانان څخه یارې مې زاړه شنه کړه
له مودو راسې دیوال غونډ نړیږم

په دیدن پسې ئې هر لوړې ته ګرځم
په دا چاړه اسمٰعیل ډیر ستړے کیږم





د اُلفت په خنجر ټول یم پرهر ژړے
هُم دې غم له دې دُنیا ته یم راغلے

دامیراث د پریخودو نهٔ دے عالمه
له آزله ئې په ما پسې لیکلے

د سینې په دُنکاچه مې زړګے پروت دے
په سجده کښې مدام ستائی هغه بناغلے

مسلسل به آشنا ستائی دائې کار دے
بل یؤکار ئې چرې نهٔ دے پیژندلے

انتظار رابانډِ هر وخت کړې کوا خونه
هر یؤ ځواخ ئې ما په سر سترګو منلے

دَ آشنا مُسکا به رب زما نصیب کړي
له پښتوانه مې دا پال دے راوستلے
اسمٰعیل خیله دَ عشق جمیل دلیل یم
هر غزل مې له یؤ بله ځکه ښکلے





دَ یار مینې چل راښودے دَ ژړا
هیره کړنې ئې لما ځکه خندا
رمز دَ مینې مې هیڅ ته معلوم نهٔ شهٔ
کهٔ هر څو کړم واویلا په دا دُنیا
دَ فراق په چوب زړهٔ هر وخت زخمي کیږم
په دې ګرم یم چې مې خوښه ده وفا
زما وُچولي[1] کښې رب داسې لیکلي
چې رسا به په زړهٔ لګم خاڅخا
ما دې غشو ته سینه لوسه نیولې
هر ساعت راکوې ماله دا سزا
بوله نهٔ یم چې له دې به تیښته کاندم
دیدار ما ته ښهٔ ښودلے داالا
هره ورځ مې دَ عشق په لمبو سوزي
اسمٰعیل یمه په دا حال ډیر رضا



[1] وُچولي: تندے

زۀ به څو دا ستا له هجره ژړیدۀ کړم
څو به داسې سر ببرے کړځیدۀ کړم
ستا دیدن له ذوالجلاله څخه غواړم
ستا په لورې به مدام لره درتلۀ کړم
دَ فرقت لښکرو ما باندِ را ایښي
زۀ به څنګه په دې حال کښې خندیدۀ کړم
همه عمر به دا ستا مینه پالمه
بې له مینې به زۀ چرې بل څۀ نۀ کړم
اسمٰعیل چې څو ستا غیږه کښې یروت نۀ یم
ترهغې به له چشمانو وریدۀ کړم

---

هیر به نۀ شی زما ستا ښکلے رُخسار
کۀ څو سوزمه دَ هجر په انګار
په سینه مې دَ هجران مارغان راګوردي
دَ زړۀ غوښې راله خوري شام سحار
سرۀ ګلان مې یاره تالره پیللی
اچوُم به درته غاړه کښې زۀ هار
ډیر غمونه مې په ماتِ کچکول کښې تول کړۀ
ترمرګې پورې به کاندمه داکار

ستا دَ وَصل گلستان پسې زړې شوم
داکانې دې په ما اوګړې انتظار
ستا صحبت ته ډیر مشتاق یم له پخوانه
له پخوا راسې بلبل یم ته مالیار
اسمٰعیل دې عالیشان دیدن تل غواړم
ترهغې به زیړګي کاندمه بار بار





ستا دیدن له ربه غواړم صبح وشام
دَ دلبر دلیر ناړې وهم مدام
ماپه تا پسې دَ اوښکو دریاب جوړکه
دړلیږمه هره اوښکه کښې پیغام
دَ دُنیا چارې دې واړه لما پاتې
ډیر زَده[1] کړمه دَ مینې دې صیام
ستا بشر راته په هرڅه کښې لیدے شی
حیران کړے یمه ستا دَ عشق نظام
اسمٰعیل له مودو راسې تلکے کړ حُم
نورمې هیڅ نهٔ دي پکار غواړمه جام



[1] زده : ستړے

چې اعزاز راله د مینې دلبر راکه
معلومات یې د خپل ذړه بنه جوړ راکه

د بیلتون د پړانګ په خوله کښې یې زه ورکړم
راله یې داسې ډک له ویره هنر راکه

د زړه سر کښې مې ډوغل یار پسې جوړ دے
پسې ژاړم داسې کار نامور راکه

هر ساعت کړمه پرواز د خوبا دړه ته
دې سفر له خدائے ښکلی وزر راکه

د دفاع چل یې راښودے دے له وخته
د جهاد اوزار یې ټول برابر راکه

له غلیمه مې هیڅ ویره چیرته نه شي
د شاباش آواز چې ماله صدبر راکه

اسمٰعیله پرواز نور هُم تیز اوکانده
ستا د پاره ریبار داسې خبر راکه

---

زهٔ په یار پسې له حده تیر بیمار یم
دیدن غواړمه مدام لره لاچار یم

د زړګي په سر مې خاپ د یارے جوړ دے
اوړ مې خستے دے له عشقه سورانګار یم

په کوم شان چې وومه هغسې اوس نۀ يم
شرابي شوم ځکه هر ساعت خمار يم

زړۀ ئې له ما نه په يؤ وارې دے تروړلے
له پښتو نه پسې زړۀ په سر د دار يم

غل غدو له ما نه هيڅ او ړے نۀ شي
زۀ مدام خپله دفاع کوم تيار يم

د دفاع چل مې جانان راته راښائې
پټه ئې کاندمه له خلقو پُر اسرار يم

اسمٰعيل به د ابليس دُښمني کاندم
ترهغې چې څو د يار په انتظار يم





ډير زخمي کړمه اغزو په خارستان کښې
په طبيب پسې نارې وهم هر آن کښې

د هجران تيرۀ نوکونه مې زړۀ کښې
ځې له سترګو مې رودونه بيابان کښې

د غمونو لوئې دوتر مې رسيد ے
راوَستے ئې چرې نۀ شمه بيان کښې

د کراؤ په ژړندۀ هر وخت اوړۀ کيږم
خوشحالي مالره نشته دې جهان کښې

مبارک مې په زړګي هر وخت راوړي
خبر نۀ يم چې به څو يم په ارمان کښې

دَ زیب بنار نه په څلکو څلکو روان یم
همه عمر مې تیریږي په خفګان کښې

اسمٰعیل دَ محبّت لوئ سودا کړیم
پسې ګرځمه مدام دَ غم باران کښې





مئین شوے لا په مخ دَ احسن نهٔ ئې
بورا ګکه لا دَ ښکلي چمن نهٔ ئې

چې تر کومه به هم دا ډکوسیلي وائې
یار به ستا شي خو چې تهٔ دروغژن نهٔ ئې

له آشنا څخه یارې رښتونې کانده
په وطن کښې هیڅ خبر له وطن نهٔ ئې

له رښتونو څخه هر وخت ملګرتیا کړه
چې بیا هلته دَ رِشخند دَ دُښمن نهٔ ئې

له چشمانو څخه چنې کړه روانې
ولې لوند تهٔ په ګریوان ترلمن نهٔ ئې

کوهِ طور غونډ په مینه ځان سکاره کړه
وروغ رمته هیڅ رنځور په بدن نهٔ ئې

اسمٰعیله اور دَ مینې په ځان بل کړه
بې له اوره تهٔ لائق دَ دیدن نهٔ ئې



ژوند به ښکه تیرومه په آرام
چي بندي یم له پخوا د عشق په دام
په زړګي کښي مي فرقت خوګه نسیتني
په ورو ورو تري خوردن کاندي صبح وشام
په دلبر پسي مي شونډي اودي شوي
تختوے خوب لما نه کړل اندام
حق حیران یم چي به نور څه راپيښیږي
رسیدلے مي په برخه دَ عشق بام
ما فراق مدام راکاږي په صحرا کښي
تیرومه په دُنیا داسي ایّام
هر اندام راله قت کانړو دے تو ګلے
دا په دي چي له ساقي غواړمه جام
اسمٰعیله په هرآن دي خدائے مل شه
شه له شاتو دي شیرین هر یو کلام

---

ځان ښخه کوه یکمه ډیر ستړے کوریدو وکړم
داسي دیوانه زړه په یو وار دَ یار لیدو وکړم
خبش څمه دَ هجرا په ګګل کښي دَ یار درته
هر وخت ارمانونه دَ جانان دَ میکده وکړم

*ه خوښه به خوښي دي څکلي شي*

څاڅي مې له سترګو ترمې اوښکې دلربا پسې
ډیر سورے سورے په زړه په دغه پسې ټلګو کړم
ما په دلربا پسې په اوښکو ګریوان وروست کړه
ګوره مه ګریوان ته ډیر حیران دې ننداروکړم
دروغ به شي ګریوان زما په وخت دملاقات کښې
بیا به همه عمر تماشه دخندیدو کړم
څو چې مې دیدن ددلبر نه وي نصیب شوے
ټول عمر به کاروبار هم دا دژړیدو کړم
منتر ما اسمٰعیل بانډ دمینې له پخوا شوے
مدام لره ستی زړه دمنتر ذې سرولمبو کړم



زړه په یار یا نډ مئین یم له پخوانه
چې به کله دیدن او کړمه سبحانه
په نیزه دغم مې زړه سورے سورے دے
په ګریوان مې اوښکې څاڅي له ارمانه
ما لیدلي نقاب کښې پټ دے رانه ښکاري
لکه شمع چې پرده کښې وي روښانه
انتظار له برمه پریستم څکه ژاړم
تردیدنه به قضا نه شي لمانه
په سینه مې هجران پنجې خښې کړې
هر آواز مې څکه رسي ترآسمانه

زۀ قابل دَ دلربا دَ مینې بنۀ یم
دا کرم دے ستا په ما غنی رحمانه
اسمٰعیله دَ زړۀ سودې دے چودلے
صبر کانده داسې کیږی له خفگانه





په طلب دَ طبیب ګرځم طبیب لا ر راته رابنائ
هر ساعت چې پرې ژوبلیږم داسې کار راته رابنائی
کړوې مې ځان پسې چې بنۀ جوګه شم دَ مرهمو
مدام ګورم خپل ګرېوان نه تار په تار راته رابنائ
وهم چغې په طبیب پسې له ډیرې مودې راسې
هر یؤ غږ سره دَ دار په سر یل دار راته رابنائی
په خمیر کښې مې غمونه له ازله اغږلي
دَ غمونو په سبب عجب سنګار راته رابنائ
اسمٰعیل به طبیب څنګه هیرومه چې رنځور یم
داسې ځکه له فریاده ډک اشعار راته رابنائ





دَ دیدن دَ پاره تل انتظار کاندم
توقع لرمه دا به یؤ وار کاندم

دَ آشنا مینې زړهٔ داسې دیوانه کړم
چې مدام لره نارې دَ یار یار کاندم
دَ بلبل ادا مې زده دَ یار په عشق کښې
همیشه ځکه ارمان دَ ګلزار کاندم
غم زما له حده تیر دے ځکه ژاړم
دَ آشنا په لوړی هر وخت رفتار کاندم
رب دې ماچرې جوُود نهٔ کړې په عشق کښې
صبح وشام به ګریوان داسې تارتار کاندم
زهٔ دَ یار دَ پښو دَ خاوړو لائق نهٔ یم
چې مئین یمه نو څنګ به قرار کاندم
دَ یار مینې ته مې ګلکه ملا تړلې
جار به نهٔ اوځمه عالمه اقرار کاندم
له پخوا مې دَ فراق تمخه اخستې
په زړګي کښې ئې راله ایښې ناتار کاندم
په ناتار کښې به همه عمر ستیرومه
اسمٰعیل ځکه ګفتار دَ اسرار کاندم





اے خدایه ماله ښکلے جانان را
په بوستان کښې دَ سروګلو سلطان را
چې پخپله پرې شیدائې زما رب ه
تل دیدن دَ هغه ماهِ تابان را

جوود: شوم

چې ئې تا میلمستیا کړې لا مکان کښې
راله زړ تر زړه هغه مهمان شه را

چې جانان مې پرې مدام راته لیدے شي
لټا غواړم ماله هغه چشمان را

پیر عُشّاق چې ئې په تورو غرو سر کړي
دا بې مثله خوبصورت پهلوان را

له پخوا نه مې زړهٔ ځان کښې پسې کړې
ما زړهٔ ستړی اسمٰعیل له ذیشان را



زهٔ به څو داسې لټا نه جُدا کړم
ستا په عشق کښې مره خواله دُنیا کړم

د بیلتون کاړیم ډوب کړے تا لټومه
زهٔ په تا پسې په تل د دریا کړم

د کوشش په توره تول زخمي زخمي یم
توره شپه کښې په طلب د صبا کړم

د فرقت په غشو هر وخت په زړهٔ لګم
ترمرګي به په توکل د خدا کړم

اکبر پوره به په ما ترکومه اوروی
اسمٰعیل در پسې دلته هر خوا کړم

په ګرېوان به مې اوچ چرې بحير نهٔ شي
عاشق نهٔ دے چې په عشق کښې زهير نهٔ شي

سراپا[1] دَ يار بې مثله کښې وښيرم
په بل څهٔ به مې روښانه ضمير نهٔ شي

دَ يار يادو مې له زړهٔ نه رباب جوړ کړهٔ
ځکه ما په شان ګوړے څوک وِير نهٔ شي

دَ فرقت په مضراب[2] لګم زخمي کيږم
نير و بير به له ما چرې تصوير نهٔ شي

اسمٰعيل به هميشه تصوير ته ګورم
چې غلط رانه دَ مينې تحرير نهٔ شي

---

اے زما دَ زړګي سره شهر يار ره
لتا زار شمه قربان په څوځو واره

زړهٔ مې تا پسې پخوانه سوړې کاندي
دے به بس نهٔ کړي تر مرګه له دې کاره

چې آغاز اؤشهٔ زما او ستا دَ مينې
يم له هغې را په ديخوا ناقراره

[2] مضراب: هغه اوزار چې رباب وغيره پرې غږوي.
[1] سراپا: هغه کلام چې پکښې دَ چا خد وخال بيان شوي وي.

چې هميش لره به کله ديدن کاندم
نقاب لوکړه زړ تر زړه له رخساره

ستا ياري بس د الله په کرم کيږي
چېرته زۀ او چېرته تۀ زما دلداره

ټول زړګے مې د وفا د ړنجوړک دے
ستا په عشق کښې شۀ رنجور وه وفاداره

چې ترکومه به وتاته زۀ پسخيږم
نۀ پوهيږم کړه خبر مې له اسراره

اسمٰعيل دړ پسې اوښکې وروُمه
همه عمر به يياري کوم نګاره

---

ستا په لوري مې نيولي تل چشمان دي
په څو وار مې سر و مال لتا قربان دي

همه تن مې شۀ کسکوهم ستا په مينه
شنۀ لوګي مې رسيدلي تر آسمان دي

له پخوا نه ستا د ميني ډب کښې ډوب يم
ډير ډوب کړي تا په دې کښې عاشقان دي

په سينه کښې مې د عشق تپش ځائے شوے
ټول رګونه مې په دې باندې روښان دي

همه زړۀ مې د غزلو خزانه ده
ستا له مخه رب راکړي دُر مرجان دي

اسمٰعیل سر ښیږي تا ته مدام کاندم
د یو عالم راته جانانه حق حیران دي

---

د فرقت منګوري زړه همه په ځله کړه
صبح وشام ئې پرې غمونه وُلمانه کړه

هر ساعت پکښې د یار لښکر شروع دے
لا تراوسه ئې پرې غمونه مات شه کړه

معلم ورته ژړا مدام وربښائي
همه عمر ئې نصیب رب ژړیدہ کړه

د ژړا تشریح په ژبه بانديکاندم
خبرنه یم خندیدہ ئې ترې نه څه کړه

له ګرونجه ئې راله زړه دے غورزولے
سرولهبوکښې یار په ځان پسې سکاره کړه

د یسش یسش ناري وهي ژړاکښې
څکه زده مې په دلبر پسې بناته کړه

د بېلتون په لخته زه زمبے کیږم
اندامونه ئې په دي راله تک شنه کړه

په دلبر پسې زما وخکي پاخه دي
د یار میني زده په ما دا پخیده کړه

اسمٰعیل یار پسې اوښکي ورومه
تول تارونه ئې د ګرېوان راله وراسته کړه

دَ رهبر رهبرے زۀ راسې رهبر کړم
له دُنیا ئې همه عمر لاس په سر کړم
خارستان کښې راشخه بنهٔ مرسته کاندی
زۀ یا دونه هر ساعت دَ خپل دلبر کړم
دَ بیلتون ګګل[۱] کښې هر وخت بوخت روانیږم
ډیرې مینې دَ آشنا زۀ در په در کړم
هم دامینه مې غښتنه له کردِ کاره
یار مې زۀ دَ مینې بنهٔ ستر سمندر کړم
هر ساعت به نوره مینه له رب غواړم
ترمرګې پورې به زۀ پسې سفر کړم
اسمٰعیل دَ یار په مینه نهٔ مړیږم
ذوالجلال پسې له حده تیر نهر کړم



په سینه کښې مې دَ مینې ساز غږیږی
دلربا مې په زړګي ډیر را وریږی
دَ فرقت ترخز مې هر څه کۀ توتکي
په دې اور کښې له پخوا سیزلے کیږی
معظّم به له ماچرې په هیر نهٔ شي
دَ بُلبل غوندِ مې زړهٔ پسې چغیږي

۱ ګګل: خټه

دَ فردوس دَ شهنشاه نوکری کاندم
تول دکونه مې مدام ټکه وټيرې

دَ يار مينه به پرېنږدمه عالمه
تر هغې چې شو مې رُوح تن کښې اوسيږي

اسمٰعيل چې تر څو يار ليدلے نهٔ وي
رو دِ نيل به ئې له سترګو رابهيږي





ستا ديدن پسې به ولې پريشان نهٔ يم
مادې مينه پېژندلې ناداں نهٔ يم
بېلتانهٔ مې دَ زړهٔ کورکړلوټې لوټې
هره لوټه ئې رژيږي پښيمان نهٔ يم
تو مرګې پورې به دا رژيدهٔ غواړم
په دُنيا کښې دَ بل څهٔ په ارمان نهٔ يم
له پخوا راسې مې بريخ له سينې خيژي
کرځيدلے ورغ رمت په جهان نهٔ يم
اسمٰعيل به ستا دَ ياد ورد کومه
زهٔ عادت دَ بل يؤ شي په ګردان نهٔ يم



دلربا پسې مدام لړه په وِير شه
په دا چاره ئې نهٔ خوا ته بنهٔ تزکير شه
توبه کار شه، دَ اُلفت په لاره درومه
په آشنا پسې په دې جهان زهير شه
بې اُلفته ژوند غربت دے کهٔ پوهيږې
زړّيه دَ اُلفت خپله کړه امير شه
دَ وفا اعزاز حاصل کړه په دُنيا کښې
نهٔ عالم لره دَ مينې لوئې بحير شه
کناره شه له جفاچې يار موندهٔ شي
يار رضا کانده بنهٔ ئې پوهه په تقرير شه
پاک الله ج به دې په زړهٔ ليکل اوکاندي
زړ نر زړه نهٔ جوکه دَ دې تحرير شه
مسافر ئې دَ الله ج پيژندګلو له
اسمٰعيله نيک بنده دَ پاک قدير شه



رب دې راوله مدام لره دلبره
زړهٔ مې تا پسې ژړيږي معطّره
دَ بيلتون په سرو لمبو کښې دې يادومه
هير به نهٔ کړمه تا چرې منوّره

چې ترکومه به روپوش ئې ته له مانه
ځان را اوښايه زما لختِ جګره

همه عمر زه دَ فکر په تال ځانګم
څکه تا پسې مدام خيژمه بره

زه اؤغم دواړه همزولي يؤجانانه
ورو په ورو څکه ډيرېږی ناز پروره

دَعشق رسم مې هم ونه تول چوره کړه
داکاڼي کيږي په ما هم ستاله دړه

دَوفا رنده مې تراشي ستاله رويه
په دې ډير شکر ګذاريم دَ زړهٔ سره

دَ زړهٔ چغې مې له عرشه پورته لاړې
ډير زيبا عجيبه نوره اؤ بشره

اسمعيل دې دَ دَرخس هم نهٔ يم ياره
خوسنا مينه مې پښهٔ اوليده ځوره





زړهٔ مې غواړی ستا ديدن له مودو راسې
دے شروع مې ځنګدن له مودو راسې

زړهٔ مې ورے[1] چنه په تا پسې وَتلے
اَرمانې دے دَچمن له مودو راسې

دَيادونو ستر کفن ترِ نه چاپير دے
پښتوی ځان په کفن له مودو راسې

[1] ورچنه : بهر

دَ فراق لمبې ئې خلقو نه پټ سيزي
يادَوي ستا ګل بدن له مودو راسې

دَ وفا طريقه ئې يادَه ده ستا عشق کښې
پريښې ئې تا پښې وطن له مودو راسې

اسمٰعيل به دې ما تخت او سم ترمړکه
ما زده کړې دا سې فن له مودو راسې





په دلبرۍ سې مې زړهٔ مدام خوږيږي
تورې سترګې ئې له ما کله هېريږي

دَ ديدن ديدن په چغو مدام سريم
يوم دَ هجر مې په زړهٔ کښې خبس اوسيږي

دَ غم بيا سته مې له ننه کلکه تاؤ ده
دَ مرګي په ورځ په دا سپر دے کيږي

دَ حسين دلربا چير نه ثانې نشته
ډير عالم پسې له توروغر و ليليکي

دَ عشق لاس له حده تيره ده دشواره
پرې هډونه دَ رنځو په څير اوړيږي

فدايان پرې دَ الله ج په فضل دړومي
هر ساعت ئې زړونه يار پسې ژړيږي

په تقديريې دا ژړا ده رب ليکلې
پس له مرګه به مدام لړه خنديږي

اسمٰعیل دَ خنده رویه یار دلاسه
دیوانه دے تل له ځان څخه وشړي





په سینه کښې مې اور بل دے له پخوا
ځکه هر وخت یادومه دلبر با
چې مدام لره دَ غم په غرکولکم
زهٔ به څنګ خوشحالي کاندم په دنیا
دَ یار عشق کښې له ځوانے نه خبر نهٔ شوم
یم تیر کړے له پخوا تورې بلا
دَ بلا کیدهٔ کښې زهٔ عبدِ یزدان شوم
ځکه یار پسې کړمه واویلا
غمخوري ئې په قسمت راله لیکلې
زړهٔ مې ځکه هر ساعت کاندي ژړا
له ژړا نه دې رب چرې غلے نهٔ کړي
دَ وِیر ځائے کښې به او نهٔ کړمه خندا
دَ وفا رسے مې کلکه ده نیولې
اسمٰعیل به چرې او نهٔ کړم جفا



په نقاب د مینې پټ یمه عالمه
حیرانتیا حاصلوم له هر قدمه

مینځه کړے راته لاره د عشق راښائي
ځکه یار څخه یارې لرم محکمه

نتیجه به مې آخر دیدن د یار وي
ترهغې به کړندے په لاره ځمه

د سینې رحل مې ټول سوړے سوړے دے
یار مې ځکه راته ښکاره یې له عجمه

د زیبا په وَل وَل زلفو بندیوان یم
په هر وَل ئې ځکه بیا بیا داسې مرمه

د دلبر رخسار مې چرې نه هیرېږي
په هر دم اوئ په قدم ئې یادومه

پاک الله دې محبّت راله سیوا کړي
هم داغوارم هسې نه چې یم بې غمه

نش کوکل د دلربا په لوړي دروم
له پخوا مې زړه زار کړے له کل فنه

اسمٰعیل د مسیحا یارے ستی کړم
دروغ به نه شم بې د وَصل له مرهمه

*

زه به ستا د تورو زلفو په ارمان يم
چې ترکومه زه ژوندے په دا جهان يم
زه له هجره نيستنه نه کوم ترعمره
ستا د عشق له برکته پهلوان يم
سرنګون درپسې ګرځمه هر لوري ته
ځکه تاپسې د اوښکو اوربد باران يم
ستا ديدن له نيني چيچم د فولادو
دا به دغسې چيچمه زه افغان يم
اسمٰعيل د ميني کار کښې مړنے يم
ځکه داسې ډير زخمي په خارستان يم

---

ډير غمونه دي په سر انبار زما
چې به کله راشي ښکلے يار زما
ما د عشق درياب کښې داسې ورده اوکړه
لربه نه شي يو ساعت خمار زما
زما يار زما خمار ته خوشحاليږي
له خپل ياره سرو مال دي جار زما
د بې دريغه ګذارونو څخه مخ يم
ګريوان ځکه دے همه تار تار زما

اسمٰعیل دَ یار په لوری سیخ روان یم
چې په کله سر ته رسی لار زما





زهٔ مئین دَ دلربا په سپین رخسار یم
همه عمر به دَ دهٔ په انتظار یم
دَ هجران په تبر هر وخت ټوټې کیږم
زهٔ هم هغسې یار ستا یم وفادار یم
دَ فراق په میچن ژوواره او رهٔ شوم
هر وخت ځان او رهٔ کولو ته تیار یم
له دهته مې ناري یار پسې خیژي
په خوبا پسې زهٔ شپه ورځ ناقرار یم
زړهٔ مې هر وخت بنهٔ په چغو چغو ژاړي
اسمٰعیل دَ خپل زړهٔ کې نه خبردار یم





چې په زړهٔ کښې دې دَ یار محبّت نشته
ځکه یار څخه لا ستا شناخت نشته
محبّت له کردګاره څخه غواره
دیر سپیرهٔ یې در کښې دا علامت نشته

بې له مینې انسان نهٔ يې زړ انسان شه
اے نادانه له دې بل لوې قوّت نشته

نور غافل په دُنیا مهٔ ګرځه وخت لنډ دے
چې داولې بیدارے ته دې نیّت نشته

بیدارے له کودکارې پیدا کړے
په تا څهٔ چې دړ کښې دا حقیقت نشته

هر ساعت دَ عشق مشتاق اوسه دنیا کښې
په دُنیا کښې داسې بل يوُ دولت نشته

اسمٰعیل په دې دولت چرې موړ نهٔ شوم
همیشه مې له دې کنجه رخصت نشته





دَ عطّار تلاش کښې اوځه چې عطّار شې
برادره چې به کله وفادار شې

دَ عشق يوُ ټکے دِ نهٔ زده کوې لافې
دې مکتب کښې سبق وایه چې هوښیار شې

هیڅ خبر نهٔ يې چې څهٔ له يې راغلے
نیکي کانده چې دَ یار دَ غاړې هار شې

اے نادانه زړ کړه بدې چارې پریږده
دَ عشق چاره، مدام کانده چې مالیار شې

دَ حسد زنګ دې له زړهٔ څخه زړ دور کړه
دَ اُلفت په رنګ يې رنګ کړه چې دَ یار شې

په توبه دِ دَ سینې بجمه کړه پاکه
چې دولت دَ مینې دې کاندې مالدارشې
یار به تا ځنه خبرې دَ راز اوکړي
چې وروسې ئې دَ ګفتار په انتظار شې
اسمعیل دَ دار په سر یارې زده کومه
ستا به هم داسې زده کیږي چې په دار شې

---

یوه ساعت لره خلاص نهٔ شوم له غمونو
بیابان کښې کړم زرې زرې دردونو
دَ غمونو یخ مې تل زړهٔ کښې اوسیږي
دَ مرګي په ورځ به خلاص شم له آهونو
دَ فرقت دَ برندو سترګو اموخته یم
تول زړګے راله کړو تا کي فریادونو
همیشه مې له زړګي اوښکې زنزیږي
زړهٔ مې چودے دے دَ یار په تپوسونو
همه زړهٔ مې تلوسو دے قبضه کړے
دَ یار مینې ښهٔ پاک کړے له ګردونو
دَ یار مینه کښې مې تول عمر تیریږي
سیلانے یمه له ورایه دَ ګلونو
ما ته هر وخت ربیار داخبر راکاندي
دوب اوسیږه په دریاب کښې دَ فکرونو

اسمعیل دیدن دَ یار هدف تہ کلے
ترهغې به پسې ځي په تورو غرونو

---

په خندا پسې ژړېږمه عالمه
دَ هجران په اور سوزېږمه عالمه

په حجاب کښې له عالمونه پټ ګرځم
چې ترڅو به زړه کړېږمه عالمه

له عالمه پټ دَ دیک په شان یشېږم
چې په څو داسې یشېږمه عالمه

دَ جانان په لوري چټک مدام درومم
ترې هیڅ کله نهٔ صبرېږمه عالمه

په ګلزار پسې په دشت کښې تل روان یم
په اغزو ډیر زخمي کېږمه عالمه

همیشه دشت کښې له ځان څخه کوربږم
تر دیدنه به کوږېږمه عالمه

اسمعیل به دا پښتو همیشه کاندم
نهٔ ژوندے یم نهٔ مړکېږمه عالمه

ډېر زخمي په خارستان شوم د مرهم په ارمان يم
د طبيب په لوري درومم په طبيب باندې قربان يم
له ژړا به هله بس کړم چې د يار د غاړې هار شم
ترهغې به پسې ژاړم چې ژوندے خو په جهان يم
ميني داسې ديوانه کړم چې له ځانه يم ورک شوے
هميشه زه په دا حال يم څکه خوش ډېر د جانان يم
زه د مينې سودا کړيم مينه غواړمه له مينې
زه په بحر بې کران کښې ډوب او سېږمه حيران يم
ماه جبين په زړه سورے کړم د وفاغشي را اُولي
اے عالمه له پخوانه د دې غشو زه نيښان يم
اسمٰعيل د يار د مينې تل سوالي يم دا مې کار دے
دا ګدا به زه کومه پسې هر وخت په لړزان يم

※

تجمّل له مانه زړه دے تختوَلے
په نصيب مې داسې غم دے رسيدلے
هر ساعت مې زړګے مروړي څکه ژاړي
په څلکو څلکو کښې ستا ئې خپل بنا غلے
په عالم کښې مې ثاني د جانان نشته
ترهسې خوبرويانو دے ډېر ښکلے

ډېر قوّت ورله ورکړے ذوالجلال دے
دَ معراج په شپه له عرشه پورته تلے
عاليشان ته حيرانتيا زما دوتر دے
دا دوترې په دماغو غوړېدے
زۀ دَ فکر په تړال هر ساعت زنګېږم
له دې تړاله چرې نۀ يم غورزېدے
دَ علیؑ شير يزدان په دُعا رنګ يم
اسمٰعيلؔ ئې يم په مزې کښې پائېلے

هر ساعت مې دَ جانان نوم په زبان دے
پيدا کړے رب عالمو کښې سلطان دے
عجيبه ګل مې دَ زړۀ ګمله کښې شوے
دَ ګلاب په شان ئې رنګ دے عاليشان دے
په اغېز وې سينه هر وخت سوړې کېږي
همه تن مې ځکه داسې په لړزان دے
لړزېدۀ به ولې نه کړمه عالمه
چې په مينه مې رېخې رېخې ګرېوان دے
اسمٰعيلؔ وړپسې ځکه مدام ژاړم
دے له هر چا نه په ما باندې ډېر ګران دے



چپاوُونه مدام کاندمه دریاب یم
آهنګونه مې په زړۀ کښې دی رباب یم
ټول ګوګل مې له سکروټونه ډک شوے
له مودو راسې په یار پسې کباب یم
په زړګي مې تحریر کاندي پرې پوهېږم
زۀ يې لولمه پخپله ستر کتاب یم
ځنې ټکي زۀ عالمو ته وړښایم
له هغو ته زۀ هروخت لاجواب یم
رب مې سورے ښائې عالموته عبرت له
له عالموئې پټ کړے په نقاب یم
اسمٰعیل پټ په نقاب کښې مدرِّس یم
ژوندے ښکارمه په مړ باندِ حساب یم





مړه خواچړې دَ ښکلي جانان نۀ یم
یوساعت هم زۀ غافل له ذیشان نۀ یم
دَ هجران وَندنے کلک له ماچاپیردے
زۀ به ولې دَ دیدن په ارمان نۀ یم
دَ خوبا دیدن ته هر ساعت متاز یم
پسې ژاړم لا داخل په بوستان نۀ یم



دَ عشق رسم دیوانه کړم بیابان کښې
یوړ وغ تار مې پاتې نهٔ شهٔ په ګریوان کښې

په ژړا ژړا مې ځان څو واره مړ کهٔ
ما په شان رنجیده نشته په جهان کښې

پرهر ونه به هله زما تول جوړ شي
چې جانان راته ښکاره شي تول په ځان کښې

له مرګي نه مخکښې تت لیدے شي خلقه
پس له مرګه به روښان ښکاري بوستان کښې

وو یرے تکے دَ خوبا په لټوت کړځم
همه عمر مې تیریږي په هجران کښې

اسمٰعیل به له هجران څخه خلاص نهٔ شم
معظّم راته وئیلي دی فرمان کښې





څنګ خوشحال شم چې مې څنګ کښې خُوبا نشته
آشنایان ډیر دي خو داسې آشنا نشته

دَ زیبا آشنا مشتاق یم ځکه ژاړم
بې له وصله مې علاج دَ ژړا نشته

هسکو غرونه پسې څو واره کډار شوم
په دُنیا ما په شان څوک په غوغا نشته

د هجران په دوپ کښې عمر تېرومه
قراري مې په ژړېدو د دریا نشته

چې نسیم په کله ماپله رادرومي
په نصیب کښې مې لا دغه ادا نشته

د فراق سپېرې ماله مقرر دي
په دې پوهه یم چې وصل ویریا نشته

اسمعیل به مسلسل مشقت کاندم
بې غمخویه له د رب دا عطا نشته

---

ہر ساعت په انتظار د خپل جانان یم
ګذار شوی زړه د مینې په سېلان یم

دلربا زما د مینې سمندر دی
پسې ځکه هر ساعت خیرې ژړېدو یم

له پخوا نه پسې یې په ژړېدو یم
ځکه داسې خپلې مینې ته حېران یم

مینه ناک به کله او مومم خدایه
د بلبل په شان په طمع د بوستان یم

د یار مینې مې سینه توله غلبېل کړه
اسمعیل ځکه مدام په هاڅې سوران یم



دَ رُخسار په سرو لمبو مدام سوزېږم
کهٔ څو سوزمه په مېته نهٔ مړ کېږم
زړهٔ مې هر وخت هجران کنې دا مې حال دے
چې به څو دَ يار ديدن پسې کړېږم
دَ فرقت غنيسې تل چيچل زما که
په دمکړی پسې کړحم تول خوږېږم
دَ وفا په توره ځان خپله وهمه
ځکه هر ساعت په يار پسې ژوبلېږم
يار مې ماته قلندر وئيلی ښخوا دي
په دُنيا کښې له دُنيا نه بيل اوسېږم
په وطن دَ تودوخے کښې مې مسکن دے
اسمٰعيل په پسرلی پسې ژړېږم





له مودو نه دَ خُوبا په انتظار يم
په دا پوهه يم يارانو کښې ئې شمار يم
دَ فرقت نيزه مې زړهٔ کښې خبنه شوې
دَ اُلفت وينې نړ څاڅي وفادار يم
په وفا له جفا دور اوسم دُنيا کښې
له زړګر څخه دَ يار دَ غاړې هار يم

یوه ورځ به مې یار واچوي په غاړه
بیا به ما څرنګ لره نه کړي ښه سنګار یم

شیش محل کښې به مدام وږغږ څخه او سم
دې مانړې پسې زخمي په خند وخار یم

خسمانه دَ زړه کوُمه یار دَ پاره
تربګنۍ[1] دَ غلیم کاندمه بیدار یم

دَ غلیم په وَس وسو به زه تیر نه اوځم
زه مدام لره دَ میني طلبګار یم

دَ اُلفت دَ باغ کښځ[2] یمه په زړه کښې
دَ حسد ویشتو ته هر ساعت تیار یم

دَ حسد حملې مدام لره تنبومه
زه هُم دې له پیدا کړې کردګار یم

دَ غمونو په ترخزه توتې کیږم
ځکه داسې دَ دلبر په نیز ملدار یم

اسمٰعیل به دَ یښتن مینه تل کاندم
دَ بُلبل په شان به هر وخت په چغار یم



په خزان کښې تل په طمعه دَ بهار یم
له مودو راسې مئین په سپین رُخسار یم

---

[1] تربګنۍ : دُښمنی [2] کښځ : څوکیدار

دلربا مې خوبرویانو کښې ښائسته دے
سوزېږدلے په ښوار په دې انکار یم
دَ وفا رانجه زما له تنه جوړ دی
په چشمانو پسې ئې ځکه ناقرار یم
نور او بل له ئې کلونه تولومه
پوهه کړے ئې یارے لره ربیار یم
دَ الفت مذهب شیرین کړمه شیرین له
په دا برخه دَ الله شکر گذار یم
اسمٰعیل له عشقه لطف اخلم دُنیا کښې
همیشه به زۀ په دې لطف ښاندار یم





ډوب او سیږم دَ غمونو په دریا
تورهٔ شپه کښې انتظار کړم دَ صبا
دَ فراق تورخزمې هروخت سینه تراشي
نافذ شوے دَ الفت قانون په ما
په زړگي کښې مې الفت غمونه پیائی[1]
دې غمونو کړم اشنا پسې جدا
په اشنا پسې مې مینې زړگے رنګ کۀ
زۀ په رنګ زړگي دَ یار وایم ثنا
له خندا خښه تر اوسه بلد نه شوم
په تقدیر مې رب لیکلې دهٔ ژړا

[1] پیائی: سړوي

کۀ یؤ واري مې دلبر بیا مونده خلقه
همه عمر به تونې نه شمه جُدا

اسمٰعیل دَ عشق په لاره چُست روان یم
زده کومه به تر مرګه دا ادا





آئینه کښې مې ځان اوتۀ لید خندان
چې به څو داسې ژړېږم په جهان

چې مې تا ته دریچه[1] دَ زړګي واکړه
هغه راسې مې په زړۀ کښې دے طوفان

زړۀ مې هر وخت په بیاتے[2] دَ غم غوسیږي
تلالي کاندي په تا پسې هېران

دَ فرقت تیر مې تن ټوټې ټوټې کۀ
هر ساعت یم ستا دَ سپین مخ په ارمان

ستا دَ عشق په لبره واؤ ختم دلبره
زۀ دانا کړمه دې لبرې وُم نادان

په کونین کښې ستا په شان پېغځ نشته
مېین ځکه دے په تا غني سُبحان

اسمٰعیل سُبحان په تا یاند[3] مېین کړم
ځکه ووړې مې له ستر کو نه باران



[1] دریچه: دروازګۍ ده وا؛ پرا نستے شوے [3] بیاتي: قینچي

د سینې په نغري کښې مې اور بل دے
بندیوان مې زړهٔ د زلفو په هرول دے

په دریاب د بیلتانهٔ کښې غرق او سیږم
هر یوځل مې د هجران په ژړندګ دل دے

هر ساعت زهٔ مسیحا مسیحا وایم
زما زړهٔ د مسیحا په مخ کښې حل دے

له سپین مخه به ئې چرې صبر نهٔ شم
د دهٔ حُسن په عالمو کښې اوّل دے

همه عمر به ئې عشق کښې ستیرومه
بل څهٔ نهٔ کومه عشق کښې همه چل دے

د فراق په غشو هر وخت زخمي کیږم
د یار مینه پسې ما کړے توکل دے

زهٔ ناروغه به شم وروغ چې طبیب راشي
دا یقین مې په طبیب بنهٔ مکمل دے

اسمٰعیل د عشق په اور کښې ایره پروت یم
د یار غم مې په ذرو پورې انډول دے

---

په صفت به د خوبا خپله صفت شي
صفت کانده چې صاحب د سلطنت شي

دَ اُلفت په اوبو ځان له سینه پرې اینځه
چې داخل دَ یار په دړ یسنهٔ خوبصورت شي

نوموړے په هله شي په دار ینـو
دولتمند چې دَ اخلاقو په دولت شي

چې دې وُچوړے ترڅو فراخه نهٔ وي
څهٔ خبر به په دُنیا کښې له نعمت شي

دَ کینې ګګل کښې خبنه زړ راُوځـه
چې خبر په دې دُنیا له حقیقت شي

په دا دَهر زړ نیوکه دَ عشق اوکړه
چې زړهٔ خوږے دَ زړهٔ خوږو په صحبت شي

دَ دلبر دَ دړ رهبر پسې چاق دړومه
تل به خلاص تهٔ دَ غفلت له مصیبت شي

دُنیا ترک کړه کهٔ یاری په دُنیا غواړې
اسمٰعیله په دا کار به دَ حضرت شي



له غفلته را بیدار شه نیکو کار شه
بې یارے ګرځیدهٔ پرېږده زړ دَ یار شه

شکته پورته دَ قدرت تماشه کانده
سرتاپایه په کالو دَ خیال سنګار شه

اَجنبي له زړهٔ نه اوشړه په ذکر
بس دے نورهٔ جفامهٔ کړه وفادار شه

د وچوړے، تنده، د ... (margin note, partly legible)

دَ برین دلبر طلب کښې مدام کړه څه
له دُنیا نه پسې روزوشب کنار شه
دَ حیرت حیواد کښې تول عمر اوسیږه
همیشه کوه دا چاره پرې نامدار شه
متاق زړه به دې چغزې شي چې حب کاندې
هیڅ ئې بل چغزې کوے نهٔ شي هوښیار شه
دَ جانان دیدن ته ولې لیوال نهٔ ئې
اسمٰعیل غوندِ ئې هر وخت پهره دار شه



تل ژړیږه په خندا پسې دُنیا کښې
ځان لاهو کانده دَ مینې په دریا کښې
دَ هجران په چپاوونو کښې اوسیږه
منډې اُووهه دَ فکر په صحرا کښې
ګریوان خیرې ګرځوه دیدن دَ یاره
عمر تیر کړه همیشه دَ عشق سزا کښې
ځان دَ مینې په شرابو اموخته کړه
چې په لور دَ دلبرۇ دړومې ادا کښې
مسافره دَ منزل غم ولې نهٔ کړې
لټوه مدام رضا دَ یار رضا کښې
په خپل ښنک کښې به یار ځائے تالره درکه
چې اوسیږې پسې هر وخت په غوغا کښې

اسمٰعیل دَ غوغا تون کښې یم ورک شوے
یوه ورځ به ځان موندہ کړم دَ یار خوا کښې



دَ حیرت په سمندر کښې نور حیرت له ربه غواړم
په حیرت ډیر ښکلے کیږم دا زینت له ربه غواړم
په فریاد فریاد دلبر خپل یادومه صبح وشام زۀ
دَ ژړندون هره کړے کښې دا طاعت له ربه غواړم
دَ رُخسار په اور سوزیږم صداقت هم دې ته وائی
دَ رُخسار مینې دَ یاره نور طاقت له ربه غواړم
په زلفانو زۀ بندي یم رک تري چرې وهے نۀ شم
دَ جانان دَ سرو لبانو خوږ شربت له ربه غواړم
دَ دیدن دیدن غږ ونه مې له عرشه پورته درومي
په خاطر دَ ماه جبین دا عنایت له ربه غواړم
اسمٰعیل په یار مئین یم دُنیا پاتې دې له ما نه
یا دې بل څۀ زمانه رشي زۀ قربت له ربه غواړم





په بیان دَ محترم زړه عمل اوکړه
دَ وفا په رسے پورته ختل اوکړه

له زړګي نه دې لوګي هسک کړه سماء ته
داسې کار د محبّت دلته تل اوکړه

څه د پاره چې دُنیا نه ئې راغلے
په هغې پښې په مینه توکل اوکړه

دلربا درته د حق لاره ښودلې
د دغه درته په دا لاره ورتلل اوکړه

د حسد تیکه له زړه لرې ګذار کړه
له ابلیس څخه تل جنګ وجدل اوکړه

د دلبر د راز خبرو ته لیوال شه
ښه په غوږ ئې د هر لفظ اوریدل اوکړه

په دُنیا کښې په خوارے دلبر موندے شي
د فولادو د نیتو دا چیچل اوکړه

لکه موم د اسمٰعیل غوندې شه ویلې
د عشق نار باندې په ځان نه دا چل اوکړه





د زړه سره ستا په لوری په رفتن یم
ارمان له مودو راسې د چمن یم

ستا یادونو مې په زړه کښې سوری جوړ کړه
فریادونه ځکه کاندمه غمژن یم

ستا د حُسن تیغ بې حده دیر کائل کړم
پټ په تا پسې د هجر په کفن یم

کړکېچن عشق دې له برمه يم پرې ايستے
اے دلبر خاموش ځکه په دهن يم
اسمٰعيل دې په رُخسار بسيار مئين يم
ملاقي ځکه مدام دَ زنکدن يم





مدام مينه ګردَوُمه دروېزے[1] کړيم
همه زړهٔ مې شهٔ پروېزه[2] مسافر يم
له ازله نامزد شوے يم هجران له
دَ هجران په اور کښې پروت يمه کسکريم
په ډېر ګران امتحان واوُختم دُنيا کښې
دَ آشنا په انتظار شام وسحر يم
زهٔ په زخت[3] ډېر ښکلې مخ باندِ مئين يم
پسې ځکه هر ساعت داسې اوُتر يم
دَ شرابو په خوغړپو شوم نور تکے
په هر غړپ پسې مړ شوے په هُنر يم
ما دَ غم په تغرخپل تهر ايښودے
چې آشنا پسې به خوپړ مې سر يم
دَ يادونو سنو اَميل مې دے په غاړه
له پخوا دَ يار دَ يادو منجاور يم

۱ دروېزګر: ګداګر ۲ پروېزه: غليبيل ۳ زخت: ډېر زيات

بوله نهٔ یم اسمٰعیل چې بل څهٔ غواړم
هغه غواړم چې زخمي ئې په خنجر یم



له مودو راسې په ما ده اوچ کالي
دَ دیدن اوبهٔ خوَر غواړم له مالي
په دُنیا راله راحت لوکوټي نشته
خوشحالے پسې کومه تلالي
په خمبیر کېنې ئې راله غم دے اغږلے
ده راکړې ئې دا برخه ازلي
دَ یادونو یاړ په زړهٔ سورے کړم
دا یادونه نور یادونه رابلي
کونه زړهٔ مې شهٔ کړه دَعشق په اور کېنې
هر ساعت یمه دَ داسې اورسوالي
تر رِحلته به مې زړهٔ نور هم کړه شي
داسې چاره مدام کاندم کمالي
تړموا وښکو مې کړیوان راله بوزه[1] کهٔ
توبي کړهٔ[2] وې مې لا هوشوے په خیالي[3]
اسمٰعیل په مینه داسې مستانه یم
چې مدام یه یمه څنګ کېنې دلالي

ل بوزه : وروست ٢ کړهٔ وې : تنړے ٣ خیالے : دَ یو دریاب نوم

په زیبا پسې مدام کوکې وهمه
ترمرګې پورې به دا چاره کومه

دَ یادونو په صحرا کښې نسکور پروت یم
تمامي عمر به خلاص نهٔ شم له غمه

دَ تن وینې اورې یکو ته څخه یوُ شوه
دَ هجران توُرې بې دریغه زخمي کړمه

زما اوښکې به ځنګ اوچې شي دُنیا کښې
چې دَ یاد رومال په سترګو هروخت ږدمه

زړهٔ دَ عشق دَ مزرې په غم مبا ویخ یم
اودهٔ نهٔ یم چې خوبا به هیرومه

دَ مرستیال مرستې ته هر ساعت لیوال یم
په دا مرسته به رسیږم ترحرمه

اسمٰعیل دَ فرقت چارې بنهٔ استاد کړم
ځکه داسې دا دَ غم مصرعې لیکمه

---

له سینې مې زړهٔ په تا پسې جوَت[1] دے
پرې نقش شوے له پخوا ته ستا صورت دے
خوبصورته دَ خدائے دَ پاره راشه
په ما هر ساعت په تا پسې قیامت دے

[1] جوَت ؛ ښکاره

د هجران یرغل مې تن خاورې ایرې کړه
په نصیب کښې زما داسې عبادت دے
ستا د حُب کوّل زما دې ډیر زده شوې
ستا د یاره مې ایښودے دا دولت دے
ستا زینت پسې د زیب په لاروړاندیز کړم
اختیار کړے مې هم دا متابعت دے
د زړګي کړونج مې تا توتې توتې کړه
اے دلداره عجیبه دِ سلطنت دے
ستا رُخسار پسې کهٔ هر څو ژړا کاندې
قبول کړے اسمٰعیل دا مشقت دے

---

ستا هجران دلبره ډیر لوړیا کوړیا کړم
نا خبر دې همه عمر له خندا کړم
د راحت محل دې ټول راله مسمار کهٔ
خوشحالے پسې دې زړهٔ د غم دریا کړم
ستا دیدن زما راحت دے نقاب پوشه
چې به څو درپسې داسې واویلا کړم
چې مې زړهٔ تا د سینې له تاخه نیوړو
اے دلبره لاس په سر دې له دُنیا کړم
دستبردار به چرې نهٔ شم ستا له مینې
تر مرګې پورې به دغسې ځګدا کړم

زهٔ په تا پسې هر لوري ته ناري کاندم
تا په ځان پسې عالمو نه جُدا کړم

ستا د مخ د پلوشو په لوري درومم
اسمٰعیل په روز و شب هم دا ادا کړم



ډیر حیران یمه چې ولې حیران نهٔ ئې
تماشبین ولې د ځان او جهان نهٔ ئې

چې دې نهٔ پرېږدي دُښمن د حیرت تُون ته
ولې تهٔ ورځنه مُشت و ګریوان نهٔ ئې

دا چې تیښت د دلربا له دره کاندې
په کاکُل زلفو ئې تهٔ بندیوان نهٔ ئې

د وفا په تاړے ځان محکم بندي کړه
هائے افسوس دے په جفا لا پښیمان نهٔ ئې

اسمٰعیل غوندې په زړهٔ داغلے نهٔ ئې
ځکه پوهه تهٔ د دهٔ په بیان نهٔ ئې



په تا خونړ مې د زړهٔ خونه شوه ویرانه
ستا لیدو ته مې ښادي ده له پخوانه

ا تا خون : د زړهٔ نول

کۀ هر څو داسې کړېږم په دُنیا کښې
ستا رضا به هر ساعت کوُم جانانه

له مودو راسې دې یاره تاتمل[1] کاندم
ستا تابان مخ به مې هېر نۀ شي تابانه

بنۀ پوهېږمه تازه به په انکار شم
ځکه داسې لاس په سر یمه دُنیانه

زما جندره[2] په فراق دې یم تپشوے[3]
دیدن راکړه رب دَ پاره عالي شانه

اسمٰعیل دَ کړېکیڅ غم څخه مخ یم
غم به دور کاندي ستا دید زما ذیشانه



درست جهان مې په زړګي باندِ انبار دے
دَ اَخښتے له انبار له زوره نَزار دے

داسې حال مې شۀ فریاد هم کوے نۀ شم
همېشه مې خپل طبیب ته انتظار دے

کوهِ طور خو رب سوخته کړلو یؤ واری
زما تن په اور کښې پروت شام وسحار دے

ترمړګي پورې به داسې سوخته کېږم
روح او تن مې له جانانه مدام زار دے

[1] تماتل: ارزومند [2] جند: دَ زړه توته. ډیرخوږ یار [3] تپشوے: تباه شوے

خدائے زده جانان به کله وائی راشه
اسمٰعیل به صبر کاندم دامې کاردے





ستا په لور مې دَ آهونو قطار جوړ کړ
ترمو اوښکو مې دریاب دَ خمار جوړ کړ
خوشحالي دِ رانه وړې غمزده یم
زما زړه کښې دې محل دَ اسرار جوړ کړ
بیلتانهٔ دې دَ غمونو سمندر کړم
چپاوونو ځکه داسې ناتار جوړ کړ
ستا دیدن به زړه مدام له ربه غواړم
په ما ځلے ستا دَ مخ انتظار جوړ کړ
اسمٰعیل به چرې چارنهٔ اوځم له عشقه
ما دَ ستا دَ عشق له زوره اشعار جوړ کړ





په زیبا پسې دې ځان کانده زیبا
په دُنیا کښې له دُنیا اوسه جُدا
په نکو پتو به خلاص له سزا نهٔ شې
کارنده شه سنهٔ ماهر په دا دُنیا

رُوح اؤتنَ دي شکرانه یار لره ورکړه
توبه اوباسه په شان دَ نصُوحا
دَ بیلتون تورووریځو کښې اوسیږه
چې دَ وَصل باران اوکاندي په تا
هر ساعت شه اَرماني دَ سرولبانو
ملاقي به شې آخر دَ دلربا
اسمٰعیله چې مدام په دُنیا ژاړې
خاندا به دِ دلبر کاندي پُخلا





چې په یار پسې له ستر کمره لِیل شوم
بیا هله په انتظار دَ عزرائیل شوم
هر ساعت زهٔ دیدن غوارم درویزګریم
زهٔ په یار پسې دَ اوښکو رودِ نیل شوم
دَ فرقت بوج مې په ولو باندِ پروت دے
همه عمر زهٔ دَ دهٔ په ګران تحویل شوم
دانائي مې په تحویل کښې ډیره زده کړه
زهٔ دَ یار په عدالت کښې سترو وکیل شوم
اسمٰعیله زهٔ پخوا اسمٰعیل نهٔ وُوم
چې په دام دَ یار کښې ښکیل شوم اسمٰعیل شوم





زړه دَ غم په توغندو په زړه سورے يم
پرهر ژلے يار دلاسه پښوانے يم
تود وخے دَ عشق مې تن همه کسکړکه
دَ عشق بام باندِ په يار پسې لوګے يم
زړه مې صبر دَ ضياء له مخه نه کړکه
دَ الفت چاره کيني زړه ډير مړنے يم
له فراق څخه مدام مشت وګريوان يم
خپلې ويني تو يُومه خونړے يم
په طبيب پسې بې وارځه کوګی کاندم
ډير رنځور يمه دَ ميني ليونے يم
همه عمر مې نصيب دی سرې سکروټې
اسمعيل پر تې لوګے کيږم سپيلنے يم





کړه دې واورېده ګفتار زما دَ ميني
کړې پخيله به اقرار زما دَ ميني
سوداګر يمه دَ ميني بل څه نه کړم
راشه اوګوره بازار زما دَ ميني
چې پوارې مې له فن څخه خوند واخلې
بيا به واې دا اشعار زما دَ ميني

دے پوهانو مې ګفتار غوره ګڼلے
ښه مثلے ئې کردار زما دَ مینې
اسمٰعیل په مینه مینه، مینه غواړم
ځکه خوره شه دا اخبار زما دَ مینې

---

○

چې کاتب مې په زړګي کتابت اوکه
هغه وخت مې له دُنیا نه نفرت اوکه

دَ هجران باران مې سترګو نه راووري
دلربا پسې مې داسې محنت اوکه

دَ رِحلت په وخت به خلاص شم له محنته
له مرګي پورې مې قول دَ اُلفت اوکه

بیا به هسې هم همه عمر الفت وي
ځکه ما دلته دَ مینې عادت اوکه

خوږ آشنا مې په ژړا ډیر خوشحالیږي
په ژړا ژړا کښې ما بادشاهت اوکه

اسمٰعیل ستر کیمیا ګر کړم دَ ده مینې
ما تړون ځکه دَ دې محبّت اوکه

---

زۀ په لېږه دَ فرقت يمه اووختے
دَ زيبا په محبّت يمه اووختے
زۀ دَ لُطف په طمع کړےمه دُنيا کښې
دَ دې دَهر په حيرت يمه اووختے
په روپوش پسې حيرت زۀ ديوانه کړم
په دې شکلې عنايت يمه اووختے
ما دَ عشق له دې عنوانه زده کړه اوکړه
زۀ په داسې عبادت يمه اووختے
دَ يار درته برمخنګ کاندم په مينه
زۀ دَ مينې په جرّت يمه اووختے
تيښت به چرې زۀ دَ يار له ياره نۀ کړم
هميشه په صداقت يمه اووختے
اسمٰعيل دَ هجر تاب کښې ډير بيتاب شوم
په بې مثله حقيقت يمه اووختے

---

دَ محبوب په لورې هر ساعت روان يم
دمه نۀ کړم مره خوا له دې جهان يم
دَ فراق ډمبرو تن زما ټول اوخوړ
دَ دمګرې په لور درومه ناتوان يم

چودے زړۀ مې فریاد ونه کړی له درده
خود به کاندي چې مئین په عالیشان یم
لاس نیوه چې مې دَ میني کله کړې
له هغې نه راپه دیخوا سرګردان یم
هرساعت وایم چې یار به مې اوس راشي
زۀ په داسې جیلخانه کښې بندیوان یم
تول بدن مې عاشقے دے ډیر زورَے
اسمٰعیل ځکه ښکاره دَ غم داستان یم



په خپل یار پسې دَ میني منجور شه
یاري زده کانده دُنیا نه لاس په سر شه
لکه موم دَعشق په اور کانده ځان وِلي
خبردار دَ عاشقے له دې هُنر شه
ورخ دَ ستر کو کورے اونهٔ تړې چرې
خپل کړیوان اوبهٔ کوه داسې نوکر شه
تر بګنی کړه له ابلیس څخه محکمه
همه عمر تهٔ له دهٔ نه مراور شه
دَ سینې المارے لرکړه وَیارے ته
په دې توره باندِ خو واره پَرهر شه
دَ اَحسن تصویر دَ زړهٔ په تاخ کښې کیږده
هرساعت ئې دیدن کانده قلندر شه

دَ دیدن نعمت دې ولې په هیر کړې
دې نعمت پسې دُنیا کښې در په در شه
دومره نهٔ پوهیږې ته چې کوم ځائے اوسې
له دې بنده بنهٔ صورت کښې وربهرشه
دَ فرقت له ناکردو نه تیښته مهٔ کړه
سینه ډال کانده بس داسې بهادر شه
همیشه دَ تورو زلفو سورے کوره
دَ هجران په آفتاب هر ساعت کسکر شه
امتحان دې له بلوغه شروع شوے
نتیجه دې رانږدو ده بنهٔ خبر شه
اسمٰعیله کامیابي له ربه غواړه
همیشه سائل دَ پاک غنی اکبر شه





هرکهٔ اولیدهٔ زما دا زړهٔ داغلے
خود به اُووائي بیا ما ته کړیدے
زما مینه څهٔ افواه نه ده عاشق یم
سروما ل مې دلربا باندې بائیللے
دَ اُلفت په سبق زړهٔ ډیر بنهٔ پوهیږم
څهٔ اوس وایم څهٔ مې مخکښې دے ویلے
دَ بیلتون دوره په ما باندې جاري ده
چې یار راشي دے به لاړ شي ساتیولے

دَ فراق دَ لاسه هر وخت خوار و زار یم
دَ غمونو طوفانونو یم زپلے
اسمٰعیل دَ عشق دُنیا کښې سوداګر یم
ډیر دولت مې په دا چاره دے ګټلے

---

○

همیشه به په دُنیا کښې وفا کاندم
ډیر یادونه به دَ خپل دلبرا کاندم
دَ فراق برید مې ټول تن زخمي زخمي کړهٔ
دَ طبیب په لوري درومم ژړا کاندم
دَ غمونو بنډ کښې پټ یمه له خلقو
پکښې پټه زړهٔ دَ مینې ادا کاندم
کاذب نهٔ یم په رښتیا په یار مئین یم
دَ یار مینه به مدام په رښتیا کاندم
دَ هجران یُوم مې په زړهٔ کښې ډوغل کړے
دَ زړهٔ غوښې ور کُومه سخا کاندم
دَ شیرین دَ یاره غم په ځان ستیرومه
بیا به هر وخت دیدنونه ویړیا کاندم
اسمٰعیله زړهٔ دې ډیر دے پاریدلے
بندوبست ورله دَ ډیرې خندا کاندم

---



دَ غمو نو لوئ داستان یمه په عشق کښې
خپله ځان ته حق حیران یمه په عشق کښې

په زړګي مې دَ هجران ننګې ختې
همه عمر په لړزان یمه په عشق کښې

ترمو اوښکو مې ګریوان همه لوند خوشتکۀ
تماشبین دَ خپل ګریوان یمه په عشق کښې

رګړه خورمه دَ یادونو په لنګوړې کښې
ارماني تل دَ جانان یمه په عشق کښې

اسمٰعیل به دَ جانان غیبږې له لاړ شم
زۀ ئې درته ور روان یمه په عشق کښې

---



له مودو راسې په یار پسې بیمار یم
زړۀ ئې وړے دے له مانه په ناتار یم

دَ فرقت چړې مې پټ له تنه اوښکۀ
ډیرې چغې وهم یار نه ناقرار یم

په دیدار به ئې زۀ کله مشرّف شم
چې ترڅو به زۀ داسې خوار و زار یم

زۀ دَ اوښکو جرګې بیا یمه آشنا له
خپل ګریوان اوبۀ کوم داسې مالیار یم

ډیر مشکل کار راته یار حواله کړے
همه عمر به دَ یار په انتظار یم
تول هڅوته مې دَ صبر تبرمات کړه
وفا کاندمه مدام به وفادار یم
اسمٰعیل دَوفا سیند کښې لاهو شوے
ورته ژاړم بل څهٔ نهٔ کړمه لاچار یم

⁂

ناري کاندمه مدام په زړَته زړَته
زما مینه شوه عالموته ځَوته
دَ فرقت خندق کښې اولویدم ناڅاپه
لټوُم پکښې مدام زهٔ خوبصورته
دَ دیدن دَ ګلستان ډیر ارماني یم
پسې مړیمه عالمه څوکړَته
ما دَ صبر لاره خپله کړه دُنیا کښې
په داچاره شوم خبر له محبّته
اسمٰعیل دَ محبّت په دولت شاه شوم
ځکه ما دُنیا له ورکړه جوښته لته

⁂

همه عمر به صفت دَ جانان کاندم
له چشمانو به دَ اوښکو باران کاندم
په هر لوري دَ غم کيږ له ما نه تاوُدے
هر ساعت پکښې دَ يادو ګرځان کاندم
په ناړے دَ غم جانان يم کلک تړلے
ځکه دَ پسې داوِير زهٔ پريشان کاندم
په آهونو مې تالو دَ پسې تـــور شهٔ
په څو وار به ځان له دَ نه قربان کاندم
زهٔ دَ عشق شيبرې تبې يم نيولے
صبح وشام زهٔ ځکه داسې لړزان کاندم
اسمٰعيل به ظلهٔ چرې په هير نهٔ کړم
تر ديدنه به ئې هر وخت ارمان کاندم

———※———

چې ترکومه به جُدا له ما دلــبر وي
چې ترڅو به مې په زړهٔ کښې داخنجر وي
دَ ربيار په ليد وغونے په مازيګ شهٔ
ماوې بيا به ئې راوړے څهٔ خبر وي
دَ هجران بيان مې ډير په غور واؤريد
دَ وصال ورځ به په ما بانډِ اختروي

دَ جواد په یارانه کښې ډیر زیرک شوم
یاد به ماته دا دَ عشق دَ باب هُنروي

رُوکے نهٔ یم چې به مینه دَ یار پریږدم
همیشه به مې ګریوان په اوښکو تروي

دَ وفا ډیوه مې زړهٔ کښې بله شوې
په هر آن به جفا ما نه دړ په دړ وي

اسمٰعیل له شهنشاه څخه یاري کړم
چې څوک دهٔ څخه یاري کاندي کسکروي

※

اے عالمه دَ غم چاړې ډیر ناتوان کړم
څکه هر ساعت له غمه ډک بیان کړم

دَ فراق غُنبسُې هر وخت ما پسې دي
ټول ئې اوخوړمه هر وخت هائے سوزان کړم

مکرّم پسې مې ټول عمر ژړلے دهٔ
دَ غم غشو ته ئې هر ساعت نیښان کړم

پیښقدمي به چرې پریږدم دُنیا کښې
کهٔ هر څومره فریادونه په زبان کړم

دَ یار دړ مې په زړګي هر وخت راوړي
له لیمو نه پسې څکه زهٔ باران کړم

دَ فراق په بیابان کښې مزل کاندم
ار ما نو نه همیشه دَ ګلستان کړم

اسمٰعیل چې کله غم څخه فارغ شم
هغه دم به راتر غاړه خپل جانان کړم

---

چې ترڅو به یم خوبا پسې بیمار
مدام سوزمه د مینې په انګار
د فراق په دونکاچه په سجده پروت یم
په سجده کښې یادومه سپین رخسار
زړه مې یار پسې پخوانه په ژړا دے
داسې عمر تیرومه ناقرار
ټول هروونه مې د یادو تخرې تراشي
له ډیر درده کوکې کاندمه یاربار
همه عمر به دلبر ته لاړې شارم
له مودو نه منتخب یم پهره دار
د هجران په ټیکو هر ساعت ژوبلیږم
ځکه داسې کوم هر ساعت ناستار
اسمٰعیل به د مالیار یاري سرینږدم
عندلیب غونډې به کومه تل چغار

مینه اوغواړه له ربه چې ښائسته شي
په دې مینه کښې دِځان هر وخت فنا کړه

په ماليار پسې نارې وهه په زوره
دَ بُلبل په شان ته زده ښکلې ادا کړه

دَ زړهٔ کور په محبّت باندِ ودان کړه
هر ساعت کښې بس یادونه دَ آشنا کړه

عاجزي کوه مدام لره دُنیا کښې
خوش اخلاقه شه تمیزځان کښې پیدا کړه

اسمٰعیله زړهٔ نروب کانده په مینه
له عالمو ته پټ ژاړه واویلا کړه

---



زړهٔ دې ورکانده دلبر له چې سنګار شي
تش کوکل په دُنیا ګرځه چې مالدار شي

له لیمو نه آبشار جوړ کانده دَ هجر
اے نادانه په دا چاره یه هوښیار شي

دَ اقدس په مینه مست اوسه دُنیا کښې
دے به تا یاد که کهٔ خلقو نه کنار شي

ګلدسته دې دَ سینې ګلدان کښې کیږده
چې یار راشي ورله ئې ورکړه چې دَ یار شي

اسمٰعیله مینه پرېښږده دې دُنیا کښې
خدائے مهٔ کړه تا نرین ته به ګزار شي

رب دې ما دلبره ستا دَ غاړې هار کړي
په څو واره دې زما تن له تا زار کړي
ستا دَ عشق په تناره کښې زما ژوند دے
همه عمر دې سوخته ما په دا نار کړي
هر یو رګ مې ستا په یاد و عادت شوے
نور دې هم ما ستا په مینه بنهٔ خمار کړي
ساقي جام به دې خدائے زما نصیب کړي
توره شپه به رانه لرګه چې سحار کړي
ستا دَ زلفو په هر وَل بانډِ بندي یم
زړهٔ مې ځکه ندا هر وخت دَ یار یار کړي
اسمٰعیل زړهٔ کښې خنجر لوي دَ هجر
صفتونه ځکه ستا دَ سپین رُخسار کړي

---

زړهٔ مې هر وخت سورے کیږي په مژګانو
پرې راضي یم دا دستور دے دَ خوبانو
بار دَ مینې مې په زړهٔ باندِ پټ پروت دے
داسې حال وي په دُنیا دَ عاشقانو
رُوح اوتن مې دَ هجران په اور ورتیږي
رسیدلے ده دا برخه دَ مردانو

زۀ د زړۀ په سر زخمي يم له پخوا نه
علاج کاندې يار د داسې بيمارانو
د جانان په هر عاشق مې دې سلام وي
زۀ غلام يم د جانان د غلامانو
ټول ګرېوان مې عاشقۍ ريښې ريښې کۀ
شراب غواړم د ساقي د سرولبانو
اسمٰعيله چې هم داسې مينه کاندې
رب به درکاندې ټولې د مهرويانو

---

د ودود چارې ته هر ساعت حيران شه
اے ناپوهه مستغرق ئې په بيان شه
عجيبه ده چې تراوسه پوهه نۀ شوې
داسې کوږ په لاره مۀ ځه سم انسان شه
رب چې څۀ له ئې پيدا کړے هغه اوکړه
بل څۀ مۀ کړه په رښتيا مردِ ميدان شه
د قهّار له ويرې ولې نۀ رپيږې
ويره کانده په دا چاره عالي شان شه
د بورا په شان ګلانو سره حُب کړه
سيلانے مدام د ښکلي ګلستان شه
په زړګي کښې دې سوراخ د مينې جوړ کړه
همه عمر د سرولبو په ارمان شه

دَجفا له ختو زړځان پاکېزه کړه
دَوفا توره راواخله پهلوان شه
نفس شیطان څخه پرې هر وخت جهاد کانده
په دې شتو باندِ ځان شتهٔ کانده کامران شه
دُنیا ځاۓ دَخندا نهٔ دے اسمٰعیله
تل ژړېږه په ژړا یار له روان شه

---

ستا دَاسم وظیفه مې شهٔ عادت
دا را اوښودهٔ دې ستا ډېر محبّت
محبّت دې نور له ربه څخه غواړم
را عطا به کړې مولیٰ ربّ العزّت
په سینه کښې مې ستا مینه ده ځاۓ شوې
اختیار کړے ئې له پخوا نه سکونت
سرهٔ کلان مې دَزړګي تا څخه کښې ایښي
امیلونه نړې جوړ ومه هر ساعت
دَدیدن په وخت به ئې ستا غاړه کښې واچوم
چې قبول مې شي دَمینې عبادت
یوه ورځ به صنم ستا غېږې له درشم
خپل مرشد رانه ښودے مهارت
اسمٰعیل به له تا څو واره قربان شم
دا کړنمه په دُنیا کښې لوئ نعمت



دَ رئیس په مینه پایمه دُنیا کښې
لټومه يې ځکه هر ساعت بیدیا کښې
فارغ نهٔ یم یو ساعت دَ عشق له کاره
هر ساعت یمه په خلهٔ دَ اژدها کښې
مدّرس یم دَ عشق باب خلقو ته ښایم
هم له بله يې زده کومه هره ساه کښې
سوَکے مې دَ زړهٔ سر دے تول نیو بے
داسې کیږی دَ اَشنا ځنه وفا کښې
دَ بیلتون رسے مرے زما خفه کړه
نارې ځنګه اُووهم دَ غم دریا کښې
اسمٰعیل دَ یار دَ در ارمان در دمن کړم
په دُنیا مې نصیب نشته په خندا کښې



سنا په دُعا مې زړهٔ ودان دے عالي شانه پیره
غوث الزّمانه پیره دُعا کوه
له تا قربان شم زما خوږه باچا جانه پیره
ډیر قدردانه پیره دُعا کوه
له خپله دره مې فیضیاب کړه
پوهه مې ښهٔ دَ عشق په باب کړه

له مانه جوړ دَ عشق درياب کړه
زۀ دِ غلام يمه زما ښکليه سلطانه پيره
جبين روښانه پيره دُعا کوه

زۀ دِ دَ مينې طلبګار يم
سوے دِ ډير په سورانګار يم
مدام په تا پسې بيمار يم
تا پسې ژاړمه مدام له ډير ارمانه پيره
حَسين جانانه پيره دُعا کوه

زۀ دِ په مينه کښې فنا يم
دلربا ډير په تا شيدا يم
ولاړ به تېنګ زۀ به وفا يم
زړۀ مې تور شوے ستا په مينه له دُنيانه پيره
دوست دَ سبحانه پيره دُعا کوه

ساقي زۀ غواړم له تا جام
په ډير اَدب اؤ احترام
کلک دِ اِنښتے يم په دام
مينې بې خوده کړم خبر نۀ يم له ځانه پيره
تا غواړم له تانه پيره دُعا کوه

زۀ دِ په دړ کښې تل لوغړيږم
له تانه چرې نۀ صبريږم
مدام په تا پسې ژړيږم
ستا په دُعا به شمه بچ زۀ له تاوانه پيره
مرم له خفګانه پيره دُعا کوه

[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]

---

[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]
[illegible]

د دلبر ثاني مې نشته په عالم کښې
ښکلې سترګې يې له نرګسه دي زيبا
په چاړه د هجر هر وخت زخمي کيږم
ځکه کاندمه زه هر وخت واويلا
ډېر حسين دے نمر سپوږمۍ ترنه شرميږي
درست عالم يې حيران کړے دے رڼا
په رڼا د ده هم دے لټوم هر وخت کښې
اسمعيل نه به يې لټون نه شي قضا

---



زړه مې هر وخت په نسرين پسې خوږيږي
د يادونو بارانونه پرې وريږي
انتظار مې د تن وينې کړلې اوچې
ترمې اوښکې مې کړيوان باندې بهيږي
اوږے تږے د صنم درته روان يم
په آفتاب د محبّت مې تن سوزيږي
د غمونو په جهے کښې يار له درومم
هر ساعت وايمه داستا وخته کيږي
تباه کړ هجران تباه کړم ځکه ژاړم
بې له ياره به ژوند څنګ په ما تيريږي
د وصال وخت يې تا کلے زما مرګ دے
روح او تن به مې مرګي پورې کړيږي

اسمٰعیل دَ ډیر دانا استاد شاګرد دے
ځکه راسي دَ عشق کار باندې پوهیږي

◯

لے په لے دړپسې کرشمه جهان کښې
دَ دیدن قحط دِ اوچ کړم بیابان کښې

دَ بیلتون غشي پریمانه په ما راووري
هر ساعت دِ یادومه دې باران کښې

ستا هجران مې په زړګي کښې سورې کړې
هم او سیږي په سورې سورې دالان کښې

دَ الفت غمونه ئې هر وخت خوراکه ده
خوشحالے ترې ورایه اوسي په بوستان کښې

ستا موضوع په ترمړکي پورې پرېږدم
مدثره یادوم یه دې هر آن کښې

ته مې شاه زړه دې که الله تاتا غواړم
له پښوا راسې بیم پروت په دې زندان کښې

اسمٰعیله دَ سختے وار به زر تیر شي
لکه هار به ئې تل په غاړه دَ جانان کښي

زۀ دَ یادو له کړدانه اوزګار نۀ یم
هیڅ خبر لا زۀ له شام وسحار نۀ یم

په ما هر وخت دَ عشق ټکنړه غرمه وي
لا تراوسه زۀ په غیږ کښې دَ یار نۀ یم

دَ یار غیږ پسې مې زړۀ سوړے سوړے دے
یوساعت بهر دَ عشق له انکار نۀ یم

دَ دستور په سرو سکرو َتو زۀ ورتیږم
دا مې کار دے خلقه واوړے بیکار نۀ یم

له ډیر غمه مې په زړۀ کښې قوتې جوړ دي
ځکه داسې له فریاده قرار نۀ یم

زړۀ کښې هر وخت تلوسې دَ مینې پیایم
له دې کاره ځکه چرې ویزار نۀ یم

اسمٰعیل دَ غم داستان یم ځکه ژاړم
یوساعت له خوشحالے خبردار نۀ یم

---

په احمد ﷺ باندِ مئین زۀ په رښتیا یم
داسې مینه ده هم شاه یم هم ګدا یم

په عالمو کښې ترې څوک پیمخے نشته
زۀ په داسې دلربا باندِ شیدا یم

لے پیایم : سروم

په زړګي مې دَ هجران غشي تيريږي
زهٔ عالمو لره ځکه تماشا يم

دَ يارونو په چاقوانو زخمي کيږم
مړه خوا ځکه له دې فاني دُنيا يم

دَ فرقت په لټو هر ساعت خوږيږم
په رضا دَ احد هر ساعت رضا يم

دَ بيلتون مزرے هر وخت راپسې وي
دَ وصال ټوپک لا نشته وارخطا يم

نو مَوړے به مې خوا له کله راشي
اسمٰعيل يُ انتظار کړم په ژړا يم



په ګريوان مې له ليمو تړيُ[1] بهيږي
هر ساعت راته دَ غم سونړے[2] غړيږي

په زړګي مې دَ هجران تيزاب تَل شوي
شنکے خال مې دَ جبين نهٔ په هيريږي

دَ غمونو ستر منګوړ راله تک راکړهٔ
په دم کړي پسې ځم ډير مې ياديږي

دَ عشق نمر کښې په پيڅوې[3] باندِ خيژم
لکه وريږے مې په نمر بدن ورتيږي

[1] تړې: ناوه [2] سونړے: تورے [3] پيڅوے: چړائي.

دَ هجران دَ توپک هر وخت نیښانه یم
هراندام مې په باربار ویشتلے کیږي

له پخوانه دَ طبیب په انتظار یم
خدائے زده چې به دے کله راڅرګیږي

په عالمو کښې تري هیڅوک ښکلے نشته
اسمٰعیل وریښې څکه ډېر ژړیږي

---

ربیار تلے ما دَ یاره دے اشنا لـه
خبر نهٔ یم څنګ خبر به راوړي ماله

زړهٔ مې تول دَ عشق په یوه باندِ واړو
دَ عشق تخم پکښې کرم دلـبـر باله

پدې تخم مې زړهٔ کے همه زرخیز شهٔ
سرهٔ ګلان ټې دي نیولي خپل خوبا له

ترمو اوښکو نه زما نهرونه جوړ دي
زهٔ به داسې ژړا کاندم تروِصالـه

قدردان پسې له حده تیر رنځور یم
چې به کله راشي دغه باکماله

تول غمونه به له مانه دلبرکش کړي
همه عمر به شم خلاص دَ غم له جاله

دَ هجران زمرے به تانه خیله لاړ شي
اسمٰعیله چې جانان دې راشي خواله

برمنګ له برمه پرې ایستم ساسایم
کوچ به چرمې کوز او نهٔ کرمه دانایم
دَ بیلتون په پلک مې تن همه مات ګوډشهٔ
خبر نهٔ یم چې ترڅو به په غوغا یم
دَ فراق وبا په ما باندې راغلې
زۀ وژلے په څو واره دې وبا یم
هر یوړګ مې دلربا دلربا وائي
له مودو نه دَ یار مینه کښې فنا یم
دَ حیرت بلا مې غلې په مرے دۀ
داسې ځکه له دُنیا څخه جُدا یم
زۀ دَ عشق دَ مُنارې په سر ولاړ یم
ځکه خوښ له حده تیر دَ محبوبا یم
په زړګی کښې مې سراج له مودو بل دے
تیارۀ نهٔ یم اسمٰعیل بشکلې رڼا یم

---

دلربا پسې ژړا کاندۀ مدام
بې ژړا کوړے تیر نهٔ کاندې ایام
له دلبره دې زړګے ولې تور شوے
لکه هاڼ کړه تک سپین دَ عشق په بام

دَ هجران په سومبه زړګه سوري سوري کړه
لکه څنګ چې دے سوري سوري بادام

دا زېږ زړګه دې په ريګمال دَ حُب مهين کړه
مدام غواړه له خپل ربه دَ عشق کام

خوشي تشې ګرځيدګه په دُنيا پرېږده
ترمرګې پورې له بدو کړه صيام

معطّر له ځان سنګار کانده په مينه
چې نصيب دې شي دَ مينې ښکلے جام

اسمٰعيله دَ عشق دام کښې سرے شاه شي
کوه هر وخت دَ دګه ډير ډير احترام





دَ زينت په ښار په کښې تل اوسيږم
دَ الفت په لمبو هر ساعت سوزيږم

جام دَ مېوې نوش کړے دے نشه يم
دَ حيرت په بلے دروممه رپيږم

دَ کوڅلې مينې حال وئيلے نهٔ شم
کهٔ هر څو مره دَ بُلبل په شان چغيږم

دَ غم پيټے مې په سر دے يار له ځمه
ستړے شوے يمه ډير خونهٔ ودريږم

مقتدي دَ مينې چل ماته راښائي
ځکه داسې په آشنا پسې ځغيږم

مسافریم دَ کالهٔ غم را څخه دے
دغه غم مې دے زده کړے پرې پوهېږم
اسمٰعیل ډېر باکمال شوم ځکه ژاړم
دَ یار مینه باندِ چرې نهٔ مړېږم

همه عمر مې تېرېږي په غوغا
توره شپه کښې لټون کاندم دَ ضیاء
دَ هجران له پسَواله[1] هر خوا ګورم
وایم اوس به رانما شي دلربا
چې مې کله دلبر اولیده ناسابه
زهٔ له هغې یم زړهٔ توړے له دُنیا
دَ بېلتون په کانړو خوړمه تیند کونه
خپل اشنا له ورروان یم له پخوا
ټول زړهٔ کے راله دَ عشق سرطان نیولے
انتظار کړمه مدام دَ مسیحا
فریادونو راله زړهٔ زړې زړې کړهٔ
دَ زړهٔ خونه مې غمونو کړه تالا
اسمٰعیل به یادېږي څنګ نهٔ کاندم
چې مې لیدے په عالمو کښې بالا

[1] پسَواله : بلې

د الفت په لاره هر وخت سفر کاندم
بل څه نه کړم پیروي د رهبر کاندم

د جمال په تیره توره زخمي کیږم
ځکه هر وخت سلامي د حیدرؓ کاندم

په اخلاص مې ده د حُب رسے نیولې
همه عمر په خیالونه جوړ کاندم

د کوشش غشي مې تل په زړه دخول که
زړه یې خپله په زړګي برابر کاندم

پل د مینې د صراط له پله نه کړان دے
ډیر احتیاط څخه پرې ځکه ګذر کاندم

د مرستیال موسته که نه وے زړه به مړوم
په دا لاره ځکه تله زړه بهتر کاندم

که مې څو د عشق په نمر غوښې وریتیږي
اسمٰعیل په دا د مینې هنر کاندم

---

هر ساعت د تورو سترګو په ارمان یم
لکه پاڼره رژیدلې د خزان یم

ما د عشق د دولت پنګه خوندي کړي
داسې نور دولت له شاه غواړم اریان یم

دَ یا دونو په اوره ریبلې کېږم
کړي قبول به رب زما دا عبادت

غم زما په زړه کښې ناست دے تري نه نه اوځي
په زړګي مي هر وخت کاندي حکومت

اسمٰعیل په خپل مالیار پسې بلبل یم
صبح وشام ناري وهمه دَ الفت

---

په سینه کښې مي دَ مینې چراغ بل دے
زړه مي ځکه له مودو اخستے جل دے

ټول هر ونه مي دَ مینې تندې تور کړه
رانه ورایه دَ ساقي ښائسته محل دے

دَ فرقت په تبر څو واره ټوټې شوم
پرې راضي یمه په دې کښې خو ټول چل دے

دَ سینې په فرش مي هر وخت دلبر ناست وي
پسې ژاړمه وطن ئې له ما بیل دے

دَ الفت انبار مي زړه ډیر سترے کړے
دَ جانان وطن ته څمه رب مي مل دے

حقیقي مینې مي هر یو رګ سوخته کړه
خو هر چاره په خپل خپل وخت اجل دے

اسمٰعیل دَ عجیبه مینې مالک یم
عجیبه مي یو تریله هر غزل دے

ما په شان غمزده نشته په جهان کښې
هر ساعت یمه صنم پسې ارمان کښې
دَ فرقت ساګي[1] مې خوړي له موده راسې
دَ تن وینې رالهٔ څښي په بیابان کښې
دَ غم تیکو بانډِ لګم تول زخمي یم
سنګسارېږمه دَ هجر په میدان کښې
همه تن مې دَ کړاوُ چارې بوزهٔ[2] کهٔ
یار لټومه زهٔ دَ اوښکو په باران کښې
له څښتنه[3] جانان هر ساعت کښې غواړم
دَ بهار په طمعه کړمه خزان کښې
دَ یار مینې دَ بورا په شان تک تور کړم
چې ترڅو به پرواز کاندمه طوفان کښې
ګلستان به درله دړ کاندي ترعمره
اسمٰعیله چې زخمي شې خارستان کښې

---

دَ وفا په نارے ګلک یمه تړے
زړهٔ مې وړچنه دلبر پسې وتلے

---

[1] ساګي: ماشي [2] بوزه: وروست [3] څښتن: مالک.

زما حلق کښې د بيلتون کنډ ير پرانهٔ دي
د شيرين د رنه ريبار يمه تلی

نوراني مې په ليمو کښې تل غرېږي
همه تن ئې په جلوو راله سېزلے

د حيرت حيواد کښې زهٔ سرنګون ناست يم
د فراق لمسے ئې ماته غوړ وے

د غم ښاره کښې ديدن د جانان غواړم
هائے افسوس دے چې يؤ وار مې وے ليدلے

هر ساعت ئې يم مشتاق قدم بوسے نه
د سرو ګلو هار مې يار لره پاٸيلے

په تلوار د انتظار زخمي زخمي دے
اسمٰعيل زړګے پخوا راسې بائيلے





خوبرويانو کښې سردار زما مراد دے
په دُنيا کښې مې د دهٔ مينه جائيداد دے

زهٔ ئې د عشق د آفتاب تاب لرلے نهٔ شم
همه تن مې په دې تاؤ باندِ برباد دے

د بدن له هر اندامه مې تپ خيژي
هر ساعت راته زيبا نګار په ياد دے

دلربا راله په زړهٔ داغونه جوړ کړه
په تحفه کښې ئې راکړي دي جواد دے

دَ جانان څنګه په مینه زۀ کامران یم
په دامینه مې زړګے پائنده باد دے
نو موړے لږ مُسکے شۀ اؤ بیا سنۀ وو
بیا به راشي پرې زما پوخ اعتماد دے
اسمٰعیله په زیبا باندِ مئین ئې
هر یوُ لفظ دې ځکه داسې زنده باد دے





سُورے کړے دلوبا دَ زړۀ په سر یم
ځکه داسې زۀ له حده تیر اؤ تر یم
تن مې هر وخت دَ هجران په کښتو کې
له هجرانه په دُنیا کښې در په در یم
مابل داسې انتظار لیدلے نۀ دے
په دې اور باندِ سوزیکمه کسکر یم
دَ زړۀ کور مې دلربا پسې لیکلے
زۀ پرې څۀ کړمه زۀ خو مسافر یم
دَ یار حُسن مې عالم له برمه پریستے
ځکه داسې زۀ ناتوان اؤ بې هنر یم
تبرک کښې ئې دَ وفا توره راکړې
جهاد کاندمه غلام زۀ دَ حیدرؓ یم
دَ اُلفت میدان په چرې زۀ پرینږدم
په دا چاره زۀ دُنیا کښې منوّر یم

دَ عادل مینه مې رب ده نصیب کړې
غوټه شوے په دې بحر کښې جوړ یم
جواهر مې ډیر په بحر کښې موندلي
اسمٰعیل یم په دې شاه دَ شاه نوکر یم





ټین شوے په ډیر ښکلي عالي شان یم
په ژړا ورسېږې ځکه په هسې آن یم
دَ بیلتون زګې لنګوے کښې رګړه کېږم
له مرګي پوره به زه دَ غم داستان یم
پېچیده مینې مې زړه پوے پوے که
خپلې مینې ته زه هر وخت حق حیران یم
دَ غمونو اژدها یم په خُله کړے
ځکه داسې ښکلے لعل دَ بدخشان یم
زړه مې مینې درخشان کړو یار دَ پاره
له پخوا نه مړه خوا له دې جهان یم
دَ وفا قلا کښې پټ اوسم له خلقو
دَ جفا لښکر مې مرکه پهلوان یم
همه تن مې په تیرو تورو پرهر دے
اسمٰعیله ځکه صاحبِ دیوان یم



پہ زړګي مې دَ تنزاکو قطار جوړ دے
پکښې ننه یُؤ تصویر دَ نګار جوړ دے
هر ساعت یې دَ تصویر پہ تماشه یم
پہ خپل ځان کښې راله داسې روزګار جوړ دے
پہ تصویر یې زهٔ مدام زړهٔ قلارومه
قرار نهٔ شهٔ هر ساعت پرې ناتار جوړ دے
له زیبا مخه به څرې صبر نهٔ شي
له پښوا نه پرې دَ مینې انبار جوړ دے
صبح و شام پہ دلربا پسې ژړیږي
خود پہ ژاړي چې تر مینځهٔ یې دیوار جوړ دے
دَ مرګي سیلاب چې دا دیوار کنډار کړي
همیشه ورله بیا بنګلے کلدار جوړ دے
اسمٰعیل بہ بیا له یار څخه هم خنک یم
پہ سینه کښې زما ځکه انګار جوړ دے

---

دَ عشق باب به له ما چرې قصا نهٔ شي
هیر به ما نه بنګلے مخ دَ خوبا نهٔ شي
پہ یادونو مې دَ زړهٔ چنه سورے دهٔ
دا یادونه به له ما نه جُدا نهٔ شي

دَ زړهٔ تخت باندِ مې پاک شهنشاه ناست دے
ما په شان ځکه څوک کولے ادا نهٔ شي

چې مخ ما پله کړي غونے په مازيګ شي
په کړيوان به مې اوچ چړې دريا نهٔ شي

په روش دَ مينې پوهه کړمه مينې
مرور به له ما خپل دلربا نهٔ شي

ما آشنا لره ډير دُر مرجان موندلي
ورک به ما نه له مرګي پورې دانهٔ شي

اسمٰعيل دَ مينې چاره بِنهٔ زده کړي
يو ساعت له بِهٔ ترې هُم داخطا نهٔ شي





له ازله يم اووختے په غوغا
دَ يار مينې کړم په څواره تباه

په زړګي کښې مې اغزي دَ ګيکرمات دي
زهٔ به څهٔ خوشحالي کاندم په دُنيا

وَرخ دَ سترګو چړې زهٔ بندَوے نهٔ شم
چې ترڅو مې ليدے نهٔ وي دلربا

دَ پي مخي مخ به څنګ له ما په هير شي
چې رسا ئې په زړهٔ ويشتے يم پخوا

هر ساعت مې پرهرونه سيوا کيږي
دَ طبيب په انتظار شومه سياه

له ګړونجه مې زړګې دې ګذار شوې
درې ورې کۀ په يار پسې وفا

اسمٰعيل دَ دلربا په مينه پايم
بې له يادو مې واتۀ خسته يوسا





يادومه په هر آن کښې عاليشان زۀ
ګزار شوې په ژوندون يم په نيران زۀ

دَهجران چړې مې زړګا قطرې قطرې کۀ
ځکه داسې په دُنيا اوسم پريشان زۀ

له ډير سوزه غريب نيولې يم پخوانه
ځان ته وايمه مدام دَغم داستان زۀ

دَغمونو په تنتو رو هر وخت لګم
ګوځُوم ځکه په اوښکو لوند ګريوان زۀ

کمکے[۱] نۀ يم چې جانان به له ما هيرشي
بنۀ پوهيږمه دَ مينې په عنوان زۀ

چې جانان په ستيو وغشو کله ښکار کړم
له هغې راسې ئې شومه په ارمان زۀ

دَ کامران مينه څۀ نوقه تۀ دۀ خلقه
دَکامران په مينه ځکه شوم کامران زۀ

اسمٰعيل ځکه ګومه په ځان لوبې
چې مدام به يم په غيږ کښې دَجانان زۀ

[۱] کمکے: وړوکے

پہ دلبر پسې زما زړه دے قلم
ګذار شوے تا ترین ته یم دَغم

همه عمر دَ اِتکو نه اوزګار نهٔ شوم
داسې کړمه زهٔ بیا دونو دَصنم

پہ سرطان دَعشق مې ټول زړه دے شین شوے
څکه کاندمه طبیب پسې ماتم

نو مَوړے به مې کله خوا له راشي
له مودو نه مې یا دیږي غنچه فم

دَکوشش پہ لخته ډیر وَهلے کیږم
شنې تغې پہ ما ولاړې وې هردم

پہ وهلو زهٔ استاد شومه دَمینې
څکه داسې سبق ښایم دَکرم

دَناصح بیان ته چرې زهٔ غوږ نهٔ شوم
څنګه غوږ شم چې بیان اوَرم اهم

اسمٰعیل دَیار دَمینې افسانه یم
څکه اخلم ډیر پہ مینه هر قدم

پہ زړګي راله کاتب کتابت کاندي
دالما څخه بسیار محبت کاندي

دَ غم شل مې له پخوا په زړه کښې خخ دے
خپل اَشنا څخه له ورایه صحبت کاندي

دَرَندي[1] به دَ ساقي چړې پر سینړ دم
یوه ورځ به راته خامخا ست کاندي

په سینه کښې مې خندق فراق کنستے
پټ زړمے راله عالم ته جوَت[2] کاندي

له چشمانو مې قلزم[3] ځي دَ یار دَرته
هر ساعت کښې سلامي دَ حضرت کاندي

ترک به نهٔ کړمه زړهٔ وِیر چړې دُنیا کښې
پاک الله به مې قبول دا محنت کاندي

له جانان څخه یارے زړې زړې کهٔ
اسمٰعیل ځکه دَ عشق سلطنت کاندي





په سرو وینو مې رنګینه کړه صحرا
ځکه داسې لاس په سر یم له دُنیا

په سینه کښې مې ډیر غشي ننوتي
دا ښکارې راته معلوم دے له پخوا

مهربان به له ما هیر نهٔ شي اَحسن دے
ډیر عالم دے پرې زما په شان شیدا

---

[1] دَرَندي: دَرَشل [2] جوَت: ښکاره [3] قلزم: دَ یو دریاب نوم

له ډېر غمه مې ناري وړېږي زده دي
په نارو نارو اوچ شوے حلق زما

دَ رباب غونډې مې زړه کښې سازغږېږي
هر ساعت مې څکه زړه کاندي ژړا

زړه مې تول دَ بيلتانهٔ آشر سوړے که
همه عمر شومه وړايه له خندا

اسمٰعيل داسې له غم څخه بلد يم
لکه څنک چې دي اوړه اؤ آسيا



زړه مې په جانان پسې خوږېږي هر ساعت ربه
راکړه ماله دهٔ څخه تهٔ نور ډېر محبّت ربه

زهٔ دَ انتظار په اور سوزېږمه په دهٔ پسې
تهٔ مې کړه قبول په خپل دلبر پسې محنت ربه

زړه راله دَ هجر طوفانونو ډېر زيږلے دے
نصيب مې کړه له يار څخه تهٔ صبح وشام صحبت ربه

زهٔ دَ بيلتانهٔ په آسيا څو واره دَل شومه
غوارمه لتانه زهٔ دَ وَصل لوئې نعمت ربه

اوخکې مې بهېږي مسلسل په مدني پسې
کاندم په له مرګه پورې داسې شجاعت ربه

مانه به قضا نه شي دا مینه دَ احسن چرې
ما کړې جفا نه په وفا پسې هجرت ربه
ما اسمٰعیل تاته مات کچکول نیولے سوال کوم
ته راکښې پیدا کړه دې یارے له نور لیاقت ربه





توري سترګي مي دَ یار هر وخت یادیږي
لمحه عمر به زمانهٔ په هیریږي
هر اندام کښې مي دَ غم غني نوَتي
ځکه هر ساعت په یار پسې خوږیږي
زما مینه بنهٔ محکمه ده عالمه
داسې نه چې دَ بنګړو بار دے ماتیږي
دَ یادونو سلسله زما روزي ده
هائے افسوس دے په یادونو ځوک مړیږي
زهٔ خټلے یم دَ عشق باله خاني ته
په دا بام باندِ ډیر کم خلق اودریږي
دَ رناوے دَ خپل اشنا مدام کومه
په لیمو کښې زما هر ساعت غړیږي
دَ یاد مالګه په پرهر دَ زړهٔ دوړومه
په دا کار به مي پرهر ځنګه جوړیږي
دَ بیلتون په زړهٔ کیني لړ شان ته ترس نشته
چې یار راشي دا بیلتون به مي مړکیږي

دَ يار مينه کښې خبر له شباب نهٔ شوم
بې خودے کښې به سړے څنګه خبرېږي
اسمٰعيله دَ ديدن باران چې راشي
هميشه به دا باران بيا راوريږي



دَ زيبا په توره زهٔ پرهر پرهر يم
له غمونو څخه هر وخت هم سفر يم
په شتاب شتاب مې اوخکې ځي له سترګو
په دُنيا کښې همه عمر مسافر يم
هر ساعت زهٔ دَ عشق باب لولم مکتب کښې
پوهه شوے پدا باب زهٔ بنهٔ ژور يم
په زړګي کښې راله غم کور آباد کړے
خوشحاله يُ تر شړلې دره په دره يم
چې مې زړهٔ کله زيبا نګارا غواکهٔ
زهٔ له هغې له هجران څخه نوکر يم
رُوح مې اوسي له جانان څخه زهٔ لاش يم
ځکه دغسې ناتوان اوبې هُنر يم
اسمٰعيل له دې دُنيا نه مړه خوا يم
له ازله شهر يار پسې اوتر يم

ستا په مینه کښې مې زړهٔ چود شهٔ دلبره
هر ساعت مې ویښې څاڅي له پرهره
کهٔ دَ یادو بکسوې ورته ځو واچوم
جوړ به نهٔ شي له مرګي پورې رهبره
په یارے کښې دې دَ تیغنې په شان تورشوم
ډیر په تا پسې کړیکم دَ زړهٔ سره
ستا په شان مې بل خائست لیدلے نهٔ دے
نهٔ به اووینمه اے دَ حُسن نمره
چې یو وارمې ستاله جامه شراب نوش کړهٔ
هر ساعت مې خیژوي تا پسې بره
مستانه شوم، دیوانه شوم، خزانه شوم
شاهي راکړه ذوالجلال له خپله دره
اسمٰعیل په همه عمر روژه دار یم
په مرګي به زهٔ خبر شم له اختره



هر ساعت اوُرمه زهٔ دَ غم سازونه
خلاص به نهٔ شم په دُنیا کښې له کړونه
له مودو راشې ما لیار پسې ژړیږم
عندلیب غوندې کړم څکه آوازونه

که د غبار د بیلتانهٔ له ماچاپیره دے
په ما نکی د حیرت تاوُ دهٔ بادونه

یوُ ساعت می په قلار چری تیر نهٔ که
هر ساعت می له خلې خیژي فریادونه

فراق ماله په څوار تنګی را کړی
هر اندام می روز و شب کاندی دردونه

د غمونو سلسلې یمه تنګ کړے
زهٔ کوُمه خوشحالے پسې ویرونه

د وفا په لار د غم باران وریږي
اسمٰعیل ځکه د غم لیکم شعرونه

---



ویره کانده هر ساعت له کردګار
هسې نه چې جهنّم نه شې ګذار

په بنو بدو بنهٔ پوهیږې کے نهٔ ئې
شابه زر که کړه توبه استغفار

فساد مهٔ کړه بنهٔ صحیح شریف انسان شه
له دُنیا نه شه دلبر پسې کنار

دا یوُ څو ورځې ژوندون دے مسافرې
توبنه ځان څخه کړه جمع بنهٔ بسیار

پاک الله نه هر ساعت محبّت غواړه
په قرار پسې زړ کے کړه ناقرار

ولې راسې بې پروا په دُنيا ګرځې
ځان د مينې په دولت ګاڼده مالدار

اسمٰعيل دې په دې ګړو باندې غمژن يم
پس له دې شه همه عمر وفادار

---

O

چې په غشو د مژګانو دې ګړم ښکار زړه
هغې راسې يم ولاړ په سر د دار زړه

له سينې څخه مې بريخ تاپسې خيژي
يوساعت له چړې نه شومه قرار زړه

ټول هډونه مې په تاپسې فرياد کړي
د بيلتون په ګانړو شومه ډير سنګسار زړه

په زړګي مې د وفا قلا ده جوړه
پکښې لولم هرساعت د راز اخبار زړه

ستا راتلو ته مې په زړه قالين خور کړے
ترهغې پورې به ګرمه انتظار زړه

د زړه تخت مې له يادونو څخه جوړ دے
ستا دې مينې ياره دومره ګړم مالدار زړه

چې مې کله ستا د مينې تاج په سر کړه
يوساعت له غمه نه شومه اوزګار زړه

اسمٰعيل به بڼه خيرانه شم په مينه
همه عمر به کومه هُم داکار زړه

دَ الفت په رسۍ کلک یمه تړے
ځکه کړم له دې کېله سلطنت زړهٔ

له ډېر خوفه مې زړګے سینه کښې دانګي
یرَوے یم دَ مینې عدالت زړهٔ

اسمٰعیل به ستاله غیرۍ چیرته تهٔ ځم
همیشه به کړم ستا غیرۍ کښې سکونت زړهٔ



دَ غمونو نارې کاندم عندلیب یم
مئین شوے په زیبا باندِ عجیب یم

همه زړهٔ مې له ډېر سوزه پوے شوے
همیشه په انتظار کښې دَ طبیب یم

دَ دلبر دَ دړ ستر وَر راته لیدے شي
نهٔ ترې ورایه یمه نهٔ ورته قریب یم

دَ هجران بوختوکښې هر وخت خخ روان یم
پوهه کړے زهٔ زیبا په دا ترتیب یم

توره شپه کښې مې دَ حُب چراغ نیوے
دَ یار دړته ځمه ځکه خوش نصیب یم

اسمٰعیل دَ چا بیان ته څنګه غوږ شم
عادت شوے په بیان زهٔ دَ خطیب یم

زهٔ دَ مینې په دولت سرمایه دار یم
له ډیر حده پورې پوهه په اسرار یم
نور کاروُنه مې همه نظر انداز کړهٔ
یوُ دَ مینې کار به کاندمه هوښیار یم
دَ بېلتون چاړهٔ مې څخه ده ځګر کښې
له مودو راسې دَ یار دلاسه ښکار یم
هر ساعت کښې زما حال ډیر تشویشناک وي
په دې حال کښې هم دَ یار فرمان بردار یم
مطمئن یمه دلدار به یوُ وار راشي
ما به بیایئ له هغې پورې حصار یم
انتظار راله دَ زړهٔ زور اوبهٔ کړے
خبر نهٔ یم چې به څو په انتظار یم
کهٔ دَ مرګ زیرے په ما اسمٰعیل اوشهٔ
ځان به ورکړمه په زیرې کښې تیار یم

---

ما زده کړې دَ دلبر دَ دړ ادا
بې له یادو به وا نخلم یوه سا
هرې ساڅخه دَ یار استقبال کاندم
په انعام کښې راکوي دَ عشق وینا

زړهٔ اچولے مې پازيب د محبّت دے
شرنګا شرنګ بانډې مست يم له پخوا
د وفا په وسله هر وخت ځان زهٔ اُولم
رب راکاندي په دې مالره جزا
تول بدن مې په سرو وينو ګړګړے
د ديدن په بارانهٔ په شم صفا
د غمونو د وطن سپه سالار يم
رانه نهٔ ځي د هجران يده بلا
اسمٰعيله تهٔ په مينه د جانان شوې
هر ساعت کوه دا چاره په دُنيا

---

ماته پته ده خدائيګو وفادار يم
بنهٔ پوهيږمه چې سوے په انګار يم
زهٔ د عشق د ګړاګړ[1] په سرولاړ يم
ځکه پوهه زهٔ د مينې په اسرار يم
د هجران سختو مې تن چوړه چوړه کهٔ
د يوسف په شان ګذار له ګړه مار[2] يم
له مرګي پورې به مينه کښې مصروف يم
دا مې کار دے مړه خوا زهٔ له بل کار يم

---

[1] ګړاګړ:
[2] ګړه مار: د غرونو نوموته

په خپل وس زه د جانان ذره ناوے کاندم
قربان شوے ترې نه زه په خوشحواریم
د چشمانو په رپائې زړونه سوري کړه
زه د داسې مه تابان د غاړې هاریم
دلربا ما اسمٰعیل نه زړه تختوے
ځکه داسې په ژړا شام وسحاریم

---

○

ستا په سترګو کښې دلبره ډیر اثر دے
زخمي شوے پرې زما د زړګي سر دے
په تادے تادے باران کوم له سترګو
ځکه جوړ زما د اوښکو سمندر دے
ستا خوږې مینې زه تالره کړه کرم
کونه نه یمه داستا په ما نظر دے
په دنیا کښې دې د ژوند چل راته خوږ دے
تن مې ځکه په دې چل باندې کسکر دے
بندار کاه د وصل هر ساعت لټومه
سمندر کښې مې د غم زده داهنر دے
ډیر کوهر مې یاره تالره موندلي
لکیدے په هر یو د مینې نمر دے
د سینې سیمه ئې تاده قبضه کړې
اسمٰعیل ځکه له ځانه ناخبر دے



راکېږ شوے دَ حيرت په اهم جال يم
سرتاپايه زهٔ له عشقه مالا مال يم

دَ هجران چاقومې زړهٔ ټول کندې کړے
په طبيب پسې به داسې پُر ملال يم

له پخوا دَ انتظار په کډے ناست يم
انتظار به چرې پرېږدمه سيال يم

موده اوشوه بېلتانهٔ څخه نوکر يم
په څو واره دَ بېلتون په تيغ حلال يم

دَ جرس په شان مې زړهٔ نه ټنګا خېژي
خبر نهٔ يمه له ځان په داسې حال يم

دَ جانان مينه په ما پسې بيکلې
له جفانه دَ وفا په آب کنګال يم

اسمٰعيل دَ زړهٔ په نول باندِ اخته يم
زهٔ به داسې په دُنيا کښې تروصال يم

⁂



په نارو مې مرے بوغه شوه نګارته
دَ يار مينې خېژولے يمه دار ته

په ما هر وخت خپلې لوبې دلبر کاندي
زهٔ ترې چرې اوزګار نهٔ شومه بل کار ته

زهٔ دَ ډیر قوّت ناک عشق څخه مخ یم
داسې نور غواړمه یم لاس په دُعا

بې له عشقه به یؤ درنګ چرې تیرنهٔ کړم
اسمٰعیل یمه په عشق باندې دانا

---

ده راکړې ماله رب مینه جوره
څکه خیژی مې لمبې دَ زړهٔ له سره

دَ یار مینې له عالمو نه کنارکړم
دغه مینه ده په ما بشهٔ زورَوره

بې له فکره مې یؤ وخت چرې تیرنه کهٔ
په دا تال یمه ختلے ډیر په بَره

له مرګې پورې به نور نوی برَه کیږم
فن دَ مینې زده کومه مدام غورَه

حیدري توره مرشد ماله راکړې
هم اچولې ماته دهٔ دَ اُلفت زغره

دَ وفا میدانِ جنګ کښې جهاد کاندم
دَ جفا نوغے مې ویستے له جګره

اسمٰعیل دَ یار په مینه تنکیا‌ے شوم
څکه داسې غزا کاندمه بهتره

---

چې لیدلې مې دَ یار دَ مخ رڼرا ده
له هغې راسې په ما باندِ غوغا ده

په رڼرا ورځ ئې زړګے له ما نه غلا کړ
دَ زړګا خونه مې په دې وجه تیاره ده

لګیدے زړه په غشو شه رسا نیم
جوړه کړې ځکه ما دا واویلا ده

دَ اُلفت داړه کښې پروت یمه ورَنیږم
دا سزا راله لیکلې پاک مولیٰ ده

مطهّر راله هر رګ ځان پسې ویخ کړو
ځکه وران په ما هر ساعت دنیا ده

دَ غم یوم مې په سینه کښې دے خخ شوے
هم دې غم راته لار خودنې دَ وفا ده

له پخوا دَ عشق په باب باندِ حاوی دے
اسمٰعیل ځکه زده کړې دا ادا ده

---

چې کذار راله په زړه راکړ بنا غلي
هغه دم ئې راحتونه ترې شړلي

په رَوِش دَ محبّت مې هر هم مات شهٔ
داسې ډیر عاشقان مینې پرَ زولي

حقیقت راله زړګے دانه وانه کړه
ډیر کاروونه ئې پرې همه عمر منلي
له پخوا نه دَ غمونو شهنشاه یم
هر ساعت راپسې ګرځي ملا تړلي
عجیبه دَه خوشحالے لره مې بیائي
ملاقې به شم یو وار دَ نازولي
دَ تفتیش په صحرا ځمه دَ یار درته
په دالاره ډیر عالم دي کړیدلي
اسمٰعیل دَ کړاو چاره خوښه کړې
دَ واړه لاسه ئې دَ رب درته نیولي

---

ډیر غمژن یمه جُدا رانه دلبر دے
ځکه شین پسې زما همه جګر دے
موده اوشوه چې ملا تیرې چورلتې مات دے
دَ غمونو لوې بامبیر زما په سر دے
زړه یادونو اندیښنو زرې زرې کړم
دَ شاندار څخه مې مینه دَه خبر دے
دَ دیدن دَ پاره هر وخت بیره کاندم
دَ وفا دریاب مې لیدے بنه جور دے
یوُ زره استقامت مې نصیب نهٔ شه
ډیر ویرېږمه هجران راته ببر دے

له جفا نه مې بنهٔ ورایه کړه وړې
هر کلام مې ځکه داسې برابر دے

له محمدّ اسمٰعیله کهٔ خبر شوې
بیا به وائې چې رښتنیا دے درپه در دے



سوزوے یم لمبو دَ انتظار
چې ځارمه په دَ کومه پورې لار

چې ترڅو مې مسیحا لیدلے نهٔ وي
ترهغې پورې به پروت یمه بیمار

دَ آهونو دُهند چاپیره دے له ما نه
ځکه اوښکې بهُوم شام وسحار

وضاحت راته ربیار دَ مینې کړے
پوهه کړے ئې په هر لفظ یمه باربار

مدتّو راغځه قول دَ مینې کړے
پیدا برخه یم شاکرد دَ کوڅکار

مخ به چرې زهٔ وانهٔ ړوُم له یاره
هر ساعت به یادومه شهر یار

اسمٰعیل دَ زیب وطن پسې خفه یم
مدام ځکه یادوُم هغه بهار



دَ عاشق په زړګي هر ساعت اور بل وي
له عالمه وي جدا خدائے ئې مل وي

دَ فراق په هلوځلوئې زړه چودوي
دَ حيرت په سترګوئې هر ساعت کتل وي

په نينو دَ عاشقے کله مرېږي
کۀ هر څو مره ورته ګران دَ دې چيچل وي

لوئې انبارئې دَ غمونو په سر پروت وي
هميشه ئې دَ جانان په لوري تلل وي

دې سفر کښې دَ يادونو په آس سور وي
تول هړونه ئې دَ بيلتون په ژړند ه دل وي

عندليب غوندې ناري وهي ماليار ته
لګيدلے دے په غشو مکمّل وي

اسمٰعيل هم دَ عشق اور کښې ژوندتيرومه
هر غزل مې بشکلے ځکه له يؤبل وي





دَ دلبر رخسار مې ياد شام وسحر دے
هير به نۀ شي زما وير زيات معطّر دے

په دُنيا کښې ئې ثانې دَ سخا نشته
جاري کړے مې جانان دَ عشق لنګر دے

د زړه تاخ کښې مې ګلان وړله ایخودي
زړه مې ځکه په هغهٔ پسې پرهر دے

په دلبر پسې کاملؔ مې جوړکهٔ ښکلے
روان کړے مې د اوښکو ستر لښکر دے

په ذمه مې د عشق کار دے ځکه ژاړم
په دُنیا کښې دا د نوبو لوئ هُنر دے

په ژړا ژړا زما سترګې غلې خوړ شوهٔ
ما لیدلے په څو وار د حُسن نمر دے

اسمٰعیل د فکر تال یم پوره کړے
تو د تنوره راباندِ ځکه پېښور دے





چې څوک ما په شان دُنیا کښې بندیوان شي
هر ساعت به وړته یاد ښکلے جانان شي

په ځوانے کښې مې هره ونه تول زاړهٔ شوهٔ
د عشق دیګ پسې مې کړي چې ځوانان شي

اندازه راته د خپلې مینې نشته
دومره پوهه یم چې یار به پېرې خندان شي

سربراه به مې له زړهٔ چرې اونهٔ ځي
هغه نه ځي چې یو وار د چا مهمان شي

پې دې پې چې زړه د یار ما تختي اوکړم

هله پورته به زما د عشق نشان شي

د یار مینه کښې له حده تیر کشش دے

چې څوک کښ کاندي هغه ورته حیران شي

اسمٰعیل کشش کش کړے یمه عشق له

په داچاره به زما زړګے ودان شي





همه عمر مې سفر د عشق په لار دے

هر ساعت مې سر و مال له یاره زار دے

ما د یار په لاره تږ کښې برے بیا موند

دا برے راته ښودے ښهریار دے

راحتونه مې له زړه نه تختیدلي

د غمونو پرې مدام کرم بازار دے

زړه رسا د زړه په سر یم نکیدے

ځکه هر وخت مې طبیب ته انتظار دے

په زړګي مې د یادونو لوئې بوج پروت دے

هر ساعت زما هم دا هجوم پکار دے

د فراق د تهوپک هر وخت نښانه یم

ځکه هر وخت په ما جوړ داسې ناتار دے

اسمٰعیل حقیقي مینې دې په دې کړم

عندلیب یم خو جدا رانه مالیار دے

راښکاره چې مې ترکومه خوبا نهٔ شي
ترهغې به په ما چرې صبا نهٔ شي
په زړکي مې دَالفت ځوانګي ختې
همه عمر به دے ځکه بوډا نهٔ شي
خپل استاد راته دَعشق منطق راښائ
ترمرګي به مې پوره دا ادا نهٔ شي
اوچې شونډې به زما چرې ترنهٔ شي
څو دَ هجر ستره خونه تباه نهٔ شي
دَ یادونو ستر کتاب ویېل مې کار دے
همیشه به دا له ما نه قضا نهٔ شي
له ازله مې تائید دَ مینې کړے
دَ تاکید چاره به ما نه خطا نهٔ شي
اسمٰعیل له یاره ډیر متاثر یم
په ګریوان به مې اوچ چرې دریا نهٔ شي

---

هر ساعت په انتظار یم دَ پیغام
ترهغې به وي په ما باندِ صیام
زهٔ دَ عشق دَ عروج په پوړو خیژم
نهٔ غوښېږي دا منزل دے ناتمام

په لانجه د بيلتانه يمه اوُوختے
لکه کيږي ښې په دام کښې د يکرام

د يا دونو يـاران هر وخت په ماوُوري
چرې نهٔ شومه له غمه پـه آرام

مينې زهٔ په خپل جانان پسې راستمند کړم
په دوُ ځمه د يار درته صبح و شام

د همت واګې به چرې زهٔ پرېښيږدم
چې ليدے مې څو نهٔ وى کل اندام

خدائے زده چې به رګره ترکومه خورمه
حيران کړے يم د مينې دې نظام

اسمٰعيل د بې خودے ځانګو کښې ځانګم
په دُنيا کښې به زهٔ داسې يم مدام



خوش نصيب يم شهٔ نصيب الفت زما
رب به ډير که په دا کار زينت زما

هر ساعت مې ترقي په دې کار کيږي
کړزولے دے رب دا عادت زما

د اُلفت چارې مې زړهٔ دے ډير زورے
قبول ځکه کړو الله خدمت زما

په تعريف به د فياض چرې موړ نهٔ شم
پرې ډيرېږى ورځ په ورځ لذت زما

همیشه به له حیرت څخه خلاص نهٔ شي
کهٔ چا اولید دَ حیرت دولت زما

له هجرانه څخه هر ساعت ویریږم
سیوا کیږي دم په دم دهشت زما

اسمٰعیل به له ګوګاره نه بس نهٔ کړم
شي نصیب به دَ جانان صحبت زما





هر ساعت ځانګمه زهٔ دَ عشق په تال
ځکه بیکمه غزلې دَ کمال

پیچیده الفت مي زړهٔ زړي زړي کهٔ
تودي وینې به تړي څاڅي تر وصال

په سینه کښې مي مشال دَ مینې بل دے
دا بل کړے له پخوا نه ذوالجلال

له عالمه پرې زهٔ پټ دننه سوزم
راکوی به ماله رب ځکه جمال

په جلوو دَ یار دَ طور غوندې ستي شوم
په عقبې کښې به یم ځکه بل مشال

دَ خوبا په طفیل عشق زما نصیب دے
ځکه دَوُ مي کړهٔ له دهٔ نه سر و مال

اسمٰعیل چې څو جانان لیدلے نهٔ وی
ترهغې پورې به کړي پُر ملال

دَ جواد په یارانه باندِ هوښیار شوم
ما دَ عشق خزانه بیا موندہ مالدار شوم

دَ عزّت دَرګاه ته ځمه په لار ژاړم
پداچاره یار زما اوُ زهٔ دَ یار شوم

دوارہ کانډُو سره هر ساعت خبري
ډیر ښهٔ پوهه دَ اشنا په هر ګفتار شوم

دَ حیرت دَ باغ مفاد مي ډیر حاصل کړهٔ
ځکه زهٔ دَ حیرت باغ لره مالیار شوم

اوبهٔ خورئ زهٔ په خپلو اوخکو کاندم
زهٔ دي کار لره هر کار ځخه اوزګار شوم

زهٔ له ځانه دَ عشق کار کولے نهٔ شم
څهٔ چي یار وائٔ هغه کوم تابعدار شوم

اسمٰعیل دَ خپل ساقي مینې ساقي کړم
ځکه داسي په ساقي پسې بیمار شوم

---

دلربا پسې په چغو چغو سر شه
دَ عشق باب لوله طالب دَ منوّر شه

لږ ترمیم هم پکښي څوک کولے نهٔ شي
دَ الفت داسي آئین دے نري خبر شه

دَ توبې دریا سینه چې دې عبور که
ورکړه هله بیا دَ حُب په سمندر شه

په دې بحر کښې مدام سکونت کانده
جواهر پکښې بسیار دي سوداګر شه

له دې شپې نه دَ ضیاء په لوري درومه
دَ اُلفت په توره تول پرهر پرهر شه

زړه فراخه کړه چې ډیر څه پکښې راشي
بار بردار له محبّته شه رهبر شه

اسمٰعیل له خپل آقا څخه نوکر یم
راشه ته هم له آقا څخه نوکر شه





دَ خزان بادونه مانه کنار نه شوه
په خندا راته ګلان دَ بهار نه شوه

دَ هجران دَ تیرې توري شرنګ ته غوږ یم
پرهر یم څوک له ما خبردار نه شوه

ما دَ خوبدو تمیز له پخوا کړے
غافلان خبر له ښکلي سردار نه شوه

بې له عشقه به زړګي ته یل رو نه کوم
چې عشق راغے غلیمان بیا حصار نه شوه

سمندر دَ عشق مې زړه کښې دے ځائے شوے
بنه پوهیږم ما په شان څوک خمار نه شوه

دَ یار مینه خو زما عقلمندي دهٔ
بې له مینې عالم څکه هوښیار نهٔ شوهٔ
اسمٰعیل به دا مسلک چرې پرېږدم
منکران له دې مسلکه دَ یار نهٔ شوهٔ





په جانان پسې ورک شوے یم ژړیږم
څنگه اوخاندمه اور باندې سوزیږم
له مودو راته دَ یار کړهٔ وړهٔ معلوم دي
زهٔ به ولې بې له یاره خوشحالیږم
راسې کړهٔ وړهٔ په کونین کښې دَ چا نشته
ډیر حسین دے څکه زهٔ پسې کړیږم
دَ کونین واړه حسین له احسن زار شه
څکه هر ساعت له دهٔ نه نهٔ صبریږم
له محمودٔ څخه په مینه ډیر ماهر شوم
دَ غلیم له چارې څکه نهٔ ویریږم
هم استاد یم هم شاگرد یمه دَ مینې
هر ساعت په دا سبق وهلے کیږم
کهٔ دَ عشق دَ باب سبق یادول غواړې
ماله راشه زهٔ په دې ډیر ښهٔ پوهیږم
اسمٰعیل په زړهٔ داغونه هر وخت شمارم
سودائی شومه له ځان څخه کوریږم

هرساعت دې زړه یادو نه دَ رخسار کړم
هیر به نه شي ته له مانه دا اقرار کړم

ستا خکالوے چې مې ترغوږ وشوه درهسک شوم
بیا زړ لاړې ځکه اوس دې انتظار کړم

ستا دَ مینې ډیر قوّت دے زړه ئې زده کړم
ستا راتګ ته هر ساعت دَ ورځو شمار کړم

زړه دَ دروغ صورت خاوند چرې هم نه شوم
چې یو واری خدائے تا پسې بیمار کړم

مسیحا چې به ځو تا ته منتظر یم
چې ته راشي استقبال به دې شاندار کړم

دَ غمونو تا خانې نه به راووځم
چاپیرچل به دَر ته تول ګل ګلزار کړم

اسمٰعیل به ستا دَ عشق ترانه وایم
ځپل غزل به پکینې تا ته نمودار کړم

---

صبح وشام له ربه ښکلے صنم غواړم
زړه مې سوے تِرنه ځکه مرهم غواړم
په هډونو مې دَ غم تور تپې جوړ دي
زړ تر زړه لري کول دَ دې غم غواړم

ے زده: سنړے

راسي مينه مې په بل چا نهٔ ماتيږي
ځکه هروخت دَ زړهٔ سرغنچه فم غواړم

دَ حيرت تورو تيرو کښې پسې ورک يم
له خدايه زهٔ نمسے دَ هاشم غواړم

دَ زيبا مينې زيبا آئين زهٔ لولم
ځکه هر ساعت سردار دَ عالَم غواړم

دَ بورا په شان بهار پسې ګرځيږم
له مودو ته باغيچه دَ کَرَم غواړم

اسمٰعيل دَ ارمانونو لوئ بحيريم
په چپو کښې دلربا دم په دم غواړم





کاريګو راله زړګے په اور نيوے
خپل قانون ئې پرې پخوا راسي منلے

کهٔ هر څو مې دَاسې سيزي تيخته نهٔ کړم
دب ئې راکړے ماله عشق دے ډير کو بنے

دَ يادونو ستر ببوزے راځخه دے
ځان ته خپله اور بلوم زړهٔ مې بائيلے

دَ فراق مارغهٔ مې زړهٔ ته نزدې ناست دے
پرې ټوټکې وهي له حده ئې نيو تو تکلے

دَ جناب دَ مينې څهٔ عجيب قانون دے
هر عاشق ئې ترمرګې دے کړوے

دَ کړون په بیابان کښې زهٔ هم ګرځم
په څو واریم دَ بیلتون خمار خوړے
اسمٰعیل دَ جانان څنګ له ربه غواړم
مائې څنګ څخه دے ځان له ځائے نیوے





له مودو راسې ژړیږم قلار نهٔ شوم
په دُنیا کښې هیڅ خبر له بهار نهٔ شوم
دَ هجران نیستي په ما باندِ راغلې
دَ دیدن په دولت چرې مالدار نهٔ شوم
دَ دیدن شراب بنهٔ وینمه له ورایه
زهٔ قربت غوړمه داسې میخوار نهٔ شوم
په زړګي کښې راله غم کندې کنستې
له راحته یؤ زره خبردار نهٔ شوم
دَ فراق لانجې نه هر وخت خلاصے غواړم
موده اوشوه ملاقې دَ دلدار نهٔ شوم
له زړګي مې وینې څاڅي په دې سپین شهٔ
خبرځکه دَ دُنیا له بازار نهٔ شوم
اسمٰعیل ځان نه خبر یم چې کباب یم
لا تر اوسه له خپل تپه اوزګار نهٔ شوم



ډېر عالم عاشقۍ پوهه په اسرار کړه
ارمانۍ ئې همه عمر د ماليار کړه

د يار مخ ته ډېر تعجب يمه اخستې
عاشقان ئې مخ په ځان پسې بيمار کړه

له اديه په خرپوسو يار له دروميٰ
ذوالجلال ځکه دوستانو کښې دوئي شمار کړه

رب پخپله په يار خلق عاشقان کړي
د هجران په تاترين کښې ئې ګذار کړه

له دُنيا نه ئې زړه توري کړه ترعمره
د عقبىٰ د غم په اَس باندې ئې سوار کړه

دې دُنيا کښې ئې د حيرت دنيا ته بوتله
راحتونه ئې دې دنيا کښې نرې حصار کړه

مات کچکول ئې هروګړي لره ورکه
ګدا ګو دي ځکه ئې توږل داسې مالدار کړه

عاشقانو دُنيا لوټ کړه ځکه مَست دي
غافلان ئې د غفلت په وجه خوار کړه

عاشقي په دواړه کونه بادشاهي ده
نور عالم ئې د دوئي ځکه تابعدار کړه

اسمٰعيل د دې شاهانو د دړ خاک يم
سرو مال مې په څو واره ترې نه زار کړه

ګذار شوے یم د مینې تا ترین ته
همه عمر انتظار کړم ماه جبین ته

د بیلتون ترخو مې حلق راله تریخ کړے
ځکه هر وخت طمعدار یمه شیرین ته

جوش خروش مې د دیدن هر وخت یادیږي
لاړ په اوښکو څړقا وومه نازنین ته

کامیابي د عشق په لاړ کښې له رب غواړم
چې کړم وړاندې پیر زوني چیل حسین ته

د دلدار د مخ لیده مې لوئې ارمان دے
ډیر لیوال یمه د زړه دغې تسکین ته

په سینه دننه هر ساعت سوزیږم
ځکه هر ساعت ناري وهم برین ته

اسمٰعیل د ګلو لختې پسې ژاړم
دواړه لاسه مې نیولي دي متین ته

---

له مودو ته د جانان په طمعه ګرځم
د ډیر ښکلي عالیشان په طمعه ګرځم

د حیرت په بیابان کښې سرګردان یم
ځکه داسې د مکان په طمعه ګرځم

دَ وفا دَ باغ باغبان مې ډېر یاد یږي
هرساعت دَ دې باغبان په طمعه ګرځم

دَ بیلتون له ناکردو به کله خلاص شم
دَ دیدن دَ ګلستان په طمعه ګرځم

دَ غمونو په دریاب کښې ګوهر ګورم
زهٔ غلام یم دَ سلطان په طمعه ګرځم

په طلب دَ رفوګرنهٔ دَره به دَر شوم
صبح وشام دَ وروغ ګریوان په طمعه ګرځم

اسمٰعیل په مینه ډېر ستر هنرمند شوم
دَ خوبانو دَ پاسبان په طمعه ګرځم



وابه نهٔ وړهٔ مه دَ مینې له عادته
کهٔ مې ژوند شي په دُنیا کښې ترفنا مته

ستا له مخه مې مخونه دي خوبش شوي
ستا په مخ باندِ مئین یم خوبصورته

چې مې اولیدې زړورک شومه له ځانه
داسې برخه رب راکړې له الفته

دا انعام ئې ستا په مخ باندِ راکړے
ستا په مخ عالم خبر دي له قدرته

ك رفوګر: پیوند لګوونکے

لړ ساعت دیدن دې راکړهٔ اوبیا لاړې
خبر دار دې کړمه ډېر زهٔ له فرقته
دَ فراق بلا مدام ما پسې شوې
ځکه هر ساعت نارې وهم په زړېته
په صحرا دَ بیخودې کښې دې لټومه
راشه راشه اې دَ کل عالم حضرته
ستا دَ مینې په کوڅې دام کښې ګیر یم
اسمٰعیل یمه عاجز ستا له صفته



دَ الفت چاره خدایٔ ما لره راکړه
رانه يې پاتې همه عمر دا دنیا کړه
تول کوکل مې دَ فرقت له وِیره ډک دې
دَ زړهٔ خونه يې په ژړا راله تباه کړه
دَ وفا دَ اس سورلي به کړم ترمرګه
په وفا مې خونه ورانه دَ جفا کړه
دَ وفا دَ تورې شرنګ مې هر خواخور شهٔ
په دا چاره يې وفا زما سیوا کړه
چې ژوندي نو دا به نوره هم سیوا شي
هره چاره رانه دې چارې خطا کړه

بصیرت راله بصیر دَ مینې راکړه
شکریه زما په سترګوئ رنړا کړه
اسمٰعیله نوریه هم بنهٔ سیلانے شي
کهٔ نصیب دې کردګار کله عقبا کړه



مئین شوے په جانان عظیم الشّان یم
په جانان پسې مدام ډیر سرګران یم
دَ تکلیف په سمندر کښې هروخت ډوب یم
دَ حیرت سمار ته هر ساعت حیران یم
یم دَ مینې لیونے تبې نیولے
له زبیرګو ته اوزګار نهٔ شوم په لړزان یم
په زړګي باندِ مدام داغونه شمار م
شهنشاه په روئے زمین زهٔ دَ خفګان یم
دَ آهونو په لوګو مې فضا سیاه کړه
دَ یادونو په رنړا پورته روان یم
له پښوا مې خوشحالو ته هجرت کړے
دَ هجران په ناکردو دَ غم داستان یم
له ډیرغمه مې دَ سوز ترانې زده دي
هر ساعت ځان څخه پټ پټ په بیان یم
دَ اُلفت جاندادمې ډیر دے په سینه کښې
غریب نهٔ یمه عالمه زهٔ سلطان یم

هر ساعت دَ دي جائداد څوکيداري کړم
په دي کار کښې يم ما هر مردِ ميدان يم
اسمٰعيل دَ خپل جليل ته امداد غواړم
په څواره دَ جليل لار کښې قربان يم





سپين رُخسار مې مدام ياد دَ عالي جاشي
ډير رنځور يم هم هغه به مې شِفا شي
په فرقت دَ معززِ مې زړګې اُسوځه
دائې حال وي چې جانان له چا جُدا شي
له مودو نه ئې استقبال ته زړه ولاړ يم
خبر نهٔ يم چې به کله رانما شي
له زړګي نه مې راحت په تيښته لاړ دے
چې يار راشي دے به هم ورځخه راشي
دَ غمونو په کړنګ کښې کهٔ څوړ اړم
خدائے شته کهٔ دَ دلبر حق مې ادا شي
دَ زينت له شهنشاه څخه ياري کړم
په خدائے کهٔ دا ياري له ما قضا شي
اسمٰعيل دَ يار ياري داسي ياراباش کړم
چې ترعمره به مې دوئې پسي ژړا شي



چې په ما څو دَ هجران حکمراني وي
ترڅو به په ما ډېره پریشاني وي
دَ دیدن په ورځ به خلاص له پریشانے شم
ټول غمونه به په دغه ورځ فاني وي
خوشحالے له به زۀ غاړه غړتے ور شم
راپه غاړه به دَ مینې سلطاني وي
همیشه به دَ دیدن با غنچه کښې اوسم
همیشه به مې بیا هلته کښې ځواني وي
دَ جانان دَ خُنک خواږۀ به مې نصیب شي
ترمړګي به مې ټول ژوند بیاباني وي
بیابان مې پسې هر خوا لټ په لټ کۀ
چې ترڅو به په ما داسې ځان ځاني وي
اسمٰعیل به بیا نور هم بنۀ مینه ناک شم
چې نظر په ما دَ شاهِ لاثاني وي



ستا په لوړی دړ روان یم له پخوانه
چې به کله دړ رسیږ مه جانانه
ټوله لاړ مې ترمواوښکو لونده کړې
چې ترکومه به دُنیا کښې یم پریشانه

په یو منډه ستا په لوري در روان یم
چې څه وائې هغه کاندم حکمرانه

له حدیده[1] دې هم سخته د عشق لار ده
پښې مې ماتې شوې پتا پسې سلطانه

یو ساعت زه له فریاده غلې نه شوم
له زړګي مې چې آهونه تر آسمانه

د آهونو چپ له ما څخه روان دے
لربه نه شي تردید نه دے له مانه

سودائي شوم ستا د مینې له ډیر زوره
شو کومه زه تاړونه له ګریوانه

د الفت بیړے مې پښو کښې اچولې
ځکه دومره شوم په تا پسې ستومانه

عندلیب دی دا ناري له ما زده کړي
هیڅ خبر نه وو د اوښکو له بارانه

اسمٰعیل چې کله ستا غیږې له درشم
هغه وخت په بس کومه له ژړانه



ته به کله مرور له بد کردار شې
خوبرویا تو نه به کله خبردار شې

زړه له حسد پاک کړه
د الفت په سیمون
پاکیزه شه چې د یار د غاړې هار شې

[1] حدید: وسپنه

دَ دُنیا په لږ ساعت غولیږي څوک
دَ عقبیٰ غم دلته اوکانده چې پار شي

عندلیب غوندې په یار پسې ژړیږه
خندا مهٔ کوه په دې ادا به خوار شي

زړ بنا دَ یؤ ساقي په یاړے اوکړه
دَ الفت شراب ترې نوش کړه چې خمار شي

دا ساقي به دَ باقي څخنګ له تا یوځي
نهٔ به خپله بیا ساقي شي چې راز دار شي

چې ساقي شي عجیبه منظر به وینې
له دې ځایه به ګلشن لوه مالیار شي

هر ساعت به دَ یادونو تسبیح اړے
دا به تا نه قضا نهٔ شي چې دَ یار شي

دَ لبیک آواز به هر وخت ستا په خُلهٔ وي
دَ دُنیا له خواهشاتو چې کنار شي

اسمٰعیل دَ ګل اندام سره یاري کړم
نهٔ به هم کړې چې زما په شان بیمار شي



هیر لتانه ولې داسې خپل حضرت دے
په کوُنین له ټولو ښهٔ شے محبّت دے
دَ ژړګي تا خچه کښې عکس دَ زیبا کیږه
هر ساعت یې ځکلوه دا غنیمت دے

دَ یارے تړون دِ یار سره زړاوکړه
بې یارے ژوندون دې ټول کورے لعنت دے

دَ لعنت دې لوئې کړنګ ته کړذار شویه
له الفته ولې داسې ستا نفرت دے

په چاقو دَ حُب زړګے تیکې تیکې کړه
په دې پوهه شه چې دا لوئې شجاعت دے

دَ زیبا مخ ننداره به دِ نصیب شي
هغه ئې کاندي چې خپل کړے ئې صداقت دے

محبّت لره روُوف ئې پیدا کړے
دَ دې چارې په بدله کښې ډیر زینت دے

دَعدن په طمعه هر ساعت اوسیږه
دیدار غواړه دَ مولیٰ دا عنایت دے

هر ساعت کوه باران دَ ترمو اُوخکو
ژړیدَهٔ دَ الله ؐ دربار کښې شرافت دے

اسمٰعیل مدام دَ مرګ په انتظار یم
په دا چاره رب راکړے سلطنت دے





اوچ په اوچه زَهٔ اشنا دَ دلبر نهٔ یم
کړوے ئې یمه هسې نوکر نهٔ یم
دَ الفت کان مې موندلے له پخوانه
دَ زړهٔ کور ته ترې راؤړم بې هُنر نهٔ یم

زه بنده ډېر سرمايه دار شومه دې کار کښې
په دُنيا کښې بې هوده مسافر نه يم

د هجران په کوډالے يانډِ توک توک يم
خو جفا ته لږ ساعت هم نهر نه يم

هر ساعت چې د فراق په لمبو سوزم
زه په ولې داسې هر وخت کسکر نه يم

توره شپه کښې له يادونو ښخه اوسم
خبر شوے په دنيا له سحر نه يم

دا وفا ما اسمٰعيل له ربّ راکړې
ځکه داسې له خندا نه خبر نه يم





له قديم ښخه يارې اوکړه چې بر شې
داسې کار مه کانده چرې چې پرې لو شې

له حسده په دُنيا کښې خُول پُول کړې
چې له دځ ته به ته کله مرور شې

د بيلتون نوبت غږول کورے زر زده کړه
په دا چاره به ته يار د منوّر شې

د کوشش په اَس سوار شه تيز زغل کانده
خبردار يه په دې زغل له يحي وير شې

له مرګي پورې کوشش چرې پرېنږ دې
بيا به تا له شاهي در کاندي چې ور شې

دَ زړګي کوړ دې دَ مينې له اور ډک کړه
ډېر به خوښ شې دَ اشنا چې ډېر کسکوږ شې
اسمٰعيله په دې لاره تيغ روان ئې
ملاقي به ته دَ صاحبِ کوثر شې





په مکتب دَ عاشقۍ کښې سبقي شه
کمالي نه کمال زده کړه کمالي شه
دَ سينې پټې کښې ګړ دَ ګلو او کړه
خپلې وينې وړکوه داسې مالي شه
دَ آهونو لوئي قطار تر آسمان جوړ کړه
کنده بوټو نه په داچاره خالي شه
دَ يار دونو نمر پرې هر وخت نيزه وار کړه
خيرانړ ے له ئي له پاک ربهٔ سوالي شه
دا ګلزار بيا خپل ګل رُخ جانان ته پيش کړه
همه عمر تهٔ نوکر دَ دې لالي شه
دَ وفا په تخت دَ يار په څنګ کښې کېښه
له جماله جمال واخله جمالي شه
اسمٰعيله په دُنيا چې څو ژوندے ئې
هر ساعت په دلربا پسې خيالي شه



سره ګلان تروتازه د ګلستان دي
ډیر عالم ئې ځکه هروخت په ارمان دي

د ارمان په نهرئې هر وخت غوټۍ سوزي
د یا دونو په دُنیا کښې سرګردان دي

هر ساعت د حُب سودا کړي بل څهٔ نهٔ کړي
له حسد ځنځه مدام مشت وګریوان دي

د زیب اورئې په زړګي باندِ بلیږي
په څو واره په جانان باندِ قربان دي

له آهونو به دوئ خلاص نهٔ شي ترمرګه
په داچاره هر ساعت پورته روان دي

نفس شیطان ځنځه ئې بدي ده زورَوره
جهاد کاندي دوئ ځکه تو پهلوانان دي

اسمٰعیل و ځنځه ځکه یاري کاندم
تړي خبریم چي د پاک الله یاران دي



د زړهٔ خونه مي ویرانه کړه هجران
ما سیراب کړلو په اوښکو بیابان

د سیتي صحرا مي شوه کندي کپري
د غم یُوم تري لوي نهٔ شولو یوآن

ما یو واري له دُنیا نه هجرت کړے
بل هجرت ته انتظار کړمه ناتوان

دَ وفا سودا کړے کښي کټور شوم
خدائے مه کړه چي په زړه اوکړم تاوان

په جانان پسي له خپله ځانه ورک یم
رب را کړے ماله عشق دے عالیشان

دَ عشق چاره هري چاري نه ده کرانه
فریادونه ځکه کاندي عاشقان

اسمٰعیل له عشقه عشق یم خبر کړے
ځکه کاندمه مدام دَ عشق بیان





دَ عشق کار کښي کوړے چري تعطیل نشته
په یو ځائے کښي مي ثاني دَ جبیل نشته

دَ عشق لاره ناتمامه ده خبر شه
رسیده وړته دَ تیز جبرائیل نشته

بس مزل پري هر ساعت لوئي عبادت دے
داسي بل یو عبادت دَ جلیلؒ نشته

په دا لاره عاشقان په زړه غلبیل شوه
او دړیده ئي دَ چشمانو دَ نیل نشته

دَ عقبیٰ په غم ککړ یار لره دړومي
چري غم وړخخه بي له خلیل نشته

ارمانونه ئې له مودونه زړهٔ کښې پړېږدي
دَچاوَس کښې رَدې ټولو تفصيل نشته
دَ فراق تورو تيَرو نه به خلاص نهٔ شي
چې خوباخو دَ کهدا اسمٰعيل نشته





عاشقان مدام دلبر پسې ژړېږي
دَ خپل يار په لوري درومي نه اودريږي
په آهونو ئې مرے وي سوزيدلي
دَ يادونو بيابان کښې تل اوسيږي
په ډېر شوق دَ معشوقې مدحې وئيل کړي
په دې مدحوئ مدام زړونه غوټيږي
دَ فراق له ناکردو سره ئې ژوند وي
يو ساعت پرې په قرار نهٔ تيريږي
دَ صنم صنم تدا دَ دوئ په خُلهٔ وي
دَ غم تميل ورته هر ساعت غږيږي
ټول عمر ونه ئې دَ بيلتون په تبرمات وي
يو ساعت ئې هم زيبا نهٔ په هيريږي
اسمٰعيل هم دَ جانان په ارمان کړمي
په سينه کښې ئې دَ هجر اور بليږي



ستا په لوري مې زړه تلے له پخوا دے
ځکه تا پسې مدام دے په ژړا دے

ټول ټوکل مې ستا دَ مينې په اور سوزي
هم دا اور ما لره هر وخت رهنما دے

دَ غوغا په بنار يه کښې دې لټومه
ستا په مينه کښې مې چل زده دَ وفا دے

دَ حيرت دَ زوُلنو په تماشه يم
دا حيرت جانانه ما لره زيبا دے

هر ساعت زړه نور حيرت له ربه غواړم
په دا غوښته رب لما نه ډير رضا دے

زړه خو ستا دَ ښکلې مينې لائق نهٔ يم
دا په ما بانډِ بس فضل دَ مولا دے

ستا له رويه دواړه کوُنه پيدا شوي
اسمٰعيل ځکه دا ستا دَ در ګدا دے



دَ عشق ډُوپ کښې دَ خوبا په لور روان يم
هم ګدا يم په دا چاره هم سلطان يم
زړهٔ مې يار پسې يا دونو ښهٔ نس نس کهٔ
له آهونو څخه خلاص نهٔ شوم پريشان يم

دَ فرقت په بيابان کښې سفر کاندم
دَ زينت په نمر سوزيږمه ناتوان يم
چې مې کله دَ وفا عُهده تر لاس کړه
له هغې راسې دَ وصل په ارمان يم
دَ دلدار دَ ياراني سته مې خستې
دَ عشق باب نه زهٔ مدام ځکه ګويان يم
زهٔ دَ عشق په پسرلي پسې ژړيږم
خبر شوې ډير جوړ زهٔ له خزان يم
دَ هجران سوکړې مې تن همه نچوړ کهٔ
ارماني ځکه دَ وَصل دَ باران يم
محبّت راله سينه فراخه کړې
هر ساعت کښې له جانانه زهٔ قربان يم
دَ اُلفت دولت مې ډير دې جمع کړې
غريب نهٔ يمه عالمه زهٔ سلطان يم
اسمٰعيل په عاشقۍ کښې ديوانه شوم
ځکه خپلې ګوتې شمارمه حيران يم



زهٔ به نهٔ شمه له تا نه بې پروا
ستا دَ پاره زما زده دَ عشق ادا
ستا په مخ پسې مې سترګې دارې کاندې
خپلو اوخکو کښې زهٔ ډوب يم له پخوا

دَ دیدن سوال دي کوم دَ زړه له بېخه
کړی قبول به مي دا سوال غني مولی

ستا دَ سترګو تور مژګان مي په زړه خږ دي
په دي یادو ځکه اخلم هره سا

په کویوان کښي مي وروغ ځای نښته دلبره
تار په تار کړه دَ هجران توري بلا

دَ غمونو په حیواد کښي کدا کریم
ستا له رویه مي نصیب ده دا کدا

اسمٰعیل به ستا دَ مینې شراب غواړم
چي ژوندی یمه ترڅو په دي دُنیا





یادَ وه مدام دَ حسن لوئي بازار
په هیڅ نهٔ کړي تهٔ بي مثله حسن دار

همیشه پوچه وینا کړي بل څهٔ نهٔ کړي
ولي نهٔ ویرېږي تهٔ له کردګار

دَ دُنیا لالچ اخستی يُ کم عقله
له عقبیٰ نه يُ غافله شه هوښیار

دَ حسد په خرهٔ سور شوِ په زړا کوزشه
چي دي رب کړي دَ الفت په اَس سوار

دَ الفت په اَس شهٔ تیز جانان له ورو
رسیدلی دیر عالم دی په دالار

دَ جفا نام ونشان له ځانه ورک کړه
دَ وفاه باغیچې کړه ځان مالیار
اسمٰعیل دَ وفا لار معلومه کړې
همیشه پرې ځکه تیز کاندي رفتار





اے غافله له غفلته رابیدار شه
له دُنیا نه په عقبیٰ پسې کنار شه
دَ نیکے کار لره هر وخت چټ پټې شه
بدکارونه همه رد کانده هوښیار شه
په وفا دَ جفا خونه کړه ویرانه
اے غریبه په وفا باندِ مالدار شه
په دُنیا کښې ځان له یؤ رهنما خوښ کړه
چې څهٔ وائي هغه کانده تابعدار شه
دَ بیلتون په اور زړګے ځان له سنې کړه
دَ دیدن په ارمان هر وخت ناقرار شه
دَ زیبا نګار یادونه هر وخت کانده
دَ آهونو دَ لښکو سپه سالار شه
په تفصیل دې ورته اُووې کهٔ پوهیږې
اسمٰعیله له غزله نور قلار شه





ډیر مئین په عالیشان یم ځکه ژاړم
د سرولبو په ارمان یم ځکه ژاړم
تمول زړګي مې د الفت چونګاړ وخوړ که
د حیرت په لار روان یم ځکه ژاړم
منتظر بیلتون له برمه یم پرې ایستې
انتظار کښې د جانان یم ځکه ژاړم
د دیدن پسرلے غواړم له خدایه
لکه پاڼه د خزان یم ځکه ژاړم
د یارمینې د غم اورته ورګذار کړم
ډیره شوې په نیران یم ځکه ژاړم
خوشحالي ئې رانه ترمرګه پاتې کړې
زړه په داسې مینه ځوان یم ځکه ژاړم
اسمٰعیل د ګل اندام یارے زده کړم
په جانان پسې پریشان یم ځکه ژاړم



همیشه به ستا په لوری کړم سفر زه
شه به سترے کړم په تا پسې جګر زه
له مرګي پورې په چرې مقیم نهٔ شم
ستاله دره بغیر نهٔ لرم بل در زه

دَ رهزن ملامې چوړ لټه ماته کړي
ستا له رويه دړ روان يم برابر زه
ستا په لاره کښې لعلونه زه ډېر مومم
دَ زړه تاخ کښې ئې ايږدمه په هنر زه
ستا ديدن ته ډېر ليوال يم له پخوانه
ځکه هروخت ياد ومه ستا بشر زه
ستا بېلتون راځخه ډېره وفا کاندي
يو ساعت ئې له تانه کړم مرور زه
اسمعيل له دې دنيا نه لاس اخستے
ځکه واۍ هير به نه کړمه دلبر زه





دَ جانان کوڅې مينې ديوانه کړم
زه دې شکلې بلې شمعې پروانه کړم
دَ زړه سرمې دَ وفا په توره غوڅ دے
دَ يار مينې زه بندي په جيلخانه کړم
دَ يار مينې راله وينې کړلې اوچې
زه به څو داسې دنيا کښې ټکانه کړم
همه تن مې دَ وفا په غنشو لګي
همه عمر ئې دَ غنشو نښانه کړم
دَ ساقي دَ جام ادا ما بنه زده کړې
ميخوارانو له ئې ځکه ميخانه کړم

عاشقې دَ لادو بادو یم پرې الیستې
په دنیا کښې ئې بشهٔ لویه افسانه کړم
مامدام دَ عاشقې دولت غوښتلې
ذوالجلال ځکه زهٔ پیښ په خزان کړم
اسمٰعیل یه بې له عشقه ساوا نخلم
دغې چارې زهٔ داهسې جانانه کړم



نهٔ زما مالیار ئې زهٔ دې یم لکه بُلبل
ځکه مې تو دکړې په چغار دے چاپیر چل
ستا مدحې په واېمه چې خو پورې ژوندے یم
غلے په ترې ښنک شمه چې اور دے په ما بل
ستا دَ باغیچې خوشبو اطراف کښې خورَه ده
ځکه دې خوشبو کړهٔ بورا کان ځان پسې دَل
مینې دې په زړونو اور بل کړے دے دَ ډیرو
شو وارئې ځان قربان کهٔ ستا دَ زلفو په هر وَل
ټول له غمه ډک ګرځې دُنیا کښې ستا له عشقه
ټول ګوته په خلهٔ دی ترې نه هیرځانو نه خپل
خو مره پرې عاشق ئې دومره دوئې په تاکیدے نه شې
ښکلے دې منشور دے تهٔ پوهیږې مکمل
تا څخه به پرې نږدم یارې زهٔ اسمٰعیل ګله
کهٔ اومې ترې زنه پس له مرګه په ململ

تول ګریوان مې سناپه مینه تار په تار که
ځان مې تاله په غمونو بنه سنګار که

ستا د یادو په پوکو مې زړه بل کړے
له مرګي پوړي مې خوبن ځان له داکار که

د آهونو دشت زما په ذمه شوے
مقرر راله آهونه کړد کار که

چې له کله مې د زړګي په کور میلمه کړې
هغه وخت مې ځان له هر څه نه اوزګار که

همه عمر به هم ستا میلمستیا کاندم
ستاله رویه رب زما کوهر بسیار که

ستا په مینه شهنشاه شومه احسنه
په څو واره مې ځان تا پسې په دار که

اسمٰعیل په عشق کښې هر وخت ترقي کړم
ډیر عالم راته حیران غني غفار که

---

له رخساره دې زیبا نښته رخساریل
پیدا نهٔ دے ستا په شان ګله مالیار بل

ستا یادونه مې مدام مازغهٔ راکښي
زړه په خنګه بې له دې کاندمه کار بل

په سینه کښې مې دَ مینې بازار جوړ دے
اے دلبره راځه په څه کوم بازار بل

دَ بیلتون سکروټو تن زما ستی که
او به نهٔ ویمه دا رنګې انکار بل

په نصیب کښې مې سختی دَه رب لیکلې
ما په شان ته له دُنیا نشته کنار بل

دَ مشکل هجران سوکونو باندِ لګم
څنګ به او کاندې زما غوندې ناتار بل

اسمٰعیل دَ عشق شیبرې یم نیوے
او به نهٔ ویم دَ ځان پشان بیمار بل

---



له الله نه هر ساعت غواړم جانان راځه
له مودو راسې کومه هائے سوران راځه

دَ سوچونو لوئې بحیر مې سر کښې ځائے دے
دَ جانان مخ پسې ډیر شوم سرګردان راځه

چې ترڅو مې خپل دلبر لیدلے نهٔ وي
له هغې پورې به کاندمه خفګان راځه

په عالم کښې مې ثانی دَ خوبا نشته
څنګ به هیر کړم داسې ښکلے عالیشان راځه

دَ چشمانو ورخ مې نهٔ تړلے کیږي
چې ترڅو یم په دنیا کښې بندیوان راځه

اوبه نه اوڅم د اوښکو له دریابه
اوزګار نه یم د غمونو له ربابه
د فراق ګلې په ما باندې راووري
تول ئې شین کړم دیدن غواړم له جنابه
هر ساعت زه د عشق باب حفظ کومه
ډیر سبق مې دے یاد کړے له دې بابه
د سینې تختې مې ورو په ورو ډکیږي
څو به ئې لیکي خبر نه یم له حسابه
د یار مینې په څلکو کړمه بې دریغه
ځکه داسې شوم عاجز زه له جوابه
نقاب پوش مې ډیر یادیږي له پخوانه
چې به کله مخ څرګند کړي له نقابه
اسمٰعیل د ساقي جام نوش کول غواړم
خبر ځکه چرې نه شوم له شرابه

---

همه عمر به زه چرې جفا نه کړم
بې له مینې به زه بله سودا نه کړم
زما سترګو نه هر وخت باران ووري
چې مې یار لیدے نه وي خندا نه کړم

دَ زبیرکو سیمه کښې اوسم قرار نهٔ شوم
زبیرګي کاندمه ډیر پټ زهٔ له عالمه
اسمٰعیل دَ مسیحا په انتظار یم
زهٔ به يې زار شم په څو وار له هرقدمه

ستا په لوري مې روان دي اسویلي
اسویلو کړمه جانانه کمالي
دَ کمال په اس سوار تاله درځمه
له جفا نه یمه تا پسې خالي
دَ خزان بادیم په تا پسې اوچ کړے
همیشه یم په ارمان دَ پسرلي
مشکلات راته جوړ کړي اوږد هجران دي
ده راغلې په ما ځکه سیادلې
دَ غمونو دَ دریاب په تل کښې ګرځم
ځکه لا نهٔ ړهٔ له ماسنه ملالي
چې مې اوبوختې په منډه به در اوځم
ما به بوځي خپل ګلشن لره مالي
اسمٰعیل به همه عمر ستا مالي یم
خدائے ځکه کړم مدام داسې سوالي



په خوارۍ مې له جانانه ځان قربان کړ
په سرو وينو مې رنګين دعشق ميدان کړ

په غمونو کښې شپه ورځ داسې مصروف يم
چې مې وروست په ترمواوخکو ځيل ګريوان کړ

دصدبر په انتظار دعشق داستان شوم
ډير عالم مې ځکه ځان ته ډير حيران کړ

په آهونو مې فضا کړه تکه توره
ډير آهونه مې سينه کښې بنديوان کړ

له سينې نه مې مدام بريخونه خيژي
له چشمانو مې دريا ځکه روان کړ

بېلتانه رابانددِ ژوند همه اور سکور کړ
له مرګې پورې ئې جدا را نه جانان کړ

اسمٰعيل دجانان سترګو ديوانه کړ
دې عهدې پسې خدائے ډير په ارمان کړ

* * *



خوښ مې ډير له حده تير عالي جناب دے
همه تن مې پډې اور باندِ کباب دے

له سينې نه مې هجران خوشحالي وړې
ځکه ښر پکښې له غمه ډک رباب دے

دَغمونو ترانې مې ډېرې زده دي
په زړګي يې راله ليکلې لوی کتاب دے

ټول کوکل مې د يا دونو مدرسه ده
شپه اؤ ورځ مې زړګے ځان ته په خطاب دے

تيرې چغې کړې مدام دَعشق له موجه
نيزه وار ورته مدام دَعشق آفتاب دے

په آفتاب دَعشق مې تن همه سيزے
نور به هم پرې داسې سيزمه ثواب دے

اسمٰعيل پدې ثواب باندِ نواب يم
تا سو اوګورے څوک ما غوندې نواب دے

---

په دُنيا کښې ته دَغم ترانې زده کړه
له غمونو څخه ځان سِنهٔ اُموخته کړه

ټول زړګے دې په حسد دے خاړه کړے
دَ توبې په اوبو يې زر زر پاکيزه کړه

دَ الفت چونه پرې اومږه چې سپين شي
همه عمر دې جانان پکښې ميلمه کړه

دَ غفلت په خوب اودهٔ شابه را پاسه
دَ وفا وسله مدام له ځان څخه کړه

دَ جفا نام ونشان پرې مدام اوله
له سينې څخه جفا کوړے چپه کړه

جفا اوله چې یار تا اولی په غشو
د یار سترګو ته زړګے چپل نښانه کړه
اسمٰعیل مدام د غشو نښانــه یم
ځان زما پښان دُنیا کښې غمزده کړه

همه عمر به تیرومه په وفا کښې
لاهو شوے یم د مینې په دریا کښې
زهٔ د عشق جلاد څو واره یم وژلے
تر مرګي به داسې مرمه په دنیا کښې
د یا دونو په پوکو ځان دمَومه
ګرانه چاره ده را پیښه په صحرا کښې
عندلیب زما ژړا ته حیران شوے
یؤ ساعت مې چرې نیر نهٔ کهٔ خندا کښې
د دلدار تصویر مې زړهٔ باندِ جوړ شوے
ورته ګورم هر ساعت په حیراننیا کښې
د دیدن د یاره ئې هر وخت شکلومه
دا ادا زده کوم د هجر په قلا کښې
اسمٰعیل د هجر فن داسې ماهر کړم
چې مدام رضا لټوم د یار رضا کښې

زما زړهٔ خو قبضه کړے محبّت دے
سرې چودے په کښار دَ معرفت دے
دَ یادونو په بڼے ئې ببلوُمه
همیشه به داسې کوم دا غنیمت دے
بې له یادو پما وخت کله تیرېږي
ډیر مٔین یمه په یار دا حقیقت دے
ککوے کښې مې دَ فکر تال جوړ شوے
رب راکړے دَ فکرونو سلطنت دے
دَ غمونو تاج مې هر ساعت په سر وی
په آهونو ئې جوړ شوے ډیر زینت دے
دَ آهونو په لوګو مې تک تور کړے
یار مې دې ته زینت وائې دائې صفت دے
اسمٰعیل به همه عمر گدا کا تدم
ربّ راکړے دې ګدا کښې ډیر دولت دے

زما زړهٔ دَ فریادونو خزانه دهٔ
راختلې ئې په سر غته داسته دهٔ
له ډیر درده مسیحا مسیحا وائې
دهٔ زده کړي بس هم دایؤ ترانه دهٔ

انتظار ئې رنګ شین کړے له پخوا دے
اداځکه دَ دۀ داسې جانانــــه ده

په جانان پسې سینې نه راوتـــلے
ترې نه پاتې په سینه کښې خیلخانه ده

همیشه دَ بېلتانهٔ تبې نیولـــے
ترې نه لرې دَ دیدن شِفاخانــه ده

دَ مرګي په ورځ به دے شِفا بیا مومي
ترهغې ئې په نصیب دَ رنځ خانه ده

اسمٰعیل له ډېره فکره حق دق شوے
نصیب شوې ئې دُنیــا کښې یارانه ده

---

زۀ دَ حُسن په دُنیا کښې تل اوسېږم
ځکه داسې په لمبو باندِ سوزېږم

دَ حکمت آئین نه کور م ډېر حیران یم
ورو په ورو په داسې نورنهم حیرانېږم

دَ یار مینې مې دنیا نه زړۀ موړ کړے
په دې مینه باندِ ځکه نهٔ مړېږم

هر ساعت دَ فریاد و نو بیابان کښې
په طبیب پسې له ښده تېر ژړېږم

دَ سینې میره مې تندې ده اخستې
دَ دیدن په بارانهٔ پسې اوچېږم

هر ساعت مې په یادونو زړه داغې شي
په اشناپسې په دې رنګ له کړیږم

له آهونو نه مې چتر په سر جوړ دے
له عالمه په زړه تنه پټ پخیږم

د وفا په ناتمامه باغستان کښې
په خپل یار پسې زه شپه او ورځ ګرځیږم

دلربا مې هر ساعت زړه ته کویا دے
ځکه نور نور له دنیا کناره کیږم

د فراق د زولنو په څه اووایم
بس دا وایم چې مدام پرې ډیر خوږیږم

دلربا راته د زړه آئین کښې ښکاري
اسمٰعیل ترې صبح وشام ځکه زاریږم





غُس دې په خنجر یم اے دلبره بنهٔ مُحکم
ستا په بیلتانه مې شهٔ زړګے قلم قلم

ستا په محبّت مې په زړګي دے اور بل شوے
ځکه هر ساعت کاندمه زهٔ داسې ماتم

حلق مې په نوکو باندې تک تور دے دِل آرامه
کړمه زهٔ آهونه یاره تاپسې هر دم

زهٔ د فریادونو بیابان کښې ډیره شوے یم
بې لتا به دروغ نهٔ شمه خوړم پدې قسم

زهٔ دَ اوخکو سمندر کښې تما شګیر یم
لا هو شوے له پخوا پدې بحیر یم

په ژړا مې زړهٔ له هر آفته بچ دے
ژړیدلے ځکه یار پسې کثیر یم

دا پیشه به چرې پرېږدم دُنیا کښې
کهٔ هر څو مره زهٔ پدې باندِ زهیر یم

خندیدهٔ مې دې ژړا لما هیر کړې
پدې چاره باندِ زهٔ روشن ضمیر یم

په سبق دا انتظار زړې زړې شوم
له پخوا راسې شاګرد دَ بنګلي پیر یم

په دیدن پسې مې تن په لمبو سوځي
اخته شوے له مودو راسې په وِیر یم

اسمٰعیل لکه غلبیل سینه لره مه
صبح و شام زهٔ نښانه دَ هر یوٗ تیر یم

---

په نصیب مې دَ غمونو انبار شته
په زړګي کښې مې یادونه دَ یار شته

دَ عشق کار لره زهٔ هر ساعت تیار یم
عندلیب یم پما حق دَ مالیار شته

په مقراض يې دَ الفت زړونه غُس شوي
په جامه دَ ګدايۍ کښې بادشاهان دي
چې ګذار ما اسمٰعيل په زړګي اوخوړ
پس له هغې مې ړګونه ټول ګويان دي

⁂

سرومال مې هر ساعت دَ حُسن دار دي
ورته ايښي مې دَ مينې په انګار دي
همه عمر مې غوغا زړهٔ جوړه کړې
دَ يارے بنهٔ ډير داغونه پرې قطار دي
ډير غمونه مې سينه کښې دي پټ شوي
هر ساعت يې راله کنې ټول خون کار دي
په يادونو مې سينه نته پخــه ده
او آهونه مې هم يار پسې بسيار دي
ډک کنډول دَ ميوغوارم مې پرې ترشم
سوزولي مې هلاونه دَ عشق نار دي
دَ هجران له طوفانونو به په امان شم
داخيرې ماته کړې خپل ريبار دي
اسمٰعيل يواځې دا انتظار نهٔ کړم
ډير عالم مې دَ اشنا په انتظار دي

ی

په نصیب مې ډېر یادونه دَخپل یار دي
ماموندلي له پښوا په سر دَ دار دي
په زړګي مې لاکړه کاکړه راختلي
فریادونه مې مدام ځکه بسیار دي
له حاکم څخه نوکر یم بیابان کښې
خوړیکونه مې پراته ډېر په رُخسار دي
دَ دلبر مینې له حده تیر ناتوان کړم
ټول هډوته مې مودونه ناقرار دي
دَ خزان باد مې ګریوان ټول تار په تار که
تنړې ئې ټولې خکته مزکې ته کذار دي
دَ یار درته زه په لوُسه سینه درومم
پرې رضا یم داسې مالره پکار دي
دَ یار مینې اسمعیل له غمه ډک کړو
ځکه ئې هر ساعت آهوته په رفتار دي

م

تل یادونه به زه ستا دَ بشر کاندم
ستا په لوري به ترمرګه سفر کاندم
ستا یارے مې په زړه اور دے لګوَلے
فریادونه ځکه شام وسحر کاندم

یو ساعت مې چرې تیر نهٔ کهٔ بې غمه
همه عمر زهٔ فکرونه جوړ کاندم

دَ خفګان په بیابان کښې شپه ورځ ګرځم
خوشحالے لره زهٔ داسې هنر کاندم

مدام ځان ځنې دَ اوښکو لښکر بیاسیم
ننداره مدام دَ زړهٔ دَ پرهر کاندم

دَ رضا له تخته چرې نهٔ کوزیږم
همیشه په پیروی دَ رهبر کاندم

ډیر شاکر یم چې پیر زما رهبر دے
اسمٰعیل مینه دَ دهٔ په نظر کاندم





ستا په مینه کښې له ځانه خبر نهٔ یم
بې خودی ده له جهانه خبر نهٔ یم
ستا دَ مینې فلسفې مې ماغزهٔ شنهٔ کړهٔ
توره شپه ده له صبا نه خبر نهٔ یم
همه عمر مې هجران ملګرے شوے
زهٔ تر اوسه له خندا نه خبر نهٔ یم
دَ جوړې مینې اور را باندِ بل دے
دومره ډیر دے له میزانه خبر نهٔ یم
په سینه کښې مې هر کوټ ته سازِ غریبې
پدې وجه له جفا نه خبر نهٔ یم

د الفت په کور نے کښې يم لوئ شوے
د حسد تورې بلا نه خبر نهٔ يم
اسمٰعيل د زړهٔ د نخوړ يمه پخوا نه
شفا غواړم له شفا نه خبر نهٔ يم





د يار دونو سمندر کښې د زيبا په انتظار يم
ډير زړهٔ چودے پسې کړے مېن شوے په قرار يم
نهٔ ژوندے يمه نهٔ مړمه دا په ما باندِ څهٔ شوی
نور خبر نهٔ يم له هيڅه يؤله مينې خبردار يم
د وفا په اور سوزيږم له مودو راسې سينه کښې
داسې نور اور له ربهٔ غواړم پوهه کړے بنهٔ ربار يم
د کمال په آئينه کښې راته ځان غمژن ليدے شي
په جمال پسې کړيږم له مودو نه خوارو زار يم
د يار مينه همه عمر حيرانتيا ده بل څهٔ نهٔ دي
د حيرت په بيابان کښې د حيرت په آس سوار يم
حيرانتيا زما په سر کښې هر ساعت ماغزهٔ راکښي
ځکه هر ساعت دُنيا کښې زهٔ ولاړ په سر د دار يم
د يار مينې اسمٰعيل د بيلتانهٔ کړمه ملګوے
نو موکي به ئې ملګرتيا کړم پرې به ئې نړدم وفادار يم



په سينه کښې مې د مينې انګار شته
زما زړه بانديِ تصوير د نګار شته

زړه مې هر وخت د دلدار په مدحو مست دے
په نصيب کښې مې يارى د دلدار شته

له يارے څخه به لاس چرې وانه خلم
په دې چاره کښې دولت د اسرار شته

همه زړه مې له اسراره څخه ډک دے
ځکه مالره غمونه بسيار شته

د غمونو په ځنګل کښې تل اوسيږم
زما مخ باندې د اوښکو قطار شته

دا قطار به مې په مخ هر وخت روان وي
څنګ به ئې اوړوم چې د هجر ناتار شته

اسمعيل به له هجرانه فلاح مومم
ما د ياره بنۀ خوشبو لاله زار شته



همه عمر به کومه زۀ ارمان
داسې کار راته خودلے دے يزدان

په ديدن به مې همه هډونه سپک شي
ترهغې به پرې بوج پروت وي د هجران

په جانان پسې مې داسې اوخکې وورې
لکه ځنګ چې پشکال کښې وښي باران

په سینه کښې مې دَ غم سیند غورځنګ کاندي
خیله زهٔ یمه دې غم ته ډیر حیران

هو ساعت راته یار مخکښې مخکښې کیږي
هیر په نهٔ کړمه ترمرګه عالیشان

ډیر عالم ئې په دیدن پسې بېنا شوهٔ
خپل جانان له ورایه وینم هر زمان

اسمٰعیل دَ یار دَ مینې لوئې ثبوت یم
کهٔ پوهیږې څوک زما پدې بیان



دَ فکرونو په کوڅو کښې ګرځنده یم
زهٔ دَ یار دَ تیرو غشو اموخته یم

په زړګي مې دي تسپاڼي راختلې
مسیحا پسې مدام ډیر غمزده یم

ما اؤ یار مې له پخوا سمجوته کړې
چې به یار پسې خفه زهٔ همیشه یم

دَ تسکین تون یه لما چرې هیر نهٔ شي
هم په دغه لور روان ډیر عجیبه یم

دَ سینې حجره مې ډکه ده له رنځه
ورو غو خلقو لره لویه تماشه یم

ډېر يادونه دي پېما ميلمانهٔ شوي
همه عمر به دَ دي تړلو کوم به يم
اسمٰعيل دَ فريادونو چم کښې اوسم
هسې ښکاره مه ژړوندے خوږه مرده يم





ولې دې الفت بدي شي اے ډيره نادانه
پرېږده دَ حَسد کار ونه پاک لا ړشه دُنيانه
زړهٔ پوره دې خيري بختي څکه ليدهٔ نهٔ کوي
څوپوره به کړئ داسې بيله له جانانه
زړهٔ دې دَ توبې په اوبو پرېږې اينځه په بيړه
ولې خبر نهٔ شوې تهٔ تراوسه له وفاته
مينه دَ خوبانو چې تهٔ نهٔ کوې نوڅهٔ کوې
حيران يمه چې څهٔ غواړې تهٔ شپه ورځ له جفاته
مينې له پيدا ئې نوله مينې ولې تختې ته
شابه زړ را اوګرځه چې بيا نهٔ ئې پښيمانه
لاړې ته دَ مينې بنهٔ په زور زير کاتهٔ اوکړه تهٔ
چرې هم اونهٔ دريږې پرې څه ترعاليشانه
لاړ دَ عاليشان در نه ځکه ما در اوخوله
روان يم پدالاره اسمٰعيل ډير له پخوانه



اے عالمه دَ يار مينې حق حيران کړم
دَ غمونو زولنو کښې يې بنديوان کړم

دَ يار دونو تاخانه کښې تل اوسيږم
ځکه هر ساعت خيرې دَ هجران کړم

دَ زړه کور مې دَ هجران اور سوزوے
ځکه شپه ورځ زۀ آهونو سرګردان کړم

لاس دَ مينې مې ورکړے دے جانان له
همه عمر به رضا زۀ دَ جانان کړم

دَ رضا چاړې سينه ماله رنړا کړه
دې رنړا زۀ دَ جانان په لور روان کړم

هميشه به په دې لار باندِ روان يم
هميشه به دلربا پسې ارمان کړم

دَ مرګي په ورځ به زۀ ملاقې کيږم
اسمٰعيل ځکه مدام دَ يار بيان کړم

---

په زړګي مې دَ يار مينې اثر کړے
پوخ ګزار پرې هجران ځکه په سر کړے

دَ طبيب په لور روان يم فرياد کاندم
دير رنځور يم بنۀ مې ځان ته نظر کړے

دَ یا دونو امتحان لہا نہ اخلي
مهتحن پہا دَ میني منتر کړے
دَ وفا پہ کړزمې هر ساعت وهل دي
دَ اَشنا پہ لور مې ځکہ سفر کړے
ترموګي بہ دا سفر دغسې کاندم
دې خبرې تہ مې فکر جوړ کړے
دَ سرور دَ لیدو هروخت ارماني یم
لہ پخوانہ مې طلب دَ سرور کړے
اسمٰعیل دَ سرور میني ډیر خالُستہ کړم
ربہ پہا باندې دا بشکلے هُنر کړے





دَ دلبر دَعشق دریاب کښې سیلانے یم
لا هو شوے پکښې زۀ ډیر پخوانے یم
ملغلرې پکښې مومم دَ یار در لہ
پہ دې کار کښې زۀ خدے کو مړانے یم
سر و مال مې لہ خپل یار نہ تخنہ زار کړہ
زۀ پہ یار باندِ تول عمر تالانے یم
بې خودي مې لہ ازلہ رسیدلې
ناخبرہ دَ یار عشق کښې لہ ځوانے یم
اسمٰعیل بہ دَ یار در تہ ضرور لاړشم
زۀ خپل یار لہ پردے نۀ یم کورنے یم

دَ يار ميني زهٔ خبر له بحر و بر کړم
ځکه هر څهٔ نه زهٔ ډير دقيق نظر کړم
دَ وفا په رنګ رنګين يم سرتاپايه
ځان به داسې يار له نور هم برابر کړم

دا سنګار راته مدام دِيبار راښائي
دې سنګار زهٔ همه عمر در په در کړم
کهٔ هر څومې کړوي تيښته ترې نهٔ کړم
زهٔ خو داسې لوئي ماهر دَ عشق هنر کړم

دَ الفت په لاره ځم بې شوکه شنهٔ يم
خپل ديبار راځخه درومي زهٔ ئې کسکوکړم
دَ الفت په اور مې سيزې بل څهٔ نهٔ کړې
ارمان ځکه زهٔ دَ صاحبِ کوثر کړم

اسمٰعيل دَ يار په مينه دليوانه يم
زهٔ به نور هم په قلم عالم خبر کړم

---

را په غاړه دَ يارې دَ خوږ اشنا
رب مې مل دے پهٔ لاره دَ وفا
په سينه کښې مې ډير رش دے دَ يادونو
زهٔ به څنګ له دوئي نه خوب کړم په دُنيا

دَ دیدن دَ بارانهٔ ډیر ارماني یم
چې به کله دا باران اوشي په ما

فریادونه مې ملګرې دي بیل نهٔ یم
کړې به ما څخه ترمړګه ملګرتیا

دَ زړهٔ سر مې دَ هجران په پلک چودے
زهٔ به ولې صبح وشام نهٔ کړم ژړا

په وطن کښې مینې زهٔ جلا وطن کړم
دَ یار دړته مدام دروم له پخوا

اسمٰعیل دَ جانان مینې مړنے کړم
ځکه هر ساعت په مینه یم ګویا

---

په رُخسار مې ترږې اوخکې رابهیږي
دَ دلبر په لوږي دروې نهٔ اوډریږي

ده ژړا زما په برخه رسیدلې
توله ګویوان مې مدام لوندوي نهٔ اوچیږي

دَعشق باب له خپل استاده څخه وایم
په ورو ورو مې زړګے ځکه رانړیږي

په دلبر پسې په منډه منډه ګرځم
دَعشق بوج رابانږ هر ساعت ډیریږي

محبّت راله دَ تن وینې کړې اوچې
خوشحالي رانه مدام بیرته اوسیږي

په زړګي مې د غمونو هجوم جوړ دے
څکه هر ساعت فرياد کاندي وئيږي

په ګوګل کښې مې آهونو کوړ جوړ کړے
وار په وار د سماء لوړ ته رخصتيږي

د عشق تبر مې کوونج د زړګي مات کړه
صبح وشام څکه زيبا پسې ژړيږي

د يار مينې له دنيا نه زړه خارج کړم
بيله اوسم سرې لمبې پما بليږي

د عشق کار به اسمعيل ترمرګه کاندي
له هغې پورې به يار پسې ګرځيږي

---

د هجران چيوې زړه دے ډير وهلے
د ارمان دنيا کښې اوسي سوزيدلے

موده اوشوه چې سينه مې غلبيل شوې
له هر ځايه ئې د فراق غشے وتلے

انتظار د مسيحا مې تن سوړ اور کړه
هائے افسوس دے چې بؤ واړئ وے وژلے

د الفت ناسوړ کنار کړم له دنيا نه
د فرقت سيلاب زړه ډير يمه زپلے

د وفا د ګوند غلام زړه هسې نه يم
خپل اشنا په توره زلفو يم تړلے

دَ مژګانو غشي ئ هر وخت پما ووري
په دې غشوئ زما زړهٔ دے بنړوے
اسمٰعيل دَ غشو ډک زړهٔ کړخوُمه
دا انعام مې خلقه ډير غوره کړے

---

زړهٔ مې هر وخت دَ هجران په ننداره دے
په دې چاره باندِ هر ساعت ګړه دے
کوته زړونه په الفت بنهٔ ګره کيږي
زهٔ يم دلته زړهٔ مې هلته يارسره دے
له فرياد څخه مې ژوند دے بل څهٔ نهٔ کړم
هر اندام مې په توکا دَ غم کوتره دے
په خائست کښې مې کمے دَ خوبا نشته
دَ خوبا خائست مې بنهٔ په تول پوره دے
يؤ ساعت مې زړهٔ دمه چرې اونهٔ کړه
هر ساعت په دلربا پسې پاره دے
خپل واکې ئ له مودو راسې پريخلې
عادت شوے دَ ديدار په اشاره دے
اسمٰعيل به زړهٔ ته خود هر وخت حيوان يم
خپل دلبر ته له مودو په يؤ ناره دے

---



تن مې وريت شولو دَ عشق په نمر خدايه
دخول غواړمه دَ يار په در خدايه

اے کريمه کرم اوکړه کَرَم غواړم
رانما کړه راته زر دلبر خدايه

له ميشاقه راپه ديخوا په ژړا يم
دَ يار در لره مې لوئ کړه پَر خدايه

له مودو راسې دَ يار په لور پرواز کړم
حيران کړے يمه دې هُنر خدايه

دَ دنيا له خلقو ډير يم وراپه شوے
تالرمه يؤ سايه په سر خدايه

تمنّا دَ يار دَ وَصل مدام کاندم
ته آسان کړې راته دا سفر خدايه

اسمٰعيل که خپل جانان يؤ وارې اوليد
سوے زړګه به ئې په ليد وشي تر خدايه



